بسمه تعالی

# شاه شجاع، امیر دوست محمد خان
# او
# برتیانوی استعمار


عبدالباري جهاني

د تاريخي عکسونو اضافي: سردار ولي پښتون زوی

د پښتي خطاط: ذبيح الله حبيبي

خپرندوی: ثبات څېړنيز بنسټ

چاپ کال: ۱۳۹۹ل.

چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

د خپرونو لړ: (۱)






د تر لاسه کولو ځايونه:

صداقت خپرندويه ټولنه-کندهار

اوله ناحيه، نوی سړک-کريم اعتماد مارکېټ

Sadaqat.books@gmail.com / ۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴ - ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

**کندهار:** صداقت خپرندويه ټولنه- ارگ بازار-قلم او کتاب مارکېټ. **کابل:** صداقت خپرندويه ټولنه، کوټه سنگي مينه يار مارکېټ سروش کتاب پلورنځی او اکسوس کتاب پلورنځی. **هلمند:** تاج منور خپرندويه ټولنه. **هرات:** صداقت کتاب پلورنځی- کوچه گدام. **جلال آباد:** مومند خپرندويه ټولنه.ننگرهار مارکېټ. **غزني:** نعماني کتاب پلورنځی. **پکتيکا:** مجاهد کتاب پلورنځی. **خوست:** اسلامي کتاب پلورنځی.

# فهرس

**دوهم فصل**

## دریم فصل

## څلورم فصل



## پنځم فصل

# مقدمه

د شاه شجاع او دوست محمدخان دوره مو ځکه د څېړنې لپاره انتخاب کړه چې په دغه وخت کې د سترو قدرتونو برتانيې، روسيې او تر يوه ځايه پورې فرانسې تر منځ ستره لوبه پيل سوه او له بده مرغه چې د دې ظالمانه لوبې ميدان افغانستان و ګرځېدی. ايران او روسيې د هرات د نيولو له پاره اتحاد سره وکړ. او روسيې غوښتل هرات د ايران په وسيله ونيسي او په خپله د دغه مهم ښار له لارې د برتانيې تر ټولو مهمې مستعمرې هند ته لاره پيدا کړي. برتانيې چې لږه موده مخکې يې له ايران سره د افغانستان له پښو غورځولو له پاره د دوستۍ تړون لاسليک کړی وو، د افغانستان خوا ته توجو وکړه او غوښتل يې چې د ايران او روسيې او يا د ايران او فرانسې د اتحاد په نتيجه کې د هرات د سقوط او بالاخره د هند خاورې ته د خطر د مخنيوي له پاره يو دېوال ايجاد کړي. برتانيې په څه کم شل کاله کې دوه ځله ايران د هرات د محاصرې پرېښودلو ته مجبور کړ او دوه ځله يې د همدغه مطلب لپاره د فارس پر خليج باندې حمله وکړه.

شاه شجاع که د شاه زمان ورور نه وای او د پاچهۍ د نيولو لپاره يې ميراثي قواله په لاس کې نه درلودلای ښايي هيڅ وخت پاچا سوی نه وای، هغه د افغانستان د نونسمي پېړۍ په شرايطو کې، چې هر څه د توري او توپک په زور ساتل کېدل په هيڅ توګه د سياست او قدرت لوبې ته جوړ نه وو. که شاه شجاع د تېمورشاه زوی نه وای او په افغانستان کې يې شپږ کاله پاچهي نه وای کړې ښايي انګرېزانو په هيڅ توګه نازولی نه وای او په لوديانه کې يې تقريباً دېرش کاله دربار ور چلولی نه وای. شاه شجاع يو ځل د خپل قام او اولس په زور او بل ځل د انګرېزانو په مرسته د کابل پر تخت کښېنستی او انصاف دا دی چې دواړه ځله يو ناکام پاچا وو.

امیر دوست محمدخان له وړوکوالي بیا د کابل تر تخت پورې د عقل او توري په زور حرکت او ژوند وکړ. هغه د سردار پاینده خان په شلو زامنو کې یوازې یو سکه ورور درلود، چې هغه هم نه د عقل او نه د توري سړی وو او که یې څه مقام یا شتمني درلوده نو هغه هم د امیر دوست محمدخان د توري برکت وو. له دوست محمدخان سره، له وزیر فتح خان څخه پرته ټول ورونه دښمنان ول او کله چې فتح خان ووژل سو نو په ټولو یې هر وخت مځکه ورته سره تبې کړې وه. د کندهار سردارانو د هغه پر ضد له هر چا سره اتحاد کاوه او د پېښور پنځو ورونو په تېره بیا سردار سلطان محمدخان خو یوه ورځ هم د هغه سره له دښمنی کولو څخه لاس وانه خیست او حتی د ده پر ضد یې د سیکهانو له مهاراجا رنجیت سینګهـ سره لاس یو کړی وو.

د هرات واکمنان شهزاده کامران او په وروسته کې وزیر یارمحمدخان نه له کابل او نه له کندهار سره جوړ ول. که څه هم چې شهزاده کامران نه د نورو ښارونو د نیولو زور او نه یې خیال درلود او خپل ټول ژوند یې عیاشی او د خپلو خلکو لوټلو او ترټلو ته ورکړی وو؛ خو وزیر یارمحمدخان د خپل قدرت په وخت کې د افغانستان شمالي سیمو ته ځان ورساوه. وزیر هم له ایران او هم له انګرېزانو څخه پیسې اخیستلې او په حقیقت کې هیڅ یوه ته وفادار نه وو. د هغه د ژوند له عملیاتو څخه ښکاري چې تر انګرېزانو یې ایرانیان دوستان بلل او هیڅ وخت یې نه غوښتل چې ځان ورسره مخامخ کړي. یارمحمدخان نه د کابل او نه د کندهار دوست وو او له دواړو سره یې دښمني پالل.

شمالي صفحات نه له هرات او نه کابل سره وه. نه یې د کابل او هرات په لوبو کې رول درلود او نه یې چاته مالیه ورکوله. هزاره جات، کندوز، میمنه او په مجموع کې ټول شمالي ښارونه او سیمي د خپلو امیرانو او لویو او کوچنیو مشرانو له خوا اداره کېدلې او لا زیاتره یې د غلامانو په بېرحمانه تجارت کې برخه درلوده.

د کابل په ختیځ او جنوب لوېدیځ کې پراته غلجي قبایل هم د کندهار او هم د کابل له حکومتونو سره مخالف وه. نه یوازې یې مالیه نه ورکوله بلکې په لویو لارو کې یې له تجارتي کاروانونو او د کوچیانو له قافلو څخه درنه مالیه اخیستله، د سوداګرو د مقاومت په صورت کې یې قافلې لوټلې او تجارت ته یې لویه ستونزه پېښه کړې وه.

امیر دوست محمدخان که د خپل دوهم ځل قدرت په شل کلنه دوره کې نور چنداني اجتماعي او اقتصادي اصلاحات راوستلي نه وي نو لږ تر لږه اوسنی افغانستان یې تر یوه بیرغ لاندې کړ. او د خپل عمر په وروستیو شپو کې یې د هرات په نیولو سره د افغانستان د یو موټي کولو ارمان پوره کړ

چي دیارلس ورځي وروسته وفات سو او په هغه ښار کي خاورو ته وسپارل سو.

انګرېزانو د افغانستان د فتور او اغتشاش په دغه دوره کي یوه ورځ هم د دې هیواد له کمزوري کولو، لوټلو او وینو تویولو څخه لاس نه دی اخیستی. هم یې د افغانستان پر ضد له سیکهانو او ایرانیانو سره دسیسې کولې، هم یې په خپله حملې وربانديي کولې او هم یې پرلپسې ځمکي ورڅخه لاندي کولې او د تل لپاره یې ورڅخه بېلولې. انګرېزانو ښايي له افغانستان او افغانانو سره کومه خاصه دښمني نه درلوده او چي له افغانستان سره یې هر څه بد کړي او خپلي او پرديویني یې توي کړي دي ټول یې د وخت او سیاسي مصلحتونو په اساس کړي دي.

افغانستان په جغرافیایي لحاظ په داسي ځای کي پروت وو چي باید د ستري لوبي میدان ګرځېدلی وای او چي هر ځل یې د ختو کورونه او قلاوي جوړي کړي دي بیرته د همدغي لوبي قرباني سوي دي او د کلونو خواری یې اوبو وړي دي. د افغانستان په دننه کي قومي اتحاد هیڅ وخت موجود نه وو او هر وخت خپل منځي جګړو ته تیاره خاوره وه. مشرانو او سردارانو یې هیڅ وخت د ټول هیواد ګټي په نظر کي نه درلودلې او د خپلو آني او شخصي ګټو په خاطر یې دومره ویني سره توی کړي وې چي خپل هیواد یې د هر پردي قوت په مقابل کي کمزوری کړی او مداخلو ته یې زمینه برابره کړې وه.

دغه کتاب چي اوس ستاسي په لاس کي دی نه د شاه شجاع غندلو او نه د امیردوست محمدخان، یا کوم بل شخص ستایلو ته وقف سوی دی؛ بلکي د زمان په یوه خاصه تاریخي مقطع کي داسي حالات څېړل سوي دي چي له بده مرغه اوس هم په افغانستان کي حاکم دي او که یې اولسونه کړېږي نو یو عمده علت به یې همدغه قومي بې اتفاقي او تر شخصي ګټو د ټول قوم د ګټو د قربانولو احساس وي.

له بده مرغه چي د افغانستان د تاریخ په باره کي، په تېره بیا د نوموړي دورې په برخه کي د افغانانو له خوا په هغه زمانه کي لیکل سوي کتابونه او آثار د ګوتو په شمېر دي نو زیاتره استفاده مو له خارجي منابعو او هغه هم زیاتره له انګرېزي کتابونو او اسنادو څخه کړې ده. په دې کي هیڅ شک نه سته چي انګرېزانو به د خپلو ملي ګټو او مصلحتونو په خاطر ډېر حقایق پټ کړي او لږ به یې لیکلي او میدان ته کړي وي؛ خو که دغه لږ حقایق هم زموږ په لاس کي نه وای نو بیا به مو د لیکلو او قضاوت کولو له پاره څه نه درلودلای. په دې کتاب کي تر وسه-وسه پوري کوښښ سوی

دی چې تر بحث لاندې زمانه کې لیکل سویو کتابونو، لیکونو، اسنادو او د سترګو لیدلو حالاتو باندې استناد وسي. د وطن او قام ګټو ته مې د یوه متعهد لیکوال په حیث کوښښ کړی دی چې حقایق لکه څرنګه چې دي هغسي بیان کړم. د دې کتاب یوه ښېګڼه په دې کې ده چې لوستونکی به ډېر داسي اطلاعات او معلومات ورځخه تر لاسه کړي چې تر اوسه پوري یې په افغانستان کې په لیکل سویو تاریخي کتابونو کې نه وه لیدلي. دا چې زموږ پخوانیو مؤرخینو، چې موږ یې د لیکنو او تحقیقاتو پوروړي یو دې حقایقو ته ولي اشاره نه ده کړې علت یې دا دی چې هغوی دغو منابعو ته لاس رسی نه درلود او یا یې انګلیسي او نوري اروپایي ژبې نه وې زده. د چا چې اروپایي ژبې زده وې هغوی د افغانستان له تاریخ سره دونه علاقه نه درلوده چې دا آثار په پښتو او دري ترجمه کړي. ځکه نو دا حقایق تر اوسه پوري پټ پاته سوي دي. زه په دې هیله یم چې زموږ ځوانان به د افغانستان د تاریخ تیاره کونجونه نور هم روښانه کړي ځکه چې په خارجي منابعو کې د افغانستان په باره کي په ټنونو د کار او استفادې مواد پراته دي. نور به نو قضاوت تاسي لوستونکو ته پرېږدم. دا تاسي او دا هم کتاب.

## له تیمورشاه څخه وروسته لومړنی ستونزي

د افغانستان مؤسس لوی احمدشاه بابا چي څه باندي پنځهویشت کاله یې په سیمه کي له هنده تر ایرانه آسونه وځغلول او په نیژدې او لیري امپراطوریو کي یې د خپلي تېرې توري په ځلا د افغانستان او افغانانو نوم وځلاوه او د پاني پټ په جنګ کي یې د مرهټیانو د مغرور پوځ د ځپلو داسي کارنامه پرېښوده، چي د سیمي په تېره بیا د هند له تاریخ سره به تر قیامته ژوندۍ پاته وي. لوی احمدشاه بابا په (١٧٧٣م.) کال کي له اوږدې ناروغۍ او شپږویشت کاله پاچهۍ څخه وروسته وفات سو. دلته موږ د هغه د کارنامو په باب څکه څه نه وایو، چي یو خو زموږ له موضوع سره ډېره زیاته اړه نه لري، بل دا چي د اسیا د دې نومیالي جنرال او پاچا په باب، چي د لومړي ځل له پاره یې افغانان یو موټی کړل او پر یوه مرکز او بیرغ یې را ټول کړل، داخلي مؤرخینو او خارجي څېړونکو دونه لیکني کړي دي، چي زما لیکنه به تکرار حسن نه، بلکي تکرار مکرر سي.

د احمدشاه بابا مشر زوی تېمورشاه، چي نه یې د خپل پلار هوښیاري او نه یې د هغه نظامي نبوغ درلود، له شلو کالو سلطنت څخه وروسته چي ټول عمر یې په عیش او نوش تېر کړ، په (١٧٩٣م.) کال کي په ناڅاپي توګه ناروغ او وفات سو. تیمورشاه تر ډېره ځایه هم په خپل زور خبر وو او هم د ګاونډیانو زور او قوت ورته معلوم وو او ځان یې تر خپله وسه د ګاونډیانو له جنګونو څخه په ځنګ ساتلی وو. که څه هم چي د عمر تر پایه پوري یې پر ډهلي باندي د یرغل کولو او د مغولو د امپراطورۍ او په نتیجه کي د مسلمانانو د سلطنت او عظمت د بیرته ژوندي کولو او غښتلي کولو له پلانونو څخه لاس وا نه خیست؛ خو دا ارمان یې ګور ته ور سره یووړ. په دې حساب نو د انګلیس مؤرخ دا ادعا د تأمل وړ ده، چي وایي " تېمورشاه دراني په ډېره هوښیاري اباسین خپل سرحد ګڼلی وو او ځان یې په لوی لاس د سیکهانو له دښمنۍ سره نه مخامخ کاوه. تېمورشاه، چي ډېره ښه سیاسي پوهه یې درلوده، په دې پوهېدی چي د پنجاب فتح کول او ساتل یوه بېځایه مفکوره ده او دا کار د ده له پاره غیرممکن دئ. دی په دې پوهېدی چي پلار یې د خپل ټول نبوغ او زور سره هغه سیمه کراره نه سوای ساتلای، مګر د تېمورشاه زوی شاهزمان په دې خوب او خیال کي ډوب وو، چي د خپل نیکه په څېر هندوستان فتح کړي او د اسلام د یوه قهرمان په څېر

وځلېږي. ده زیاتره حساب د سیکهانو ترمنځ پر بې‌اتفاقیو کړی وو او د همدغه حساب پر اساس یې پر پنجاب باندي د تسلط خیال درلود" (تېټ، ص: ۹۳)

تېمورشاه د خپل پلار له وفات څخه وروسته یوازي د خپل کشر ورور شهزاده سلیمان له لنډ مخالفت سره، چي خپل ځان یې پاچا اعلان کړ، مخامخ سو، خو کله چي تېمورشاه له هرات څخه له شهزاده سلیمان سره د جنګ کولو او د تخت نیولو په نیامت، کندهار ته حرکت وکړ نو سلیمان شاه بې‌له جنګه تسلیم سو. تېمورشاه د شهزاده سلیمان خسر او د احمدشاه بابا صدراعظم شاه‌ولي خان بامیزی، چي د شهزاده سلیمان اصلي محرک او ملاتړی وو او د بخښني غوښتلو له پاره د تېمورشاه مخي ته ور وتلی او په بکوا کي یې غوښتل، چي د تېمورشاه دربار ته ور سي، خپل حضور ته و نه مانه او د زامنو او ورېرونو سره یې وواژه. تېمورشاه د تخت له پاره بل رقیب نه درلود او په دې توګه تقریباً په اسانه قدرت ته ورسېدی.

شاه‌زمان نه یوازي په جنجالي توګه قدرت ته ورسېدی، بلکي د عمر تر پایه پوري یې د خپلو ورونو، په تېره بیا شاه‌محمود، له لاسه آرام و نه کړ. د تاریخي متونو په اتفاق؛ تېمورشاه د خپل وفات په وخت کي شاه‌زمان د خپل ولیعهد په حیث وټاکی. د هغه له حکم سره سم، په کابل کي ټول حاضر شهزاده‌ګان بندیان سول.

له کابل څخه د انګلیسانو یو خبرلیکونکی رپوټ ور کوي، چي شهزاده عباس د شاه‌زمان حضور ته له حاضرېدلو څخه انکار وکړ او په خپل کور کي یې مقاومت پیل کړ. هغو کسانو ته یې چي د ده د را وستلو وظیفه ور کړه سوې وه، بد رد وویل او د لېږل سوي ډلي پر مشر محمدابراهیم یې د توپنچې ډز هم وکړ او ټپي یې کړ. شهزاده عباس تقریباً پنځه ورځي مقاومت وکړ او د هغه له نیول کېدلو او بندیخانې ته له سپارل کېدلو څخه وروسته یې تېمورشاه قبر ته وسپاره. (فارسي اخبارات، ص: ۳۷۶)

زیاتره مؤرخین شاه‌زمان د تېمورشاه پنځم زوی بولي، خو فوفلزایي وایي چي شاه‌زمان د تېمورشاه په (۳۲) زامنو کي د هغه شپږم زوی وو او له هغه څخه په ترتیب سره؛ شهزاده همایون، شهزاده محمود، شهزاده حاجی فیروزالدین، شهزاده عباس او شهزاده کهندل مشران ول. (فوفلزایي، ص: ۹-۱۰)

دا چي تېمورشاه ولي خپل مشر زوی همایون، چي د ده د پاچهی په وخت کي څو ځله پر

پوځ خوځښت په خپله لسم لښکرو قوماندانی هم ور هندوستان باندي په لښکرکښیو کې ور سره ملګری وو او یو ځل خو یې د هغه پر ځای سپارلې او له کارونو څخه یې راضي هم وو، د ولیعهد په حیث و نه ټاکی او ولي یې د هغه پر ځای خپل پنځم زوی شاه‌زمان ولیعهد کړ، ښایي یو علت یې دا وي چې همایون لکه چې خپل پلار ته چنداني وفادار نه وو، ځکه یو ځل تېمورشاه ته داسي شک پیدا سوی وو، چې همایون د هغه د قتلولو او په خپله د پاچا کېدلو خیال لري. همایون د (۱۷۸۸م.) کال د سپټمبر په میاشت کې له کندهار څخه د خپل پلار لیدلو ته راغلی او غوښتل یې چې حرم ته ور سي. پېره دارانو نه وو پرې ایښی او وروسته معلومه سوه، چې په جامو کې یې پېش قبضه پټه کړې وه. (فارسي اخبارات، ص: ۳۷۵)

د تیمورشاه پنځم زوی شاه‌زمان، چې تر ډېره ځایه د بارکزیو د قبیلې د مشر سردار پاینده خان یا سرفراز خان په مرسته قدرت ته ورسېدی، نه د خپل نیکه نظامي نبوغ، نه د هغه په څېر عقل او نه قومي نفوذ درلود او نه په داخل او شاوخوا کي هغه شرایط موجود ول، چې د ده لویې نقشې پکښې عملي سوي وای. د شاه‌زمان له ورونو څخه تر ټولو مشر او زورور همایون وو، چې دا وخت په کندهار کي نایب‌الحکومه وو. هغه څو ځله ورته یاغي سو؛ د کندهار او کلات په څېر ښارونه یې ونیول، په سیند او بلوچستان کي یې ستونزي ورته جوړې کړې او شاه‌زمان ایله څه کم درې کاله وروسته د هغه نیولو ته جدي توجه وکړه او تر نیولو وروسته یې په سترګو ړوند کړ او بالاحصار ته یې واستاوه. د همایون سکه ورور شاه‌محمود چې د هرات په څېر په یو حساس ولایت کي نایب الحکومه وو، دوه ځله ورته یاغي سو؛ یو ځل یې په خپله د هغه په زاریو او بل ځل یې د هغه د مور په عذر او ننواتو وباخښه او بیرته به یې د هرات ولایت هم ور کړ. شاه‌زمان په خپله خاوره کي د دې ټولو شورښونو سره سره بیا هم د ډهلي د نیولو خیال پرې نه ښود او هر کله چې به یو څه فارغ سو، بیا به یې پر هند باندي د حملې کولو پلان جوړ کړ. شاه‌زمان د عمر تر پایه پوري دې حقیقت ته متوجه نه سو، چې د خارجي فتوحاتو له پاره داخلي آرامي لومړنی او تر ټولو اساسي شرط دی. داسي ښکاري چې نه یې خپل قوم پېژندلی او نه یې د نورو پاچاهانو تاریخونه لوستي ول او همدغي بې‌خبرۍ یې سر وخوړ.

شاه‌زمان ته پر هند باندي د حملې کولو په لاره کي تر هر څه مخکي سیکهان پراته ول. دا هغه قوم وو چې احمدشاه بابا یې په خپل ټول قوت په بشپړ ځپلو بریالی نه سو او چې هر ځل به یې له هند څخه د افغانستان پر لور حرکت کاوه، د سیکهانو سپرو جنګیالیو به یې پر لښکرو باندي د شا له

خوا د جنګ او تېښتي حملې کولې. احمدشاه بابا د خپلې پاچهۍ په زمانه کې خپل زوی تېمورشاه د لاهور حکمران مقرر کړ او خپل تکړه جنرال جهان خان پوپلزی یې د مرستیال او سلاکار په توګه ور سره پرېښود؛ خو څو میاشتي نه وې تېرې سوي، چي سیکهانو تېمورشاه د لاهور پرېښودلو ته مجبور کړ. د شاه‌زمان په زمانه کې سیکهان تر پخوا هم غښتلي سوي او منظم سوي ول او د هغوی له سیمي پنجاب څخه د شاه‌زمان د پوځونو تېرېدل غیرعملي او غیرممکن کار وو.

بل قوم، چي د شاه‌زمان او د ټولو افغانانو وینو ته تږي ول، هغه مرهټیان ول، چي د پاني پټ له جنګ او د احمدشاه بابا په مقابل کې د ماتي خوړلو څخه وروسته دونه قوي سوي ول، چي ډهلی یې نیولی او د مغولو امپراطوران تش په نامه ناست ول او د پاچهۍ او سیاست ټول اختیارات له مرهټه سره ول. د شاه‌زمان له پاره له هغوی سره جګړه کول، ماتول، اېلول او بالآخره پر هغوی باندي حکومت کول یو بل غیرممکن کار وو. نه یوازي له هغوی سره جګړه کول ګران کار وو، بلکي هغوی ته ځان رسول تقریباً له غیرممکناتو څخه وو. مرهټیان که څه هم چي له سیکهانو او انګرېزانو سره جوړ نه ول، مګر د شاه‌زمان په مقابل کې، چي دوی خپل اصلي دښمن باله، له بل هر قوت سره یو ځای کېدلو او لاس یو کولو ته حاضر ول او د شاه‌زمان د پاچهۍ په وخت کې یې څو څو ځله انګرېزانو ته پیشنهادونه وکړل، چي د هغه د تهدید په مقابل کې لاس ور سره یو کړي.

تر دې ټولو خطرناک او زورور قوت انګرېزان ول، که څه هم چي هغوی د احمدشاه بابا او تېمورشاه په زمانو کې هم په هند کې یو لوی قوت وو. په هند کې چي په هغه وخت کې د انګلیسیانو د امپراطورۍ په تاج کې تر ټولو قیمتي الماس بلل کېدی، د شاه‌زمان د پراختیا غوښتني د سیاست د هر عمل په مخ کې تر ټولو لوی خنډ وو. د ګورنرجنرال جان شور او ګورنرجنرال ویلسلي په عنوان د شاه‌زمان له لیکونو څخه ښکاري، چي ده پر انګلیسیانو باندي یا حساب نه کاوه او یا یې په ډېره کمه سترګه ورته کتل او د ګورنرجنرال په عنوان په خپلو لیکونو کې هغه ته، د خپل پلار تېمورشاه په څېر د خپل رعیت په سترګه ګوري او ګواکي دا یې ښخي زړه ته نه لوېدل، چي انګرېزان پر هند باندي یرغل پر خپل قلمرو او امپراطورۍ باندي یرغل بولي . شاه‌زمان ایله هغه وخت چي د خپل ورور شاه‌شجاع له سقوط څخه وروسته، له خپلې ټولي کورنۍ سره په لودهیانه کې د انګرېزانو پر سترخوان مېلمه سو، ښایي پوهېدلی وي، چي ده څونه لوی قوت ته په څونه کمه سترګه کتلي وه. سړی په یقین سره ویلای سي، چي دی نه د انګرېزانو په پوځي قوت، نه عصري وسلو او نه د خزانو په زور خبر وو.

او تر دې ټولو خارجي خنډونو او ستونزو خطرناک او مهم مشکل په داخل کې، له خپلو ورونو سره جنگونه او په وروسته کې د بارکزیو له لویې قبیلې له دښمنی سره مخامخ کېدل وه، چې د ده د قدرت د نسکورېدلو او ړنډېدلو علت سو. له بده مرغه ده تر پایه توجه ورته و نه کړه او خپله ټوله توجه یې د پنجاب او ډهلي فتح کولو ته اړولې وه، چې یوازې د خوړو خوبونو حیثیت یې درلود.

شاه‌زمان د خپلې پاچاهۍ تر وروستیو شپو، ورځو پورې د هند د فتح کولو او ډهلي ته د رسېدلو او نیولو له نقشو څخه لاس وا نه خیست. هغه په هندوستان کې د ډهلي د تش په نامه امپراطور، دوهم شاه عالم، د میسور د ټیپو سلطان، روهیله پښتنو او نورو مسلمانانو پر قوت او ملاتړ باندې، چې هغوی په خپله د انگرېزانو، مرهټیانو، سیکهانو او نورو هندو راجاگانو له تېریو او ظلمونو د لاسه کړېدل، حساب کړی وو. شاه عالم هغه ته بلنه ور کړې وه، چې د یو مسلمان سلطان په حیث باید د هندوستان مسلمانانو ته نجات ور کړي او د هغوی عظمت او شوکت بیرته را ژوندی کړي. ټیپو سلطان ورته لیکلي ول، چې هغه باید له هند څخه د بریټانویانو په ایستلو کې مرسته ور سره وکړي. ټیپو سلطان په (۱۷۹۶م.) کال کې ورته لیکلي ول، چې دا د ټولو مسلمانانو مشرانو وظیفه ده، چې د هند له خاوري څخه د کفارو د ریښو په ایستلو کې لاسونه سره یو کړي. ټیپو سلطان ورته لیکلي ول، چې هغه په خپله دې کار ته ملا تړلې ده او په دې جهاد کې به په خپل ټول قوت برخه اخلي. (ورما، ص: ۶۸)

شاه‌زمان په بې‌غمه زړه په هند کې مسلمانو مشرانو ته لیکونه لیږل او د هغوی په وعدو یې زړه خوشاله کړی وو. هغه ښایي تر پایه پوري په دې نه وي پوهېدلی، چې ټول لیکونه یې د بریټانیې د استخباراتو لاس ته ورځي او ټول حرکات یې څارل کیږي. شاه‌زمان په هند کې د انگرېزانو پر مخالفو او دښمنو قوتونو او هغوی د ده پر قوت باندې حساب کړی وو، خو د دوی تر منځ د دواړو د غلیمانو د مقاومت داسې دېوالونه ولاړ ول، چې د دوی د مرستي لاسونه یو بل ته رسېدلای نه سوای. دوی دواړو یا دا دېوالونه هیڅ نه لیدل او یا یې ډېر کم حساب ور باندې کړی وو، خو دا اوسپنیز دېوالونه په ریښتیا موجود ول او د دې دېوالونو شا ته لا د انگرېزانو د امپراطورۍ ښامار پروت وو، چې ورځ تر بلې غښتلی کېدی او لا یې په سیمه کې څه باندې یوه نیمه پېړۍ ژوند پاته وو. زمان‌شاه په ختیځ کې د دې لوی دښمن تر څنگ په داخل کې د خپلو ورونو سره په جگړو لگیا وو او په پای کې د بارکزیو د لویې او غښتلي قبیلې دښمني هم ور تر غاړې سوه او پر دې ټولو برسېره، په لوېدیځ کې د ایران او انگرېزانو گډې دسیسې هم ورته پیل سوې.

د افغانستان لوېديځ گاونډی، هغه ايران چي احمدشاه بابا به بريالی حملې ور باندي کولې او په خراسان کي به يې پاچاهان مقررول او حمايه کول، نه وو:

چـي زمـا د ولايـت فـتح روزي سـوه
نـور ايـران لـره پـه تـوغ پـه نغاره ځـم
پـر دا کـړي داد دي خـدای نـه سي پښېمانه
تـر نگين مـي ايـران لاندي شـاهانه ځـم

د شاه‌زمان په وخت کي ايران ډېر تغير کړی وو. ايران چي د احمدشاه بابا په زمانه کي نسبتاً کمزوری او لږ تر لږه د قدرت په دريو مرکزونو، محمدخان قاجار په تهران کي، کريم خان زند په شيراز کي او د احمدشاه بابا تر کنټرول او حمايې لاندي شاهرخ د خراسان په مرکز مشهد کي، وېشل سوی وو. د شاه‌زمان په زمانه کي د قدرت يو واحد مرکز، چي تهران وو، درلود. د ايران پاچا فتح‌علي‌شاه قاجار يا بابا خان، چي په خپله يو تکړه جنرال وو، هم پرېمانه خزانې، هم لوی او په جنگونو کي آزمېيل سوی پوځي قوت او اروپايي پوځي متخصصين او يو موټي هيواد درلود او دا وخت يې زور له هيڅ لوري د افغانستان سره د مقايسې وړ نه وو. بالآخره شاه‌محمود او فتح خان هم د ايران په مرسته او ټونگ د شاه‌زمان ملا ور ماته کړه. د همدغه ايران دسيسو څه کم سل کاله افغانستان په داخلي جنگونو لگيا کړی او ناکراره ساتلی وو او لا يې د افغانستان د لويو ښارونو؛ هرات، بادغيس او غور، د لاندي کولو له پاره لښکرکښنی هم کولې.

داسي ښکاري چي شاه‌زمان د جنگ او فتوحاتو لومړنی او اساسي فارمول، چي د خپل قوت تر څنگ د دښمن په قوت ځان خبرول دي، له سره لوستی نه وو. دی نه د سيکهانو، نه مرهټيانو، نه انگرېزانو او نه ايرانيانو او نورو دښمنانو له زوره خبر وو او نه يې په داخلي جنگونو او له پرديو سره د خپل مشر ورور په دسيسو کي ری واهه او بس د هند د فتح کولو فيصله يې کړې وه. هر ځل چي به په خپل قلمرو کي د خپلو ورونېو د شورښونو له خپلو څخه بې‌غمه سو، بيا به يې د ډهلي د نيولو له پاره حرکت وکړ. لا به تر اباسين اوښتی نه وو، چي په خپل هيواد کي به له ناکراريو څخه خبر سو او بيرته به يې د هند د نيولو پلان پرېښود او په وچه ځغستا به يې ځان کابل او کندهار ته ورساوه.

## د شاه‌زمان د زوال شپې، ورځې او سقوط

شاه‌زمان د خپل قدرت پایې هغه وخت په لوی لاس ولړزولې، چې د رحمت‌الله خان په نوم یو نالایق او غوړه‌مال سړی یې خپل صدراعظم وټاکی او د وفادارخان په نوم یې ونوماوه. هغه غوړه‌مال وزیر د خپل قدرت د ټینګولو له پاره ټول هغه خانان او جنرالان خوابدي کړل، چې د شاه‌زمان د زیاترو جنګونو مخکښان ول او شاه‌زمان یې د خدمتونو پوروړی وو. په دې کسانو کې یو هم د بارکزیو د قبیلې زورور او هوښیار مشر سردار پاینده خان، چې د سرفراز خان لقب یې درلود او په حقیقت کې شاه‌زمان د هغه په توره او هوښیاري قدرت ته رسېدلی وو، شامل وو. که څه هم چې د پاچهۍ او قدرت په قاموس کې ځوانمردي نه سته او پاچاهان تر هر چا مخکې هغه کسان له منځه وړي، چې دوی یې قدرت ته رسولي وي او دا یو ډول عام فورمول دی او شاه‌زمان هم د خپل غوړه مال وزیر رحمت‌الله خان یا وفادار خان په خوله، د همدغه عام فورمول سره سم عمل وکړ.

د رحمت‌الله خان له تکبر څخه چې اکثرو هغو خانانو او قومي مشرانو چې له کلونو یې د تېمورشاه په دربار کې خدمت کړی وو، پټ او ښکاره شکایتونه وکړل، خو شاه‌زمان د خپل غوړه مال وزیر یا صدارعظم وفادار خان په دام کې ګیر وو او د هیچا شکایت یې غوږونو ته نه رسېدی او که ور رسېدی نو باور یې نه په کاوه. قومي خانانو بالآخره په کندهار کې د میا غلام‌محمد په نوم یوه هندي پیر او مرشد په خلوت کې غونډه وکړه او فیصله یې وکړه، چې رحمت‌الله خان به وژني او زمان‌شاه به بندي کوي او د هغه پر ځای به د هغه ورور شاه‌شجاع پاچا کوي. په دې غونډه کې سردار پاینده خان یا سرفراز خان، پوپلزی اسلام خان امیرالامراء او ضبط بیګي، حکمت خان سرکاني، د میر هزارخان الکوزي زوی محمدعظیم خان، امیر اصلان خان جوانشیر، یوسف علي خان خواجه سرا، میرزا شریف خان منشي او نورمحمد خان بابړ، په قرآن شریف سوګند وکړ او فیصله یې وکړه، چې سرفراز خان به بارکزي ځوانان له کلیو څخه ښار ته را غواړي او کله چې سبا رحمت‌الله خان ښکار ته ځي، نو محمدعظیم خان الکوزی به یې وژني او میر اصلان خان به د پاچا د بندي کولو کار پر غاړه اخلي. میرزا شریف خان چې په مجلس کې یې برخه درلوده، په هغه شپه ټول حال رحمت الله خان ته ویلی وو او رحمت الله خان شاه‌زمان ته رپوټ ور کړی وواو هغه هم

د ټولو خانانو چې په هغه غونډه کې يې برخه درلوده، د وژلو حکم صادر کړ او په يوه ورځ يې يو يو له منځه يووړل. د سردار پاينده خان شل زامن، چې اکثر يې جنګي مېړونه ول، په هغه ورځ يوې او بلې خوا ته وتښتېدل او فتح خان، چې تر ټولو مشر وو، مستقيماً ايران ته ولاړ او هلته له شاه‌محمود سره، چې له وخته د ايران د پاچا فتح‌علي‌شاه په دربار کې ځيره‌خور وو، يو ځای سو[1].

د شاه‌زمان دې تلوارې او بې احتياطه فيصلې او عمل نه يوازې د هغه د سلطنت پايې ولړزولې، بلکې څه موده وروسته د پوپلزيو د سلطې د کمبلې د ټولېدلو او بارکزيو ته د قدرت د نقلېدلو سبب سو.



اعليحضرت شاه زمان

---

[1] مرحوم کهزاد د دې پېښې نېټه (۱۷۹۹م.) ليکي (ص: ۲۳۱) خو درانی د پاينده خان د قبر پر شناختې باندې د ليکل سوې نظم چې د ابجد په حساب (۱۸۰۰) کېږي:

زعقل سال وفاتش پرسيدم

جواب داد که "قُلهُم شهادت الرحمن" سمه نېټه را اخيستې ده. (درانی، ص: ۱۶۹)

فیریه چي د افغانانو د تاریخ وروستي پېښي یې یا زیاتره د خپل سترګو لیدلي حالاتو او یا د هغو مهمو سردارانو او جنرالانو له خولې، چي په پېښو کي یې په خپله برخه درلودلې ده، لیکلي دي، وایي چي شاه‌زمان په خپله یو زړه‌ور او فعال سړی وو او تل پر آس سپور وو. د یوه جنګ له پای ته رسولو سره د بل جنګ میدان ته غورځېدی او په عقل او پوهه کي هم تر چا پاته نه وو، خو د خپلو بریالیتوبونو فرصتونه یې هغه وخت له لاسه ور کړه، چي د خپل وزیر په تحریک یې د بارکزیو د قبیلې مشر او نور سرداران ووژل. دی وایي: سره له هغه چي شاه‌زمان دغه ګناه کړې ده، خو د افغانستان خلګ تر اوسه د تېمورشاه تر ټولو زامنو هغه ته زیات درناوی لري او نوم یې په احترام یادوي. (فیریر، ص: ۱۲۸)

له دې پېښو څخه تقریباً یو کال مخکي، په هند کي د بریتانیې ګورنرجنرال لارډ آرترویلسلي د مهدي علي‌خان په نوم یو استازی د ایران د پاچا فتح‌علي‌شاه دربار ته د دې له پاره لېږلی وو، چي د ایران پاچا تشویق کړي، چي د زمان‌شاه له پاره داسي ستونزي پیدا کړي، چي له هند څخه یې توجه خپلو نورو مشکلاتو ته واوړي. مهدي علي خان په خپل ماموریت کي بریالی سو او د ایران پاچا یې د زمان‌شاه پر ضد پټو او ښکاره عملیاتو ته تشویق کړ. مهدي علي خان لا په تهران کي وو، چي انګرېزانو د جان مالکم په نوم یو ځوان صاحب منصب، د هغه پر ځای مقرر کړ او د ایران دربار ته یې واستاوه. هغه ته وظیفه ور کړه سوې وه، چي د ایران له پاچا سره داسي یو ترتیب جوړ کړي، چي هندوستان د زمان‌شاه د یرغل له کلنیو تهدیدونو څخه بې‌غمه کړي. دوهم دا چي د فرانسې د هغو احتمالي نقشو د عملي کېدلو مخه ونیسي، چي د ایران په باب به یې ولري او درېیم دا چي د هندوستان او ایران تر منځ هغه تجارتي اړیکي چي پخوا موجودي وې، له سره تازه او تقویه سي. (تېټ، ص: ۱۱۱)

## د ایران مستقیمه مداخله

د ایران پاچا فتح‌علي‌شاه چي دا حالت یې له خدایه غوښت، سمدستي شاه‌محمود ته چي د ده په تنخوا یې ګوزاره کوله، مالي او پوځي مرسته ور کړه او د فتح خان سره یو ځای یې افغانستان ته روان کړ. شاه‌محمود او فتح خان چي د ایران د قواوو بشپړ مالي او پوځي ملاتړ ور سره وو، هرات ونیوی. شاه‌زمان دېر ژر ځان هرات ته ورساوه او شاه‌محمود ته یې ماته ور کړه او هغه بیرته ایران ته

وتښتېدی. شاه‌زمان له هرات څخه خپل یو استازی طره‌باز خان پوپلزی، ایران ته واستاوه او د ایران له پاچا څخه يې وغوښتل، چي له خراسان څخه پر شا سي. د ایران پاچا چي تازه يې لا د انګرېزانو ملاتړ هم تر لاسه کړی وو، شاه‌زمان ته له غروره ډک جواب واستاوه او د افغانستان په نورو ښارونو يې دعوه وکړه. شاه‌زمان ته د ایران د پاچا دغه لیک سړي ته هسي احساساتي خبري او ټوکي ښکاري، خو د ایران پاچاهانو د نولسمي پېړۍ په پوځي عملیاتو کي وښودله، چي په خپلو دعوو کي جدي ول. د ایران پاچا شاه‌زمان ته د خپل مکتوب په یوه برخه کي ولیکل:

"... او افغانانو ته د خراسان په ښارونو دعوه نه ښایي او باید چي د دې سیمو په چارو کي مداخله و نه کړي، ځکه چي مرو، بلخ، اندخود، شبرغان، بدخشان، میمنه، هرات، سبزوار، بُست، نیشاپور، طبس، قندهار، بامیان، بلوچستان او د خراسان نوري سیمي په پخوانیو زمانو او د صفویانو په وخت کي په دې ملک اړه درلوده او اوس موږ ته په میراث رسېدلي دي او موږ به هغه سیمي بیرته د خپلو آسونو او لښکرو تر پښو لاندي کړو. نو دا به ستاسي په خیر وي، چي بیا زموږ په خاورو دعوه و نه کړئ او د ایران پخوانیو مځکو ته د حرص سترګي و نه نیسئ... " (فوفلزایي، ص: ۱۳۸- ۱۳۹)

شاه‌زمان لا په هرات کي وو، چي د ایران د پاچا فتح‌علي‌شاه قاجار لیک ورته ورسېدی او له هغه ښار څخه يې په ډېرو ټینګو کلماتو، چي له هري برخي څخه يې د هغه افغاني غرور ځرګندېږي، یو اوږد لیک واستاوه. دا لیک نه یوازي د ایران د پاچا د ګستاخی جواب دی، بلکي په اتلسمه پېړۍ کي د افغانستان د پاچاهانو په دربارونو کي د فارسي ژبي د انکشاف او د عالي نثر لیکلو یوه ډېره ښه نمونه ده. د لیک په یوه برخه کي راغلي دي:

"... څرنګه چي د تاج او تخت څښتنان په خپلو خبرو او لیکونو کي له ادب څخه کار اخلي او هره خبره د عقل په ترازو کي تللي کوي؛ مګر د بې‌اعتباره فتح‌علي‌شاه قاجار لیک د ادب د رعایت کولو له نعمت څخه بې‌برخي دی او له داسي یوه سړي سره چي ځان ته د شهنشاه خطاب کوي، نه ښایي او زموږ عالي مقام ته يې له سپکو کلماتو او بې‌ځایه دلایلو او سفسطې څخه ډک لیک را لېږلی دی. د خپل قوت په باره کي يې لاپي شاپي کړي دي او د نکته‌پردازیو او خوږو عباراتو د استعمالولو فن يې، چي له شاهانو سره ښایي، هېر کړی دی او دا سبک يې د شاه اسمعیل صفوي له وخته، چي د شیعه مذهب يې په وچ زور پر خلګو تحمیل کړ، په میراث وړی دی... که ستاسي په سر کي عقل او هوښیاري موجوده نه وي او د جنګ له تهدیدونو څخه لاس وا نه خلئ، نو خبره به

د توري او خنجر استعمال ته ورسېږي او بیا نو د قاجاریانو چم او چمبازي د درانیانو د توري د زور جواب نه لري... او څه چي تا د خراسان په اړه لیکلي او د خپلو نیکونو د میراث نوم دي ور باندي ایښی دی، دا دي تا ته معلومه وي، چي دا ملک یو وخت په تا او یو وخت په ما اړه درلودلې ده او اوس به معلومه سي، چي زموږ د توري زور کار ور کوي او که ستا تزویر او بېادبي. کومي مځکي چي زما په لاس کي دي، هغه مي د توري په زور ساتلي دي او د خپلو سترو نیکونو څخه را پاته دي او اوس به یې هم په خپل همت او توره ساتم... " (هغه کتاب، ص: ۱۴۱-۱۴۳)

مرحوم کهزاد لیکي چي شاه‌زمان د گدامحمد خان بارکزایي په نوم یو سفیر، چي په گدو خان مشهور وو، د محمدخان قاجار دربار ته استولی وو او هغه په هرات کي د زمان‌شاه د څلور میاشتني ځنډ په وخت کي هغه ته د تهران د دربار او د ایران د حکومت د کمزوریو په باره کي خپل د سترگو لیدلی حال ووایه او زمان‌شاه ته یې وویل، چي د ایران حکومت دونه کمزوری دی، چي که ده ته دوولس زره عسکر ور کړه سي نو ایران به ورته فتح کړي. مرحوم کهزاد د ایران په باره کي د گدو خان نظر او تحلیل د میرویس خان له هغه نظر او تحلیل سره مقایسه کوي، چي د صفویانو د نظام له لیدلو څخه وروسته یې ور کړی او په نتیجه کي یې د ایران پر ضد پاڅون وکړ. (کهزاد، ص: ۳۲۳)

په دې صورت کي باید زمان‌شاه د ایران دربار ته دوه ځله هیأتونه لېږلي وي، ځکه چي فوفلزایي د فرمانونو په حواله، د ایران دربار ته د لېږل سوي سفیر نوم سردار طره‌باز خان پوپلزی ښیي. په هر صورت که د مرحوم کهزاد په کتاب کي د گدو خان راغلي احساساتي خبري حقیقت ولري، نو سړی ویلای سي چي شاه‌زمان د خپلي پاچهۍ او واکمنۍ د چلولو په وخت کي چنداني هوښیار او د کار وزیران او سفیران نه درلودل او که یې درلودل نو هغه یې د رحمت‌الله خان په خوله له ځانه لیري کړي او له منځه وړي ول، ځکه چي ایران د قاجاریانو په وخت کي هیڅ وخت دونه کمزوری نه وو، چي افغانان دي هغه په دوولس زره عسکرو فتح کړي. که زمان‌شاه د خپلو سفیرانو او وزیرانو پر دغه راز احساساتي او له منطقو خالي تحلیلونو او رپوټونو باندي، یوه ورځ هم حساب کړی وي، نو د هغه د ټولو اشتباهاتو مسؤل یې همدغه سلاکاران او په حقیقت کي په خپله شاه‌زمان دی، چي دغه راز کسانو ته یې مخ ور کړی وو.

په هر صورت زمان‌شاه د شاه‌محمود د خپلو څخه وروسته خپل زوی شهزاده قیصر په هرات کي نایب‌الحکومه کړ او د کابل پر لور وخوځېدی. له کابل څخه یې بیا د سکهانو د ځپلو او اېلولو او

ښايي د لويو نقشو له پاره، د پېښور پر لور حرکت وکړ. لا يې په پېښور کې ساه نه وه اچولې، چې بيا د شاه‌محمود د ښورښ خبرونه ورته را ورسېدل.

شاه‌محمود او فتح خان له دې څخه لږ وروسته، چې زمان‌شاه له کابل څخه وتلی وو، پر کندهار باندې حمله وکړه. د کندهار د والي مهرعلي خان اسحاق‌زي پنځه زره کسيز پوځ ته يې په ډېرو لږو قواوو ماته ور کړه او د کندهار ښار يې څه باندې څلوېښت ورځې محاصره کړ. بې‌خبره شاه‌زمان چې بايد په دونه حساسو او خطرناکو وختونو کې په کابل او حتی په خپله په کندهار کې حاضر وای، په پېښور کې پروت وو او استخبارات يې دومره کمزوري ول، چې لږ تر لږه د کندهار د دونه اوږدې محاصرې په وخت کې اطلاع ورته و نه رسېدله، چې ځان يې پر وخت را رسولی وای او کله چې مهرعلي خان له ښاره وتښتېدی او د شاه‌زمان کمپ ته يې ځان ورساوه او ټول احوال يې ورته ووايه، نو شاه‌زمان ايله خبر سو چې وضع په څه حال کې ده. شاه‌زمان سمدستي د کندهار پر لور حرکت وکړ. دواړه پوځونه د قلات او مقر په منځ کې سره مخامخ سول. د شاه‌زمان له لښکرو څخه احمدخان نورزی، چې له وفادار خان څخه يې ښه زړه نه درلود، د جنګ په ميدان کې له خپلو لسو زرو عسکرو سره له شاه‌محمود او فتح خان سره يو ځای سو او شاه‌زمان ماته وکړه او د کابل خوا ته وخوځېدی. (دراني، ص: ۱۷۰- ۱۷۱)

شاه‌زمان له غزني څخه د کابل پر لور وخوځېدی او له بالاحصار څخه د جواهراتو تر اخيستلو وروسته يې د جلال آباد پر لور حرکت وکړ. غوښتل يې چې ځان پېښور ته ورسوي او هلته له خپل ورور شجاع‌الملک څخه، چې په پېښور کې نايب‌الحکومه وو، پوځي قوه واخلي او بيرته د کابل د نيولو له پاره اقدام وکړي. داسې ښکاري چې شاه‌زمان په کابل کې هيڅ پوځي قوه نه درلوده او هغه لس زره پوځيان چې يې د فتح خان او شاه‌محمود سره د مقابلې له پاره، له احمدخان نورزي سره لېږلي ول، د ده وروستی پوځي طاقت وو، ځکه چې که له شاه‌زمان سره نوره پوځي قوه موجوده وای، نو په دونه تلوار يې له کابل څخه د جلال آباد پر لور حرکت نه کاوه. شاه‌زمان جلال آباد ته له رسېدلو څخه مخکې د ملا عاشق شينواري په قلا کې د شپې د تېرولو او هوسا کېدلو له پاره تم سو. ملاعاشق شينواري يې په لومړي سر کې ښه عزت وکړ او کله چې په کابل کې د شاه‌محمود له پاچا کېدلو څخه خبر سو، نو يا د ځان له ويرې او يا نوي پاچا ته د نيږدې کېدلو په تمه يې په شپه کې خپل زامن کابل ته ولېږل او شاه‌محمود ته يې اطلاع ور کړه. په شاه‌زمان پسې يې دروازې وتړلې او له خپلو ټولو ور سره ملګرو سره يې د نوي پاچا سړيو ته لاس تړلی تسليم کړ. شاه‌محمود د فتح

خان ورور نواب اسد خان ته د شاه‌زمان د ړندولو وظیفه ور کړې وه او هغه هم له تسلیمېدلو سره سم په سترګو ړوند کړ. د شاه‌زمان صدراعظم سردار رحمت الله خان او د هغه ورور سردار محمدخان او سردار محمدزمان‌خان بامیزی یې په هغه ورځ په بالاحصار کې اعدام کړل. په دې توګه د شاه‌زمان نهه کلنه پاچهي، چي له لومړۍ ورځي تر پایه پوري د لویو او کوچنیو جنګونو او تاریخي پېښو داستان دئ، پای ته ورسېده او نه یوازي په کابل کي بلکي په افغانستان کي یوه نوې دوره پیل سوه، چي له هره پلوه یې له احمدشاه بابا څخه نیولې تر شاه‌زمان پوري، له مخکنیو کسانو سره توپیر درلود.

د شاه‌زمان کشر ورور شجاع‌الملک، چي دا وخت په پېښور کي وو او عمر به یې ایله شلو کالو ته رسېدی، د خپل ورور د کسات اخیستلو له پاره میدان ته را ولوېد او په ډېر لږ وخت کي یې له شاه‌محمود څخه چي د تېمورشاه په زامنو کي یو له تر ټولو عیاش او بې‌کفایته پاچا وو، قدرت ونیوی. خو د خپل ورور شاه‌زمان په شفاعت یې له وژلو او ړندولو څخه تېر سو او له نورو شهزاده‌ګانو سره یې په بالاحصار کي بندي کړ. ځیني افغاني مؤرخین په دې عقیده دي، چي شاه‌زمان د خپل لوړ همت او لوی والي له امله هغه وباخښه. (کهزاد، ص: ۳۶۴)

که څه هم چي تاریخي متون د شاه‌زمان د شفاعت او د شاه‌محمود د بخښل کېدلو په برخه کي اتفاق نه لري، خو که چیري د مرحوم کهزاد دغه خبره ومنو، نو د شاه‌زمان دغه بې‌ځایه ترحم د هغه د ورور شاه‌شجاع د سلطنت په مقابل کي د شاه‌محمود او نورو مشرانو د راتلونکو ښورښونو او بالآخره د هغه د سلطنت د نسکورېدلو او په نتیجه کي بیرته قدرت ته، د شاه‌محمود په څېر یوه کمزوري او عیاش شخصیت د رسېدلو اصلي عامل سو. که څه هم چي موږ د شاه‌شجاع د پلانونو او په نظر کي نیول سویو او یا عملي سویو اصلاحاتو په باب، که یې احیاناً درلودل، کوم سند په لاس کي نه لرو، خو دونه ویلای سو چي که د هغه په مقابل کي ښورښونه سوي نه وای، نو په ملک کي عمومي آرامي او امنیت به طبعاً د خلګو په ګټه وای. شاه‌شجاع به د رنجیت سینګهـ او نورو سیالانو په بندیخانو کي نه سپکېدلای او د انګرېزانو خیرات ته به نه مجبوره کېدلای او که د کشمیر او سند په څېر مځکي او ملکونه د کابل له واکمنی څخه وتلای، نو لږ تر لږه د ډیورنډ کرښه یا د افغانستان او پاکستان تر منځ دغه اوسنی ظالمانه پوله به، چي وروسته به بحث ور باندي وکړو، په تېره بیا په دې اوسني شکل موجوده نه وای، ځکه چي د همدې ظالمانه کرښي اساس هم د شاه‌شجاع او رنجیت سینګهـ تر منځ په لومړنی موافقې کي ایښودل سوی دی.

## شاه‌شجاع

شاه‌شجاع که د افغانستان د تاریخ تر ټولو جنجالي شخصیت نه وي، نو یو له تر ټولو جنجالي کسانو او مشرانو څخه دی، چي د افغانستان په تاریخ کي؛ په تېره بیا د افغان مؤرخینو له خوا محکوم سوی او بالآخره د پردیو ګوډاګی بلل سوی دی. خو شاه‌شجاع له تخت څخه د لوېدلو او په ژوند کي د ډېرو سختیو تر لیدلو او انګرېزانو ته له تسلیمېدلو څخه مخکي، د سدوزیو له نورو شهزاده‌ګانو سره چنداني توپیر نه درلود او د بل هر شاهزاده په څېر یې د تخت او قدرت د نیولو او ساتلو له پاره خپلي وروستی هلي ځلي کولې. شاه‌شجاع که موږ د پردیو او انګرېزانو ګوډاګی بولو، نو هغه د انګرېزانو په همکاري، قدرت ته له دوهم ځل رسېدلو څخه وروسته خبري دي. د شاه‌شجاع لا یوه لویه ښېګڼه دا وه، چي عالم او شاعر سړی وو او د پښتنو په تاریخ کي لومړنی پاچا وو، چي خپل د ژوند خاطرات یې ولیکل او نن ورځ مؤرخین د یوه مستند اثر په حیث استناد ور باندي کوي. له دې درکه نو سړی ویلای سي، چي که شاه‌شجاع له لویه سره په قدرت کي پاته سوی وای او د انګرېزانو لاسونه افغانستان ته را اوږده سوي نه وای او ده په کراره خپلي پاچهۍ ته دوام ور کړی وای، نو که یې بله کارنامه پرې ایښې نه وای، ښایي علم او فرهنګ ته یې خدمتونه هم کړي وای.

د شاه‌شجاع عصر ته یو نیژدې مؤرخ د هغه په باره کي لیکي: "شاه‌شجاع‌الملک یو حلیم، صابر او باعزمه پاچا وو. د هغه ټول عمر په لښکرکښیو کي تېر سو او د خپلي پاچهۍ په وخت کي یې له خپلو دښمنانو سره ډېرش جنګونه کړي دي. څرنګه چي قسمت ورته پېښه کړې وه، نو په اکثرو جنګونو کي یې ماته وخوړه او سره له هغه له خپله عزمه و نه ګرځېدی او تل یې د دښمنانو ځپلو ته ملا تړلې وه. د شعر روانه طبع یې درلوده او دېوان یې، چي له ښو او له احساسه ډکو شعرونو څخه جوړ دی، تر اوسه پوري په هندوستان، ایران او افغانستان کي پیدا کیږي او د نظم علاقه‌مندان خوند ور څخه اخلي " (درانی، ص: ۲۷۶)

حقیقت دا دی، چي د اکثرو جنګونو په میدانونو کي د شاه‌شجاع ماته خوړل، چنداني د قسمت خبره نه وه، بلکي په خپله شاه‌شجاع چنداني د جنګ د میدان او توري سړی نه وو. هغه نه ښه جنرال وو او نه زړه‌ور سړی وو او که یې کله فتح په نصیب سوې ده، نو هغه یې د ښو جنرالانو کمال

وو. په (۱۸۳۴م.) کال کي یې د کندهار په جنګ کي، چي هم د بریتانیې د پوځ افسران او سلاکاران ور سره ملګري ول او هم یې ښه توپخانه او عصري وسلې درلودلې او هم یې د پوځیانو شمېر زیات وو، تقریباً ګټلی جنګ بایلود؛ د جنګ له میدان څخه یې یو دم تېښته وکړه او که امیر دوست‌محمد خان غوښتي وای ژوندی یې هم نیولای سوای.

یوه خبره باید هېره نه کړو، چي له شاه‌شجاع سره خپلو ورونو، ورېرونو، د کورنۍ تر ټولو نیژدې دوستانو، ملګرو او تر ټولو باوري جنرالانو او قومي مشرانو دومره پرله پسې خیانتونه وکړل او دومره زیات یې دښمن ته یوازي پرېښود، چي هغه بالآخره پر هر چا باندي باور له لاسه ور کړ. که یې خپل طبیعي بې‌زړه‌توب درلود، نو دې بې‌باورۍ یې جنګي روحیه نوره هم کمزورې کوله.

پرله پسي خواریو او شکستونو او له خپلې ټولي پراخي کورنۍ او نوکرانو سره، څه باندي شل کاله د انګرېزانو سترخان او خیرات ته کښېنستلو د هغه په شخصیت کي باید ژور تغیرات را وستلي وي. شاه‌شجاع پخوا هم چنداني د جنګ د میدان مېړه نه وو، خو دې پرله پسې ګدایي‌ګرۍ هغه غرور ور څخه سلب کړ، چي د کابل پر تخت به یې د ناستي پر وخت درلود. ځکه اوس د افغانستان په تاریخ کي دومره منفور او بدنام دی، چي د بدۍ او د پردیو د نوکرۍ مثال ګرځېدلی دی. که د افغانستان کوم واکمن ته د شاه‌شجاع خطاب وسي، هغه یې ځان ته تر ټولو سپک نوم او توهین بولي. که څه هم چي شاه‌شجاع په تاریخ کي محکوم دی، خو د هغه له وژل کېدلو څخه څه کم دوه سوه کاله تېر سوي دي او کله چي اوس د هغه په باره کي یا قضاوت کوو او یا لیکنه ور باندي کوو، باید چي یو څه په سړه ماغزو ورته کښېنو. موږ باید هغه ته د یوه انسان په سترګه وګورو او کله چي د هغه په باره کي قضاوت کوو، نو دا مو باید په نظر کي وي، چي د ده په زمانه کي ډېر داسي مشران او د پاچهۍ د تخت د نیولو هواداران اوسېدل، چي هم تر ده نوکرصفته، هم تر ده بې زړه، هم تر ده ظالم او هم د شخصیت له هره اړخه تر ده کمزوري ول؛ چي وروسته به په لنډه توګه بحث ور باندي وکړو.

شاه‌شجاع د شاه‌زمان د بشپړي ماتي خوړلو او په نتیجه کي د شاه‌محمود له خوا د ړندېدلو او بندي کېدلو په وخت کي د پېښور والي وو. له هغه ځایه یې د شاه‌محمود څخه د تخت د نیولو او د خپل ورور د کسات اخیستلو له پاره حرکت وکړ. د شاه‌محمود له پوځونو سره یې په پېښور، جلال آباد، سرخ رود او څو نورو ځایونو کي لویې او وړې نښتې وکړې او په ټولو کي یې ماته وکړه. شاه شجاع د ځینو تاریخي متونو او د هغه د خپلو خاطراتو په استناد، بالآخره په زرمت کي د غلجیو

سیمو ته ولاړ او د غلجیو له مشرانو سره، چي تازه یې د شاه‌محمود د جنرالانو له لاسه سخته ماته خوړلې او درانه تلفات یې ور کړي ول، یو ځای سو. د مرحوم کهزاد دا ادعا، چي د عروج بارکزایي د لیکوال په استناد یې کړې ده، د تأمل وړ ده، چي وایي: شاه‌شجاع د شاه‌محمود پر ضد د غلجیو د پارولو او اغوا کولو کار پیل کړ. وروسته د غلجیو پاڅون پیل سو، یو کال یې دوام وکړ؛ په نتیجه کي غلجیو ماته وکړه او د شاه‌محمود جنرالانو مختارالدوله شیرمحمدخان، احمد خان نورزایي او اکرم خان غلزایي شپږ زره تنه غلجي ووژل او د هغوی له سرونو څخه یې په کابل کي له تپه خاک بلخ سره کله منار جوړ کړ. (کهزاد، ص: ۳۵۶-۵۷)

مرحوم کهزاد وروسته لیکي چي د غلزاییانو رئیس عبدالرحیم خان، چي د پاچهۍ د نیولو دعوه یې کوله، له خپلو دوو زامنو او صدراعظم شهاب الدین خان سره ونیول سول او په توپ کي والوزل سول. په دې جنگونو کي د شپږو زرو په شاوخوا کي غلجي ووژل سول. (هغه کتاب، ص: ۳۵۷)

له دې متونو څخه په ډاګه ښکاري، چي شاه‌شجاع د غلجیو د ښورښ په پیل کولو کي برخه درلودلې او حتی مشرتوب یې کړی دی، خو په دې متونو کي د دغه لوی ښورښ، چي لمن یې د لوګر او کابل تر شاوخوا پوري پراخه سوې او تقریباً یو کال یې دوام کړی دی، له ځېل کېدلو څخه وروسته د شاه‌شجاع نوم نه اخیستل کیږي. که شاه‌شجاع په دې لوی ښورښ کي لاس درلودلی او یا یې مشرتوب کولای، نو تاریخي متونو به حتماً د دې لوی ښورښ د ځپل کېدلو څخه وروسته، د هغه تښتېدو او پټېدلو ته اشاره قدر کړې وای.

د شاه‌شجاع له خپلي لیکني څخه ښکاري، چي هغه د غلجیو سیمي ته هغه وخت ورغلی دی، چي دا لوی جنگ پای ته رسېدلی او هغوی ته سخته ظالمانه سزا ور کړه سوې ده. دی لیکي: "څرنګه چي د غلزاییانو خانان او عادي خلک د هغو پرله پسې جنگونو له امله چي د شاه‌محمود له پوځونو سره یې کړي ول، ډېر زیانمن سوي او قتل سوي ول او له شاه‌محمود څخه یې د خیر تمه نه درلوده، نو زموږ ور تګ یې په نېک فال ونیوی او لوی او واړه یې ټول زموږ خدمت ته حاضر سول. په دغه وخت کي د اخلاص قلیخان هوتک زوی عالیجاه شکرالله خان، فتح خان بابکر زایي او شهاب الدین خان توخي زموږ خدمت ته حاضر سول او عرض یې وکړ، چي که د فتح خان بابکرزایي لور په نکاح کړم نو دا به لویه نېکمرغي وي. څرنګه چي د هغو خانانو دغه پیشنهاد له نهایت اخلاص څخه وو او زموږ له مقاصدو سره یې هم سر خوړ، نو موږ د هغوی دا عرض منظور

کړ..." (شاه‌شجاع، ص: ۷)

له دې متن څخه په څرګنده معلومېږي، چې شاه‌شجاع د غلجیو په ښورښ کې لاس نه درلود، بلکې د ښورښونو له ځېل کېدلو څخه وروسته د هغوی سیمې ته ورغلی او هغوی هم خواخوږي ور سره ښودلې او په راتلونکو جنګونو کې یې ملاتړ کړی دی. شاه‌شجاع د زرمت د سیمې نوم نه اخلي، بلکې وايي چې له خیبر څخه د وزیریستان له لارې د کاکړو سیمې ته، چې ټاکلی نوم یې نه یادوي، ولاړ او له هغه ځایه د غلجیو علاقې ته ورسېدی. دا چې د غلجیو له علاقې څخه یې مطلب کوم ځای دی، په کتاب کې څه نه وايي، خو څرنګه چې له هغه ځایه شال او مستونګ ته د تللو نیت کوي، نو دا سیمه باید د زابل شاوخوا وي.

"وروسته مو له دووسوو سپرو سره د شالکوټ او مستونګ خوا ته، چې د بلوچستان سرحد دی، د تللو نیت وکړ، خو څرنګه چې هوا ډېره سړه وه او واورې او بارانونه اورېدل، نو مو فیصله وکړه چې ژمی به همدلته تېر کړو. زموږ سره پیسې هم ختمې سوې وې او زموږ له ښې طالع، په دغه وخت کې له شکارپوري څخه د سوداګرو یوه قافله د کندهار پر لور روانه وه، قافله مو را وګرځوله او له سوداګرو څخه مو د نغدو پیسو غوښتنه وکړه او ورته و مو ویل چې هر کله مو پاچهي ونیوله، ستاسي پیسې به بیرته در کړو. سوداګر چې تل د شهزاده کامران او فتح خان څخه بېرېدل او هر وخت یې د هغوی قافلې لوټلې او مالونه یې په زور ور څخه اخیستل، زموږ په وعدو راضي سول او راته و یې ویل، چې هر څه مو په کار وي هغه واخلئ. د خدای تعالی منت دې را باندې وي، چې کله مو د سلطنت چارې په لاس کې واخیستلې، نو تر ټولو لومړنی کار مو دا وو، چې د سوداګرو پیسې مو بیرته ور کړې او لا مو نورې نیکی هم ور سره وکړې. مطلب دا چې له سوداګرو څخه د پیسو له تر لاسه کولو وروسته مو د شال او مستونګ خوا ته مخ ونیوی او کوږک ته ورسېدلو. (هغه کتاب، ص: ۷-۸)

په دغه وخت کې چې شاه‌محمود تازه د غلجیو پراخ مقاومت ځپلی وو، په کابل کې یوه لویه پېښه منځ ته راغله او هغه د شیعه او سنیانو تر منځ جګړه وه، چې په لومړي سر کې وړه، خو وروسته ډېره پراخه سوه او په زرګونو خلک یا پکښې قتل سول او یا سخت تاوان ورته ورسېدی. په کابل کې ځینو قزلباشو یو سُني تاجک هلک په زور او په ډله‌ایز شکل بې‌عزته کړی او یا داسې ادعا کېدله، چې دا پېښه واقعیت لري. په داسې وختونو کې چې خلک د تبلیغاتو تر تأثیر لاندې راغلي او د مغرضو کسانو او په ځینو وختونو کې د مُلایانو احساساتي ویناوو یې مذهبي تعصب تحریک کړی او ټول یې عصبي کړي وي، د حقیقت معلومول ګران، څه چې بېخي غیرممکن سي. د افغانستان

په تاریخ کې د داسې پېښو کمی نسته او حتی اوس هم لا جریان لري.

د کابل مشهور مُلا او روحاني شخصیت میر واعظ د سنیانو داعیه پر حقه وبلله او پر قزلباشو باندې یې د حملې امر ور کړ. په داسې وختونو کې مذهبي اقلیتونه، په تېره بیا چې خلکو ته د مالونو د لوټلو زمینه برابره سي، ډېر زیات تاوانونه ویني. د کابل سنیانو په یوه سلا، چې وروسته یې شمېر زرګونو ته ورسېدی، د قزلباشو پر کورونو او دوکانونو باندې هجوم ور وړ. کورونو او دوکانونو ته یې اورونه واچول او چې څوک قزلباش یې مخې ته ورتلی واژه یې. قزلباشو هم وسلو ته لاس واچاوه او په ښار کې ډېر خونړی جنګ پیل سو. شاه‌محمود خپل دوه جنرالان، مختارالدوله شیرمحمدخان او احمدخان نورزی د دې فتنې د کرارولو له پاره واستول، خو هغوی د فتنې د کرارولو پر ځای د میر واعظ خوا ونیوله او خلک یې حملو او چور او تالان ته تشویق کړل. دا وخت فتح خان په بامیان او شاوخوا کې د هزاره‌نشینه سیمو څخه د مالیاتو د ټولولو له پاره هغې خوا ته تللی وو او میدان د خانانو او مغرضینو د دسیسو له پاره خالي وو. فتح خان او د هغه کشر ورور سردار دوست‌محمد خان ځانونه ډېر ژر کابل ته ورسول، خو دا وخت شاه‌شجاع د شیرمحمدخان او احمدخان نورزي په تحریک او تشویق، کابل ته رسېدلی وو او د فتح خان قواوو چې شمېر یې ډېر کم وو، ماته وکړه. فتح خان د کندهار خوا ته وتښتېدی او شاه‌محمود په کابل کې د شجاع‌الملک لاس ته ولوېدی.

ځیني مؤرخین وایي چې شاه‌زمان له شاه‌شجاع څخه وغوښتل، چې شاه‌محمود په سترګو ړوند نه کړي، خو درانی (ص: ۱۸۴) او ریشتیا (ص، ۱۲) وایي چې مختارالدوله شیرمحمدخان له شاه‌شجاع څخه د هغه شفاعت وکړ او هغه هم د شاه‌محمود له ړندولو او وژلو څخه تېر سو.

دا دوهم احتمال ځکه سم ښکاري، چې مختارالدوله شیرمحمدخان، چې عمر یې په دسیسو کې تېر کړی وو، له دې وېرېدی چې هسې نه سبا فتح خان او د شاه‌محمود زوی قدرت ونیسي او دی د پاچاهانو په غضب ګرفتار سي، ځکه یې نو د ځان له پاره داسې لاره پرانیستې پرېښودله، چې سبا په جګه غاړه کار ور څخه اخیستلای سي. ضمناً د ریشتیا دا خبره د تأمل وړ ده، چې وایي احتمال لري په کابل کې د شیعه او سُني په جنګ کې او قدرت ته د شاه‌شجاع په رسولو کې، د انګرېزانو لاس موجود وي. ریشتیا دا هم وایي چې مختارالدوله شیرمحمد خان په هند کې شپې، ورځې تېرې کړې وې او هلته یې له انګرېزانو سره تماسونه ټینګ کړي او هغوی د شیرمحمدخان طرفدار ول. (هغه کتاب، ص: ۱۲)

د ریشتیا دا ادعا یوازې د هغه پر ګومان او اټکل ولاړه ده او هیڅ ډول تاریخي استناد نه لري. شاه شجاع تر دغه وخته پورې له انګرېزانو سره هیڅ ډول تماس نه وو درلودلی او د خپلې پاچهۍ په وروستي کال یې د لومړي ځل له پاره د انګرېزانو له سفیر مونستارټ الفینسټون سره ولیدل. دا چې شیرمحمدخان په هند کې شپې، ورځې تېرې کړې وې او ګواکې هلته به یې له انګرېزانو سره لیدلې وې، موږ ته څرګنده ده چې شېرمحمدخان هند ته نه دی تللی او چې څه شپې یې د اوسني افغانستان له حدودو څخه بهر تېرې کړې دي، نو هغه شپې یې د بریتانوي هند پر سترخوان نه وې تېرې کړې، بلکې د تېمورشاه له ویرې، چې د ده پلار شاه‌ولي خان بامیزایي او د هغه زامن او وربرونه یې وژلي ول، په بلوچستان کې پاته سو او څه موده وروسته، ښایي د بلوچستان د واکمن نصیر خان او یا په افغانستان کې د نورو پوپلزیو خانانو او مشرانو د شفاعت له مخې کابل ته راغلی وي. خو تېمورشاه هیڅ وخت په هغه اعتبار و نه کړ او هغه ته یې تر مرګه پورې په حکومت کې وظیفه او مقام ور نه کړ. په دې صورت کې نو د شیرمحمدخان په حق کې د انګرېزانو سره د تماس درلودلو او د هغوی له خوا تحریکېدلو احتمال له امکانه لیرې ښکاري او ضرور نه ده چې یوازې په تشو ګومانونو په لوی لاس د خلکو او د تاریخ د شاګردانو اذهان مغشوش کړو.

د سید قاسم ریشتیا د دې اشتباه سرچینه ښایي د تاریخ سلطاني متن وي، چې وایي انګرېزان له ویرې چې هسې نه شاه‌محمود له قاجاریانو سره دونه نیژدې سي، چې د خپل هیواد چارې هغوی ته وسپارې، نو یې الفینسټون ته وظیفه ور کړه چې افغانستان ته ولاړ سي او له شاه‌شجاع سره تماسونه ټینګ کړي او هغه د تخت او تاج نیولو ته ولمسوي. (درانی، ص: ۱۸۰)

په داسې حال کې چې الفینسټون په (۱۸۰۹) کال کې د شاه‌شجاع د شپږ کلنې پاچهۍ په وروستیو شپو، ورځو کې د لومړي ځل له پاره په پېښور کې له هغه سره وکتل.

په هر صورت د شاه‌محمود د بخښل کېدلو د پېښې په مسئله کې د هیڅ ادعا د ثبوت له پاره کوم سند موجود نه دی؛ البته په خپله شاه‌شجاع د شاه‌محمود د بخښلو په موضوع کې، نه د شاه‌زمان او نه د مختارالدوله شیرمحمدخان نوم یادوي او وایي چې شاه‌محمود او د هغه حبشي ساتونکو ده ته کلام الله مجید شریف شفیع کړ او ده هم امر وکړ، چې شاه‌محمود په عزت او احترام سره لوړ بالاحصار یا بالاحصار بالا ته بوځي. (شجاع، ص: ۱۱)

دا پېښه چې هر ډول سوې وي؛ اوس د تاریخ یوه برخه او هېره سوې پاڼه ده، خو وروستیو پېښو وښودله چې د شاه‌محمود په څېر د یو عیاش، بې‌کفایته او مضر دښمن د بخښل کېدلو پر ځای به د

هغه په سزا رسېدل، هم د شاه‌شجاع او هم د ټول وطن په ګټه وای. که څه هم چې ښايي نور اجتماعي عوامل د ښورښونو او ناکراریو سبب سوي وای، خو لږ تر لږه دا یو عامل به موجود نه وای. که هغه له منځه وړل سوی وای، نو ښايي په وروسته کې د ډېرو بدو پېښو، چې زرګونه افغانان پکښې قتل سول او افغانستان يې د تل له پاره کمزوری کړ، مخه نیول سوې وای. مشهور انګرېز مؤرخ جان ویلیم کې د شاه‌شجاع له خوا د شاه‌محمود د بخښنل کېدلو په باره کې لیکي: "فتح خان وتښتېدی، شجاع‌الملک کابل ته بریالی ننووت او شاه‌محمود يې پښو ته ولوېدی. د هغه چا په حق کې چې د بري په وخت کې يې هيڅ رحم نه وو ښودلی، د شکست او ماتې په وخت کې رحم وښودل سو. دا د شاه‌شجاع په لويي کې شمېرل کيږي، چې د خپلې امپراطورۍ د راتلونکي د ژغورلو له پاره يې څرنګه له شکست خوړلي شاه‌محمود څخه، چې خپل ځان يې د کسات په اخیستلو او ظلم سره شرمولی وو، له کسات اخیستلو څخه ډډه وکړه او له صبر او زغم څخه يې کار واخیست. د شکست خوړلي پاچا سترګي له ړندېدلو څخه معاف سوې، خو له دې څخه وروسته پرله پسې داخلي جنګونو وښودل، چې د شاه‌شجاع دغه د ترحم عمل په سياسي لحاظ څومره غیرسیاسي کار وو" (کې، لومړی جلد، ص: ۲۸)

د شاه‌شجاع پاچهي د شاه‌زمان او د شاه‌محمود د پاچهيو په څېر، له لومړۍ ورځې بيا تر پايه پوري د کورنيو جنګونو، دسیسو، ياغي کېدلو او بیرته ایلېدلو داستان دی. لکه څرنګه چې د شاه زمان او شاه‌محمود د اداري او پوځي سیستم، که يې احياناً درلودی، په باره کې چنداني معلومات نه لرو؛ طبيعي خبره ده، چې د شاه‌شجاع د پاچهۍ په باره کې مو هم اطلاعات او معلومات لږ دي.

د شاه‌شجاع له خاطراتو، چې وايي د کابل پر تخت د کښېنستلو په وخت کې يې عمر اووه‌لسو کالو ته رسېدی، په اساس ویلای سو چې هغه به د خپل ورور شاه‌زمان د پاچا کېدلو، (۱۷۹۳م.) کال، په وخت کې د اتو يا نهو کالو ماشوم وو او شاه‌زمان به ځکه د خپلو نورو ورونو په څېر په بالاحصار کې بندي کړی نه وي، چې هم د ډېر لږ عمر ماشوم او هم يې خپل سکه ورور وو. خو د شاه‌شجاع په خاطراتو کې کلونه یو څه سر نه سره خوري، ځکه دی وايي چې پر تخت باندي د کښېنستلو په کال (۱۲۱۶هـ) کې، چې (۱۸۰۱) میلادي کيږي، د اووه لسو کالو وو؛ په داسي حال کې چې دا د شاه‌محمود د پرزېدلو او د ده د پاچا کېدلو نه، بلکي د شاه‌محمود د پاچا کېدلو کال دی او وروسته وايي چې د دې خاطراتو ليکلو ته مي تر نن ورځې پوري چې (۱۲۴۱) کيږي، دوام ور کړی دی. (شاه‌شجاع، ص: ۱)

وروستۍ سنه (۱۸۲۵) میلادي سره سر خوري؛ خو شاه‌شجاع د خپل کتاب په پای کې د امیر دوست‌محمد خان سره د کندهار په شاوخوا کې د جنګ او ماتې خوړلو او له هغه څخه مخکې او وروسته پېښو په باب بحث کوي او دا وروستۍ پېښې د (۱۸۳۴م.) کال دي. دا چې شاه‌شجاع د پاچا کېدلو سنه غلطه لیکې ،سړی ویلای سي چې د خاطراتو لیکل یې ناوخته پیل کړي او کال به ور څخه غلط سوی وي، خو دا چې د خپلو خاطراتو د پای ته رسولو په سنه کې د نهو کالو توپیر راوړي، سړی څه نه سي ویلای. زه ګومان کوم چې شاه‌شجاع به اصلاً هم په (۱۸۲۵م.) کال کې، چې په لودهیانه کې پروت وو او د کابل د تخت د بیرته نیولو جدي فیصله یې لا نه وه کړې، خپل خاطرات پای ته رسولي او یا به یې د پای ته رسولو فیصله کړې وه، خو کله چې بیا د تخت نیولو یو څه امید ورته پیدا سوی دی، نو دوهم ځل یې بیرته د خاطراتو پیل کولو ته زړه سوی دی او دا یې هېر دي چې په لومړي مخ کې یې ویلي وه، چې خاطرات به دلته پای ته رسوم.

په هر صورت، موږ دونه په یقین سره ویلای سو، چې شاه‌شجاع د پاچا کېدلو په وخت کې د ډېر کم عمر څښتن وو او د لومړیو کلونو اشتباهات یې، چې ځیني یې د ده د سقوط سبب سول، هم ښایي له دغه امله وي.

د شاه‌شجاع د پاچا کېدلو، جنګونو او په ژوند کې له نورو کارنامو څخه داسي ښکاري، چې شاه شجاع صرف یو شهزاده وو او په هیڅ توګه سیاست او یا لږ تر لږه د افغانستان په هغو شرایطو کې، پاچهۍ ته جوړ سوی نه وو. هغه که د سیاست له ډګر څخه لیري، یوازي په ناز او نعمت کې ژوند کړی وای، ښایي د اشعارو ښه دېوانونه یې ترتیب کړي او ښه ادبي خدمتونه یې کړي وای. شاه‌شجاع د خپل پلار تېمورشاه په ژوند کې او د هغه له وفات څخه وروسته بیا په خپله تر پاچا کېدلو پوري، څه باندي پنځلس کاله د ورونو تر منځ جنګونه او د قدرت له پاره د سترګو ړندول، جنګونه او کورونه سوځول ولیدل. هغه ولیدل چې قومي خانان او درباریان، خپلوان او د اعتماد وړ کسان څرنګه له سهاره تر ماښامه د یوه بل پر ضد دسیسې کوي. یو قومي خان او جنرال نن څرنګه د یوه شهزاده له پاره توري وهي او سبا څرنګه په ټوله بې‌شرمي د هغه شهزاده پر ضد توره پورته کوي او تېښته، نیول کېدل، ړندېدل او وژل کېدل یې ګوري. شاه‌شجاع د خپل قدرت شپږ کلونه ټول په دسیسو کې تېر کړل. له ده سره په خپله داسي کسانو او د کورنۍ نیژدې خلکو داسي ناځوانی وکړې، چې ده یې تصور نه سو کولای، خو تر پایه پوري یې سیاسي هوښیاري پیدا نه کړه او همداسي ناکامه مړ سو. هغه په هر چا ډېر ژر اعتماد کاوه او یا به یې ښایي فکر کاوه، چې ټول همداسي دي.

سړی به پر چا- چا بې‌باوره سي او څوک- څوک به له ځانه لیري کړي. زما زړه ته نه لوېږي او په ژوند کې مي نه لوستي او نه اورېدلي دي، چي یو پاچا دي د ده په اندازه غولېدلی او غولول سوی وي. له ده سره به یوه سړي دوه ځله خیانت وکړ، مگر کله چي به یې بخښنه وغوښتله، ده به بیا هم نه یوازي اعتماد ور باندي کاوه، بلکي ډېر حساس مقامونه به یې ور وسپارل. که شاه‌شجاع د پاچا زوی نه وای، زه گومان نه کوم چي په ژوند کي به چا د سیاست په میدان کي برخه ورکړې وای. قسمت داسي پېښنه کړې وه، چي دی هم د تېمور شاه زوی، هم د شاه‌زمان پاچا یوازنی سکه ورور، هم د ورور د له منځه تللو په وخت کي د پېښور په ښېر د مهم او قوي ښار حکمران وو او مهمه دا وه، چي د ژوند تر پایه پوري بې‌پیسو نه سو او هر وخت یې د اجیرو عسکرو د استخدامولو قوت درلود. هغه پر خپلو جواهراتو مین وو؛ هیڅ وخت یې له ځانه نه بېلول او حتی د وژل کېدلو په ورځ یې هم جواهرات ور سره اخیستي او په بالاحصار کي یې خپلو زامنو او کورنۍ ته نه ول پرې ایښي.



شاه شجاع

## شاه‌شجاع د قدرت په کلونو کې

که څه هم چې شاه‌شجاع د خپلو نورو ورونو؛ شاه‌زمان، شاه‌محمود او حاجي فیروزالدین په څېر، د هیواد له پاره له لویه سره کوم خاص سیاسي، عمراني، اقتصادي یا اجتماعي پروګرام نه درلود؛ خو شاه‌شجاع داسي یو سړی وو، چې د پاچهۍ او سیاست کولو الفبا قدر یې هم نه وه لوستې او په ژوند کي یې، چې ټول له حوادثو ډک وو، له هیڅ پېښې څخه نه پند او نه عبرت واخیست. دی په خپله وایي چې په پنځه‌دېرشو جنګونو کي یې برخه اخیستې، چې په ځینو کي یې فتح او نصرت په برخه سوی او په ځینو کي ماته او سرګرداني ور په برخه سوې ده. (شجاع، لومړی مخ)

شاه‌شجاع قدرت ته له رسېدلو څخه تر هر څه مخکي، ملاعاشق شینواری او د هغه خپلوان ونیول. کور، قلا او جایدادونه یې ورته تباه کړل. د هغه ټول مال او دولت یې چور او تاراج ته ور کړ. عاشق شینواری یې په توپ کي والوزاوه او خپلوانو ته یې د هغوی د جرم په اندازه سزا ور کړه. (هغه کتاب، ص: ۱۲)

شاه‌شجاع د خپل مشر ورور شاه‌زمان په خلاف، زیاتره د روغي جوړي سړی وو. کله چې قدرت ته ورسېدی، نو د خپلو دښمنانو د پخلا کولو له پاره یې تلاښ پیل کړ. خپل وراره شهزاده حیدر یې د احمدخان نورزي او د مختارالدوله شیرمحمدخان د زوی عطامحمد خان او پنځو زرو عسکرو سره کندهار ته، چې تر دغه وخته پوري د شهزاده کامران په لاس کې وو، واستاوه. احمدخان نورزی هغه سړی وو، چې شاه‌زمان، د شاه‌محمود او فتح خان سره د مقابلې کولو له پاره واستاوه او هغه د قلات په جنګ کي له خپلو پوځونو سره شاه‌محمود ته سلامي سو او د شاه‌زمان د تخت د نسکورېدلو اساسي عامل سو. شاه‌شجاع نه یوازي له هغه سره بد و نه کړل، بلکي اعتماد یې په وکړ او د خپلو لښکرو قومانده او د خپل وراره سرپرستي یې ور وسپارله.

احمدخان نورزي ته یې وویل چې که کامران جګړه نه کوله، پخلا یې کړئ او کابل ته یې راولئ او که نه وي، نو له کندهاره یې وتلو ته مجبور کړئ. کامران بې‌له جنګه له کندهاره وتښتېدی او فراه ته ولاړ. فتح خان هم معروف ته وخوځېدی او له مقاومته یې لاس واخیست. څه موده وروسته شهزاده قیصر، چې د خپل پلار شاه‌زمان د واکمنی په وخت کي د هرات نایب‌الحکومه وو او د شاه محمود د لښکرو له لاسه یې ماته کړې وه او د کندهار په شاوخوا کي ګرځېدی، شاه‌شجاع ته

عریضه ولیکله، چي که د کندهار حکومت ده ته ور کړي نو ډېر به خوشاله سي. شاه‌شجاع یې هم په خوله وکړه او شهزاده حیدر یې بیرته کابل ته وغوښت.

په دغو ورځو کي مختارالدوله شیرمحمدخان د فتح خان د بخښنل کېدلو او دربار ته د را بللو او نازولو غوښتنه ور څخه وکړه. شاه‌شجاع هم ور سره ومنله. فتح خان یې را وغوښت، و یې نازاوه او غوښتل یې چي په خپله د کشمیر او دیره‌جاتو خوا ته ولاړ سي. له فتح خان څخه یې هم وغوښتل چي په دې سفر کي ور سره ملګری سي، مګر هغه د سفر د تیاري په پلمه، د څو ورځو له پاره مهلت وغوښت او کله چي شاه‌شجاع د پېښور پر لور حرکت وکړ؛ فتح خان هم کندهار ته ولاړ. هلته یې له شهزاده قیصر سره ولیدل، هغه یې وغولاوه، د کابل د تخت د نیولو وعده یې ور سره وکړه او د شاه‌شجاع په مقابل کي یې یاغي کړ.



د شاه‌شجاع دربار، کابل بالاحصار ۱۸۰۹ع

د هندو د واقعه نګار موهن لال دا ادعا د بشپړ تأمل وړ ده، چي وایي فتح خان ځکه له شاه‌شجاع سره سفر کولو ته حاضر نه سو، چي شاه‌شجاع د خپل وزیر اکرم خان په تحریک غوښتل، چي

مختارالدوله شیرمحمدخان او فتح خان له منځه یوسي. خو فتح خان او شیرمحمدخان ته چا دا خبره ورسوله او فتح خان د شاه‌شجاع له حرکت کولو څخه ځو ورځي وروسته وتښتېدی. (موهن لال، لومړی جلد، ص: ۳۹)

لومړی خو که شاه‌شجاع په ریشتیا هم د خپل طبیعت په خلاف داسي غوښتنه درلودلای، نو د کشمیر پر لور یې له حرکت کولو څخه مخکي د خپلو دښمنانو چاره کوله. دوهم که چیري دا دسیسه ریشتیا وای نو مختارالدوله د شاه‌شجاع د پاچهۍ تر پایه پوري له شاه‌شجاع سره پاته کېدلای نه سوای. دریم که چیري دا دسیسه ریشتیا وای نو فتح خان له یو ځل تښتېدلو څخه وروسته، بل ځل په شاه‌شجاع باور نه کاوه او د هغه دربار ته نه حاضرېدی او څلورم لا دا چي که چیري د شاه شجاع د له منځه وړلو له پاره چا دسیسه کولای، نو د هغې د افشا کېدلو امکانات موجود ول. په دغه راز دسیسو کي شریک خلک معمولاً یا د سر له وېري او یا د امتیاز د تر لاسه کولو له پاره، د قدرت خاوندانو ته شیطانت کوي او دسیسه کوونکي تباه کوي، مگر کله چي په خپله پاچا او صدراعظم د چا د له منځه وړلو له پاره دسیسه کوي، نو د داسي راز افشاء کېدل ډېر احتمال نه لري؛ ځکه چي دغه ډول رازونه یوازي له پاچا او وزیر سره وي او خبره تر عملي کېدلو وروسته رسوا سي.

ویل کیږي چي فتح خان دوې میاشتي د مختارالدوله شیرمحمدخان په کور کي تېري کړې او شاه‌شجاع هغه توجه چي فتح خان یې انتظار درلود، ورته و نه کړه. شاه‌شجاع له فتح خان سره د خپلو نورو درباریانو په څېر سلوک وکړ. فتح خان داسي سړی نه وو، چي د اکرم خان تر لاس لاندي یې، چي هم په عقل او هم په توره د فتح خان لاس ور باندي بر وو، کار او خدمت او یا ښایي جنگي عملیات کړي وای. فتح خان د شاه‌شجاع په دربار کي هغه مقام غوښت، چي د شاه محمود په دربار کي یې درلود او یا لږ تر لږه د شاه‌شجاع له خوا یې زیاته توجه غوښته. له شاه‌شجاع سره د فتح خان د مخالفت لوی علت دغه موضوع وه. هغه ځکه پر شاه‌شجاع باندي شهزاده قیصر او شاه‌محمود ته ترجیح ور کوله، چي هغوی د ده په لاس کي لوبېدل. پاچهي به د هغوی وه او قدرت به د ده وو.

په هر صورت؛ شاه‌شجاع ټول ژمی بې‌غمه په پېښور کي تېر کړ او د پسرلي په موسم کي چي فتح خان او شهزاده قیصر کابل ته را روان سوي ول، د کابل پر لور روان سو. هغوی کابل ته دونه نیژدې سوي ول چي د میدان سره نیژدې د شاه‌شجاع له لښکر سره مخامخ سول. مگر څرنگه چي فیض الله خان پوپلزی له فتح خان څخه بېل او شاه‌شجاع ته سلامي سو، نو فتح خان او قیصر له جنگه پرته

وتښتېدل او کندهار ته ولاړل. شاه‌شجاع هم بېرته کابل ته ستون سو. (شاه‌شجاع، ص: ۱۴)

دا چې شاه‌شجاع سوله خوښوونکی پاچا وو او تر جنګ یې سولې ته ترجیح ور کوله، دا د هغه خپل کار وو، خو دا چې یو پاچا د فتح خان په څېر له یوه تکړه جنرال او لوی دښمن او له خپل یاغي وراره شهزاده قیصر سره جنګېږي، هغوی ته ماته ور کوي او دی بېرته په بې‌غمه زړه کابل ته را ستنېږي او یا له فتح خان او شهزاده کامران سره په جنګ کې هغوی ته ماته ور کوي او کامران فراه ته تښتي؛ د ده په جنګي قاموس کې تعقیب نه وو، چې په کامران پسې فراه ته ورغلی وای او په دغه حساس او نازک وخت کې د کندهار په څېر یو حساس ښار، چې د پوپلزیو د اقتدار مرکز وو، یوه واړه او بې‌تجربې وراره ته ور سپاري او بیا یې له هغه څخه اخلي او بل نالایقه او کمزوري شهزاده قیصر ته، چې ټول عمر له شاه‌شجاع سره نمک‌حرامي او خیانت کوي، سپاري. خپل تر ټولو قوي دښمن فتح خان بخښي او له ځان سره یې ملګری کوي. دونه باور ور باندې کوي، چې په کابل کې یې پرېږدي او دی په خپله پېښور ته روانېږي. په جګدلک کې د فتح خان له تېښتې او کندهار ته له تللو څخه خبرېږي؛ مګر بیا هم پېښور ته ځي او هلته په بې‌غمه زړه، لکه هیڅ پېښه چې نه وي سوې، ټول ژمی په عیش او نوش تېروي او خپل دښمنان دسیسو کولو ته خوشې کوي. فتح خان ته، چې په خپل وخت کې ښايي د افغانستان تر ټولو تکړه او زړه‌ور جنرال وو، له میدان سره نیژدې ماته ور کوي. هغه د ده د تاج او تخت له مدعي شهزاده قیصر سره کندهار ته ځي او شاه‌شجاع په بشپړه بې‌غمي کابل ته ستنېږي او د هغه تعقیب لازم نه بولي. دا اشتباهات نه بلکې ساده‌ګي او حتی بې عقلي ده او سړی حیرانېږي، چې دومره ساده سړي پر هغه افغانستان باندې، چې ټول د ده د تخت او تاج له دښمنانو ډک وو، څرنګه شپږ کاله پاچهي وکړه؟

شاه‌شجاع یو څه وخت په کابل کې بې‌غمه شپې تېرې کړې. په دغه موده کې یې د بخارا د پاچا حیدرشاه له خور سره، چې له بخارا څخه یې ورته را لېږلې وه، واده وکړ او وروسته یې د کندهار خوا ته د حرکت کولو فیصله وکړه. کندهار ته له نیژدې کېدلو سره شهزاده قیصر وتښتېدی او فتح خان بیا هم فراه ته ولاړ او ده د خپل معمول سره سم، هغه تعقیب نه کړ. څو ورځې وروسته بیا هم مختارالدوله شېرمحمدخان او په خپله شاه‌زمان د شهزاده قیصر شفاعت وکړ. شاه‌شجاع بیا هم هغه وباخښه؛ البته بده خو دا چې بېرته یې د کندهار په څېر په یوه حساس ولایت کې، چې د پرله پسې ښورښونو مرکز ګرځېدلی وو، د نایب الحکومه په حیث مقرر کړ.

شاه‌شجاع په بې‌غمه زړه د سند، ډېره‌جاتو او کشمیر د مالیاتو د ټولولو له پاره، چې د ده په قول له څو کلونو راهیسې پاته ول، روان سو. په سند کې یې د مالیاتو د باقیاتو پر سر له چنو وهلو څخه وروسته شل لکه کلداري مالیات واخیستل او لس لکه یې خلکو ته وبخښل. البته سندیانو د مالیاتو تر څنګ شاه‌شجاع ته د هغه له شانه سره سم سوغاتونه، چې پیلان، آسونه، اوښان، زرین کمربندونه، جواهر نشان خنجرونه او توري، قیمتي لباسونه او د ښکار بازونه پکښې شامل ول، هم ور کړل. دلته موږ د مالیاتو تر څنګ له یوه بل ملاماتوونکي رواج سره مخامخ کېږو، چې هغه په دغه راز وختونو کې مهماني ده. د سند خلکو د شاه‌شجاع درباریانو، د کورنۍ غړو او خپلوانو ته شپږ لکه روپۍ د مهمانۍ په توګه ور کړې. (هغه کتاب، ص: ۱۷)

که دا پیسې د سند له څو کلنو باقیاتو سره، چې دېرش لکه روپۍ حساب سوي دي، مقایسه کړو، نو دا بې‌اندازې زیاتې پیسې او ډېر ظالمانه رواج او د خلکو پر اوږو یو اضافه دروند بار وو. د شاه شجاع د لومړۍ پاچهۍ له لومړیو کلونو څخه تقریباً سل کاله وروسته، د امیر عبدالرحمن خان او امیر حبیب‌الله خان په زمانو کې، د یو عادي مامور میاشتنۍ تنخوا پنځلس روپۍ وه. په دې حساب نو د مهمانۍ د پاره په دغه اندازه پیسې، چې د سند خلکو او سوداګرو پر مالیاتو برسېره باید تهیه کړې وای، ډېر ظالمانه او لوی رقم وو.

شاه‌شجاع د سند له میرانو څخه د مالیاتو له اخیستلو وروسته، ایله شکارپور ته رسېدلی وو، چې له کابل څخه یو ډېر خطرناک خبر ورته ورسېدی. د ده ورور او پخوانی پاچا شاه‌محمود په بالاحصار کې له ټولو بندي شهزاده‌ګانوسره تښتېدلی وو. نور شهزاده‌ګان چې د کابل په شاوخوا کې پټ سوي ول، په دوو، دریو ورځو کې ټول ونیول سول، خو شاه‌محمود د هزاره‌جات له لارې فراه ته، چې د ده زوی کامران حکومت پکښې کاوه، ځان ورساوه. که څه هم چې له بالاحصار څخه د شاه‌محمود په تښتېدلو کې باید قزلباشو ډېر لوی لاس څکه درلودلی وي، چې لومړۍ خو هغه د ایران د پاچا فتح‌علي‌شاه په مستقیمه مرسته قدرت ته رسېدلی وو او دوهم دا چې د خپلې لنډې پاچهۍ په وروستیو شپو، ورځو کې یې د سنیانو په مقابل کې د شیعه‌ګانو طرفداري کړې وه. قزلباشو باید هم د هغه د نېکۍ حق ادا کړی او هم که په آینده کې بیا قدرت ته رسېدلای، نو د پاچا ملګرتوب یې تر لاسه کړی وای. ویل کیږي چې د شاه‌محمود په خوشي کولو کې د کابل د ښار مشهور خطیب او روحاني مشر میر واعظ هم لاس درلود. میر واعظ چې په کابل او د هیواد په شمالي سیمو کې یې روحاني نفوذ خپور وو او هر چا د پیر او مرشد په سترګه ورته کتل، د بالاحصار

د محافظینو قوماندان جانفشان خان، چي پر میر واعظ باندي یې په هیڅ صورت بدګوماني ته لاره نه سوای ور کولای، په یوه پلمه په بندي‌خانه کي د شاه‌محمود او نورو شاهزاده‌ګانو بندي‌خانې ته وغوښت او هلته یې وواژه او شاه‌محمود او نور شاهزاده‌ګان ټول وتښتېدل. دا نو هغه میر واعظ دی، چي د شاه‌محمود د حکومت پر ضد یې شیعه‌ګان پارول او له شاه‌شجاع سره یې مرسته کوله او د شاه‌شجاع پر ضد یې د هغه له وراره او شیرمحمدخان مختارالدوله سره مرسته کوله او کله چي شیرمحمدخان له شاه‌شجاع سره په جنګ کي ووژل سو، بیرته یې د قیصر او شاه‌شجاع تر منځ په روغه جوړه کولو کي هلي ځلي کولې.

شاه‌شجاع په دغه وخت کي په شکارپور کي په سیر او ښکار او عیش و عشرت لګیا وو او د کابل په دومره خطرناک خبر کي یې ری و نه واهه. له بندي‌خانې څخه د شاه‌محمود تېښته یې د یوه عادي بندي تېښته وګڼله او خپلو مجلسونو ته یې دوام ور کړ. مختارالدوله شیرمحمدخان چي شاه شجاع د کشمیر د یاغي حاکم د اېلولو او مالیاتو د اخیستلو له پاره لېږلی وو، د کشمیر په جنګونو کي بریالی سو او خپل زوی عطامحمد خان یې د کشمیر د نایب‌الحکومه په حیث مقرر کړ. هغه په کشمیر کي د کابل له پېښو څخه خبر سو او پرته له دې چي په شکارپور کي د شاه‌شجاع حضور ته ور سي، د پېښور له لاري یې ځان کابل ته ورساوه او په کابل کي له شهزاده قیصر سره په دسیسو لګیا سو. قیصر یې پر شاه‌شجاع باندي حملې کولو او د کابل د تخت نیولو ته تشویق کړ. دواړو د پېښور پر لور حرکت وکړ، خو له شاه‌شجاع سره په جنګ کي مختارالدوله ووژل سو او قیصر بیرته په تېښته کابل ته ولاړ او د میر واعظ په مشوره په شمالي سیمو کي پټ سو.

شاه‌شجاع تقریباً ټول هغه اشتباهات، چي د ده د مشر ورور شاه‌زمان د سقوط باعث سوي ول، تکرار کړل او په همدغو اشتباهاتو کي له منځه ولاړ. د ده پلار تېمورشاه د مختارالدوله شیرمحمدخان پلار، شاه ولي خان بامیزی، له خپلو زامنو او ورېرونو سره وژلی وو. نو ده څرنګه په شیرمحمدخان او د هغه په زامنو اعتماد کولای سوای او څرنګه یې د مختارالدوله شیرمحمدخان په خوله او خواست سیاسي مجرمین او د پاچهي دښمان عفو کولای او نازولای سوای. د ده د پاچهي په وروستي کال همدغه شیرمحمدخان په ډېر حساس وخت کي ورته یاغي سو؛ د ده وراره شهزاده قیصر یې له لاري وایست او له ځان سره یې ملګری کړ او د شاه‌شجاع سره د جنګ میدان ته ووت او د جنګ په میدان کي ووژل سو. شهزاده قیصر د جنګ له میدانه وتښتېدی؛ په کابل کي یې له میر واعظ سره کتلي ول او د هغه په سلا کوهستان ته تښتېدلی وو. کله چي شاه‌شجاع کابل ته

ورسېدی، نو بیا یې هم د میر واعظ په مشوره، پر شهزاده قیصر باندې خانان او مشران مرکه کړل او هغه یې بیرته پخلا کړ او کابل ته یې را وست. شاه‌شجاع فیصله وکړه، چې له دې وروسته به شهزاده قیصر ته نه نایب‌الحکومګي ور کوي او نه به د کوم ځای حکومت ور سپاري، بلکې هر وخت به له پاچا سره ملګری وي؛ څو نورو شهزاده‌ګانو ته عبرت سي. (هغه کتاب، ص: (۲۶-۲۷)

شاه‌شجاع د خپل ساده طبیعت سره سم، څه موده وروسته چې له تخته پرزېدلی او د پاچهۍ د بیرته نیولو تلاښونه یې کول او په راولپنډۍ کې یې د مهاجرت او سرګردانۍ شپې تېرولې، د شیرمحمدخان په زامنو، چې څه کم یو کال مخکې یې د هغه له ورور سره یو ځای په جنګ کې وژلی وو، عطامحمدخان، غلام محمدخان او جهانداد خان اعتماد وکړ او هغوی بالآخره په کشمیر کې بندي کړ.

شاه‌شجاع د خپل پلار په څېر، ژمی په پېښور او نورو سړو ځایونو کې تېراوه او په اوړي کې به کابل ته ستون سو. هغه خو په هر صورت، دی یو عیاش او بې‌کفایته پاچا وو، نور څه یې کولای نه سوای؛ خو په داسې حالاتو کې به، چې کندهار به شاه‌محمود نیولی او هغه به د کابل پر لور حرکت کاوه، شاه‌شجاع به ورځې، شپې په پېښور کې تېرولې. (شجاع، ص: ۲۹) دا نو د بې‌کفایتۍ هغه انتها ده، چې نوم ایښودل ورته ګران دي.

په زړه پوري خبره دا ده، چې کله به یې په جنګ کې دښمن ته ماته ور کړه، نو د ده په قاموس کې د ماتې خوړلي دښمن د تعقیب خبره چنداني موجوده نه وه. په خپله شپږکلنه پاچهۍ کې یې یو ځل هم د فراه پر لور حرکت و نه کړ او هغه ولایت یې شهزاده کامران ته، چې د ده د پاچهۍ تر پایه پوري یې له شورښ او بغاوت څخه لاس وا نه خیست، پرې ایښی وو. یو ځل چې فتح خان او کامران په ګډه ور سره جنګېږي او په جنګ کې ماته خوري، نو هغوی دواړه فراه ته تښتي او هلته پاتېږي (هغه کتاب، ص: ۱۴) بل ځل چې شهزاده کامران کندهار نیولی، خو د ده د پوځونو په مقابل کې ماته خوري، بیا فراه ته تښتي او دی له هغه سره نور غرض نه کوي. (هغه کتاب، ص: ۲۲) حتی د شاه محمود په څېر یو خطرناک رقیب یې له بالاحصار څخه وتښتېدی او ځان یې د هزاره‌جات له لارې فراه ته، چې د کامران په لاس کې وه، ورساوه، په فراه کې یې یو کال بې‌غمه تېر کړ او شاه‌شجاع د هغه د تعقیبولو او له فراه څخه د پلار او زوی د ایستلو له پاره هیڅ اقدام و نه کړ. (هغه کتاب، ص: ۲۷)

شهزاده یونس یې د کندهار نایب‌الحکومه مقرر کړی وو، فتح خان چې د توري چلولو تر څنګ یې د غوړې ژبې ډېر ښه کمال درلودی، شهزاده یونس یې د شاه‌شجاع د مشر وراره شهزاده قیصر

په څېر وغولاوه او هغه په خپل کور کي ځای ور کړ. فتح خان له هغه کور څخه شاه‌محمود او کامران ته بلنه ور کړه، چي کندهار ته ور سي او ښار تسليم کړي. ميرعلم خان چي شاه‌شجاع د خپل وراره د مرستيال او سلاکار په حيث ټاکلی وو، مخکي له مخکي له ښاره ووت او ښار شاه‌محمود او فتح خان ونيوی.

شاه‌شجاع له کابل څخه ور روان سو. کندهار ته نيژدې نورمحمدخان بادوزی او له هغه سره نور ملګري دراني خانان او قومي مشران له شاه‌محمود څخه بېل او له شاه‌شجاع سره يو ځای سول. شاه محمود بې‌له جنګه وتښتېدی او بيرته فراه ته ولاړ. په دغه وخت کي ايله د شاه‌شجاع عقل سر ته ورغی او فکر يې وکړ، چي د ده مخالفين چي هر وخت وتښتي، نو فراه ته ولاړ سي او بيا له هغه ځايه دسيسې کوي. دی بايد چي د فراه چاره وکړي او هرات او فراه د مرکزي حکومت تابع کړي.

شاه‌شجاع له کندهاره د هرات او فراه پر لور د حرکت کولو فيصله وکړه. د شاه‌محمود سکه ورور حاجي فيروزالدين، چي د شاه‌محمود له وخته د هرات نايب‌الحکومه وو او سمدستي يې له عاجزی او غوړه‌مالۍ څخه يوه ډکه عريضه شاه‌شجاع ته ولېږله او په هغه کي يې ورته ليکلي ول، چي که ته حتماً د هرات پر لور لښکرکښي کوې، نو زه به ستا په امر دغه ښار هغه چا ته، چي ته امر کوې، ور تسليم کړم. خو بيا به زه هم د خپل ورور شاه‌محمود په څېر، چي همېشه په فتنه او فساد لګيا دی، در بدره ګرځم. نو ته دا ښار زما غوندي له يوه عاجز بنده څخه مه اخله. زه خو هسي هم ستا د پښو خاوري يم، ما په غلامي قبول کړه او شاه‌محمود، چي زما سکه ورور دی او په فراه کي ناست دی، نور به ستاسي اعليحضرت په مقابل کي ګستاخي او نا فرماني نه کوي او که يې چيري بيا ښورښ وکړ، زه يې ضامن يم. شاه‌شجاع وايي چي د ده شيرين ګفتار اثر ور باندي وکړ او د وروری د ميني وينه يې پر جوش راغله او د هرات او فراه پر لور يې له حرکت کولو څخه لاس واخيست او خپل ورور حاجي فيروزالدين ته يې له کاله يو لک روپۍ مدد معاش مقرر کړ. (هغه کتاب، ص: ٢٨-٢٩)

شاه‌زمان د شاه‌شجاع له پاچا کېدلو څخه څه کم درې کاله مخکي، د شاه‌محمود، حاجي فيروزالدين او فتح خان په وسيله، چي د ايران مالي او پوځي مرستي ور سره وې، له تخته وپرزول سو او د عظمت او امپراطورۍ د جوړولو او د ډهلي د تخت د نيولو ارمانونه يې ګور ته ور سره يووړل. په داسي حال کي چي شاه‌شجاع ته دا ټولي کيسې معلومي وې، ځکه چي ډېر وخت ور باندي تېر سوی نه وو، څرنګه يې د هرات او فراه په څېر حساس ولايتونه، چي هم د ايران په ګاونډ

کي پراته ول او هم هر وخت د ښورښونو او فتنو د پاڅېدلو مرکزونه ول، خپلو ياغي وروڼو ته پرې ايښي ول او حتی په جنګونو کي يې له ماتي ور کولو څخه وروسته هم نه تعقيبول؛ په داسي حال کي چي ده هر وخت هغوی ته په جنګونو کي شکستونه ور کول او کولای يې سوای، چي له دې دواړو حساسو ښارونو څخه يې وباسي او يا يې بنديان کړي او يا يې بيرته ايران ته په تېښتېدلو مجبور کړي.

د شاه‌شجاع د شپږ کلني پاچهی د ډرامې وروستی پرده، د نورو ټولو مخکنيو پېښو په څېر په زړه پوري وه او سړی فکر نه کوي، چي يوه پاچا دي په ريشتيا هم په دومره ساده‌ګي پر داسي يوه هيواد باندي، چي له سره تر پايه له خطرناکو دښمنانو او ياغيانو ډک وي، په دونه بې‌غمه زړه پاچهي کړې وي. شاه‌شجاع د (١٨٠٩م.) کال په ژمي کي د تل په څېر پېښور ته روان سو او هلته يې په بالاحصار کي واړول. خپل بې‌تجربې او ځوان وراره شهزاده منصور يې له محمداکرم خان امين الملک او سردارمدد خان اسحاق‌زي په ملګرتوب، له دوولس زرو پوځيانو سره، د کشمير د نايب الحکومه عطامحمدخان باميزايي د اېلولو له پاره، روان کړل. په دغو شپو، ورځو کي چي د کندهار په څېر حساس ښار يې يوه بل ځوان او بې‌تجربې وراره شهزاده يوسف ته سپارلی او هغه پخواني ميرعلم خان، چي يو ځل يې خيانت ور سره کړی او کندهار يې فتح خان ته سپارلی وو، د سرپرست او سلاکار په حيث ور سره مقرر کړی وو، له هغه ښار څخه ډېر بد خبرونه ورته را ورسېدل؛ ويل کېدل چي په کندهار کي د دوو عالي رتبه مقاماتو اعظم خان او ميرعلم خان تر منځ اختلاف راغلی او خبره جنګ ته رسېدلې ده. ميرعلم خان يو ځل بيا د کندهار ښار فتح خان او شاه محمود ته تسليم کړی او اعظم خان په تېښته تللی دی. د همدغو رپوټونو سره په خپله اعظم خان او شهزاده يوسف دواړه پېښور ته ورسېدل او شاه‌شجاع ته يې ټوله کيسه وکړه.

شاه‌شجاع د دې پرځای چي له پېښور څخه، چي بايد په دغه راز حساس او نازک حالت کي له لويه سره ورته راغلی نه وای، سمدستي د کابل يا په خپله د کندهار پر لور حرکت کړی او د دونه يوه لوی خطر د مخنيوي له پاره يې لښکر ترتيب کړی وای، ليکي چي په دغو شپو، ورځو کي له کوهاټ څخه رپوټ ورته ورسېدی، چي د انګرېز بهادر يو هيأت ورته را روان دی. شاه‌شجاع د هيأت مخي ته خپل مقامات او مېلمه‌پال ور ولېږل او د شاه‌شجاع تر کمپ او بالاحصار پوري چي څه خدمت کېدلای سوای، هغه يې وکړ. د هيأت رئيس مونسټارټ الفينسټون د دوو پيلانو په شمول، ډېري زياتي تحفې ور سره را اخيستي وې. داسي ښکاري چي شاه‌شجاع په دې سوغاتونو

ډېر سخت خوشاله سوی وي، څکه چي تر لویو هیندارو پوري ټول شیان په بشپړ تفصیل سره یادوي. شاه‌شجاع د انګرېزانو د هیأت ټولو غړو ته، چي شمېر یې نه ښیي، د هر چا له مقام سره سم، خلعتونه او سوغاتونه ور کړل، د هغوی د نازولو او قدر کولو له پاره یې مېلمه‌پالان مقرر کړل او څو ورځي وروسته یې له مونستارټ الفینستون سره د دوستۍ یو تړون لاسلیک کړی، چي مطلب یې د فرانسې او د ایران د قاجاري سلطنت په مقابل کي د دواړو هیوادونو تر منځ اتفاق وو. لوستونکو ته باید په یاد وي، چي د الفینستون او شاه‌شجاع له تړون څخه لس کاله مخکي، د انګرېزانو استازي کپتان جان‌مالکم د ایران له پاچا فتح‌علي‌شاه قاجار سره د افغانستان پر ضد تړون لاسلیک کړی وو او په هغه تړون کي یې د ایران پاچا دې ته هڅولی وو، چي د افغانستان د پاچا شاه‌زمان له پاره داسي ستونزي جوړي کړي، چي هغه پر هندوستان باندي د حملې کولو خیال له سره وباسي. پر دې موافقه باندي څه کم نهه کاله تېر سول. په افغانستان کي ډېر ژور تغیرات راغلل. شاه‌زمان چي انګرېزانو یې له حملې څخه خطر احساساوه، پرځېدلی او ړوند سوی وو. د هغه پر ځای چي شاه محمود قدرت ته ورسېدی، نسکور سو او پر ځای باندي یې شاه‌شجاع قدرت ته رسېدلی وو. افغانستان دونه ستونزي درلودلې، چي نور یې د هند او نورو ګاونډیانو خوا ته نه توجه کولای سوای او نه یې خطر ورته پېښولای سوای. خو انګرېزانو د افغانستان سره زړه دښمني نه وه پرې ایښې او د هغوی له دایمي دښمن هیواد ایران سره یې د (۱۸۰۹م.) کال د مارچ په میاشت کي د انګرېزانو د استازي سرهارفرډ جونز سره د خپل دفاعي او تجارتي تړون د لاسلیکولو په وخت کي یو ځل بیا هم د افغانستان یادونه وکړه. د تړون په څلورمه ماده کي راغلي وه، چي پر دې خبره باندي موافقه سوې ده، چي که چیري افغانانو یا بل کوم قوت په هند کي د بریتانیې د پاچا اعلیحضرت پر قلمرو باندي حمله وکړه، نو د ایران پاچا به په دغه قطعي او وروستي تړون کي د راغلو موادو سره سم، د دغه یاد سوي قلمرو د ساتلو له پاره یوه قوه برابروي. د تړون په اوومه ماده کي راغلي وه، چي که چیري د ایران د پاچا او افغانانو تر منځ جنګ پېښېږي، نو د بریتانیې حکومت به د هیچا طرفداري نه کوي او چي تر څو پوري دواړو خواوو د منځګړیتوب غوښتنه ور څخه کړې نه وي، مداخله به نه کوي. (کوریس پانډینس، ص: ۳۰۷)

د لویو قدرتونو له دښمنی څخه به سړی ځان ساتي، خو پر دوستي باندي به یې هیڅ وخت حساب نه کوي. د هغوی دوستي او ټول قولونه او تړونونه د خپلو ګټو تابع او د یخي پر سر کرښي دي. هر وخت او هره شېبه چي یې زړه سو، له خپل تړون څخه د تېري کولو له پاره پلمه جوړولای

سي؛ ځکه چي د لوی قدرت له پاره د پلمې جوړول هر وخت اسان دي او اصلاً لا پلمې جوړولو ته ضرورت نه لري. د ایران سره پر یاد سوي تړون باندي ایله درې میاشتي تېري سوي وې، چي له افغانستان سره یې د دوستی تړون لاسلیک کړ او دا ځل یې له افغانستان سره په تړون کي د ایران په باب د هغو خطرونو یادونه وکړه، چي له ایران سره په تړون کي یې د افغانستان په باب کړې وه.

له افغانستان سره د دوستی پر تړون باندي ایله پنځه کاله تېر سوي ول، چي انګرېزانو یو ځل بیا له ایران سره د پخوانیو تړونونو د نوي کولو او یا د نوي تړون د لاسلیک کولو ضرورت احساس کړ او په تهران کي یې خپلو استازو موري یر او ایلیس ته وظیفه ور کړه، چي د ایران له مقاماتو سره تړون لاسلیک کړي. د تړون لومړني مواد له ایران څخه د هغو اروپایي قدرتونو سره، چي د انګرېزانو سره دښمني لري، د ټولو قراردادونو او تړونونو د لغوه کولو غوښتنه کوي او له ایران څخه غوښتل کیږي، چي په خپله خاوره کي به هغوی ته ځای نه ور کوي. خو د تړون اتمه ماده، په ډېر بې‌ضرورته ډول، د افغانستان نوم یادوي، چي په هیڅ صورت انګرېزانو ته د تاوان رسولو توان نه لري.

په اتمه ماده کي راغلي دي، چي که افغانان له انګرېزانو سره په جنګ کي ول، نو د ایران پاچا به افغانستان ته پوځي قوه استوي او د خپل دغه پوځي عمل خبر به هم د انګرېزانو حکومت ته ور کوي. د انګرېزانو حکومت به د یوه ټاکلي او لازم وخت له پاره، د ایرانیانو د پوځ لګښتونه ور کوي. (هغه کتاب، ص: ۳۱۰)

په داسي حال کي چي برېټانیه د ایران او افغانستان په مقابل کي دونه لوی سیاسي، اقتصادي او پوځي طاقت وو، چي د دې دواړو هیوادونو له خوا د متوجه سوي خطر مخه یې په یوازي سره نیولای سوای او اصلاً یې له هغوی سره د تړونونو او منافقت کولو ته اړتیا نه درلوده. د هماغه (۱۸۰۹م.) کال د جون میاشت را ورسېده. دا ځل د انګلیسیانو استازي الفینسټون د افغانستان له پاچا سره خبري کولې او باید چي د هغه خیال یې ساتلی وای.

## مونسټارټ الفینسټون او شاه‌شجاع

مونسټارټ الفینسټون په (۱۸۰۹م.) کال کي په داسي وخت کي سیمي ته ورسېدی، چي پر هند باندي د ناپولیون د حملې اوازې ډېري تودې وې او د برېټانوي هند حکومت مجبور وو، چي د هغه د حملې د مخنیوي له پاره لږ تر لږه په وچه کي خپل سرحدات ټینګ کړي. الفینسټون لومړی د

(۱۸۰۹م.) کال د اپرېل په میاشت کې د سیکهانو نوي قدرت ته رسېدلي مشر، رنجیت سینگهـ سره د دوستۍ تړون لاسلیک کړ او په هغه تړون کې یې د بریتانوي هند او سیکهانو پولې وټاکلې.

الفینسټون وروسته پېښور ته راغی او له شاه‌شجاع سره یې د دوستۍ او تجارت په باره کې یو تړون لاسلیک کړ. په موافقتنامه کې راغلي ول، چې که چیرې فرانسې او ایران پر هند باندې د حملې کولو له پاره غوښتل، چې د افغانستان له خاورې څخه تېر سي؛ افغانستان به یې مخه نیسي او که چیرې دا دواړه هیوادونه پر افغانستان باندې د یرغل خیال ولري، نو انگرېزان به د یرغلگرو قواوو د مخنیوي له پاره د افغانستان له پاچا سره مالي مرستې کوي او که د ایران او فرانسې تر منځ اتحاد موجود هم نه وي، دغه قرارداد به په خپل قوت باقي وي. دغه راز به د افغانستان پاچا په خپله خاوره کې هیڅ فرانسوي ته د اوسېدلو اجازه نه ور کوي. په دې توگه به د دواړو هیوادونو تر منځ د تل له پاره دوستي ټینگه وي او د یوه بل په چارو کې به هیڅ ډول مداخله نه کوي. دا موافقتنامه د (۱۸۰۹م.) کال د جون پر اووه‌لسمه په پېښور کې لاسلیک سوه. (شجاع، ص: ۳۰- ۳۱)

له بریتانوي هند سره لا شاه‌شجاع د دوستۍ تړون لاسلیک کړی نه وو، چې هغه ته اطلاع ورسېدله چې شاه‌محمود یو ځل بیا کندهار نیولی دی. شاه‌شجاع لا د دې بد خبر څخه بې‌غمه سوی نه وو، چې د کشمیر د یاغي سوي والي عطامحمدخان د ځپلو له پاره د لېږلي پوځ د ماتېدلو او بشپړ تباه کېدلو اطلاع ورته ورسېده. داسې ښکاري چې په دې مهم جنگ کې هم له شاه‌شجاع سره خیانت سوی وي. د شاه‌شجاع په خپله لیکنه کې راغلي دي، چې د ده پوځ ښه بریالی وو او دښمن ته یې سخت تلفات رسولي ول، چې په دغه وخت کې د شاه‌شجاع د دوو لویو جنرالانو محمداکرم خان او مددخان اسحق‌زي ترمنځ اختلاف راغی او اکرم خان پېښور ته له بیرته ستنېدلو بله چاره نه درلوده. (شجاع، ص: ۳۲)

شاه‌محمود او فتح خان څکه ډېر ژر کابل ونیوی، چې شاه‌شجاع د خپل لښکر یوه لویه برخه په کندهار کې پرې ایښې، له یوې برخې سره یې په خپله سند او دیره‌جاتو ته سفر کاوه او له لښکره پرته یې مالیات اخیستلای نه سوای او یوه لویه او مجهزه قوه یې د کشمیر د والي عطامحمدخان د ځپلو له پاره کشمیر ته لېږلې وه. شاه‌شجاع د هغوی سره د مقابلې کولو او تخت د بیرته نیولو له پاره د لښکرو په جمع کولو لگیا سو. وزیر فتح خان چې ټول عمر یې په جنگونو او سیاست کې تېر سوی وو، په دې پوهېدی چې د کابل له نیولو وروسته باید شاه‌شجاع، چې د سلطنت تر ټولو مهم

دښمن دی، تعقیب سي. شاه‌شجاع هم په دې پوهېدی چي دښمن به يې په پېښور کي پر کراره پرې نه بږدي، نو له څه لښکر سره چي ده برابرولای سوای، د کابل پر لور رهي سو. د ګندمک په شاوخوا کي د شاه‌شجاع پېش قراول، مدد خان له څلورو زرو سپرو سره، فتح خان او شاه‌محمود ته تسلیم سو. د شاه‌شجاع وزير اکرم خان او يو بل جنرال غفور خان په دغه جنګ کي ووژل سول. شاه‌شجاع د خپلو سلاکارانو او نيژدې کسانو په مشوره عمل وکړ او د جنګ له ميدان څخه په تاخته د پېښور پر لور روان سو. څرنګه چي په پېښور کي ډېره سخته ګرمي وه، نو د کندهار پر خوا يې مخ ونيوی او يو مأخذ وايي چي د جنګ په ميدان کي د دوو ميليونو سټرلينګ پونډو يا شلو ميليونو هندي روپيو په اندازه خزانه او لويه جبه خانه ور څخه پاته سوه. (سایکس، ص: ۳۸۶- ۳۸۸)

سرپرسي سايکس د خپلي ادعا له پاره مأخذ نه ور کوي، خو څرګنده ده چي دا رقم يې د فرانسوي جنرال فيريه له کتاب (ص: ۱۴۲) څخه را اخيستی او هغه هم له ځانه يا د بل له قوله ليکلی دی. فيريه خو لا وايي چي پر دې پيسو برسېره ډېر زيات قيمتي جواهرات هم د شاه‌محمود لاس ته ورغلل. د فيريه څخه مخکي هيڅ بل ليکوال دا رقم نه دی ذکر کړی او په بل هيڅ ځای کي يې سند نه سته.

خو موږ په يقين سره ويلای سو چي له شاه‌شجاع څخه د جنګ په ميدان کي  د شلو ميليونو هندي روپيو پاته کېدل، يوه داسي مبالغه ده چي د افغانستان د هغي زمانې په شرايطو کي يې له شاه شجاع سره موجوديت امکان نه درلود. موږ له يوې خوا ګورو چي شاه‌شجاع د سند له ميرانو څخه د څو کالو مالياتو اخيستلو له پاره د خپلو پوځونو سره حرکت وکړ او بالآخره يې د سند له ميرانو سره څو کلن ماليات ايله په دوو ميليونو روپيو فيصله کړه. تازه يې د کشمير د والي د اېلولو له پاره دوولس زره پوځ لېږلی او هغه مات سوی وو. طبيعي خبره ده چي په هغه جنګ به ډېري زياتي پيسې لګېدلي وي او چي شاه‌شجاع له سند څخه څه پيسې تر لاسه کړي وې، هغه به په دغه لښکرکښني مصرف سوي او يا به لږي پيسې ورته پاته سوي وې. که له شاه‌شجاع سره شل ميليونه روپۍ ور سره وای، هغه به د شاه‌محمود سره د جګړې له پاره نه، بلکي د خپلي پاچهۍ او قلمرو د خوندي کولو له پاره دومره لوی پوځ برابر کړی وای، چي په افغانستان کي به يې هيڅا زور نه درلودلای. بيا نو شاه‌شجاع مجبور نه وو چي په دغه وخت کي د پوځ د جوړولو له پاره له انګرېزانو څخه مالي مرسته وغواړي.

د شاه‌شجاع له پاره د انګرېزانو سفير الفينستون، چي په دغه وخت کي په پېښور کي وو او هر څه

يې په خپلو سترګو ليدلي ول، موږ ته په دغو ورځو کې د شاه‌شجاع د مالي وضعيت په باب ښځې بل ډول رپوټ را کوي.

"د پاچا ستونزې ورځ په ورځ زياتېدلې. کابل د هغه د دښمنانو لاس ته ورغلی وو او هر آن انتظار کېدی چې پر پېښور باندې به هم يرغل وکړي. پاچا د پيسو د تر لاسه کولو له پاره خپل ټول وس تمام کړ. هغه خپل جواهرات تر نيمايي په کمه بيه بازار ته کړل، خو هيڅا يې رانيولو ته زړه نه سو ښه کولای؛ ځکه چې له هر چا سره دا وېره وه، چې که د ده دښمنان دا جواهرات ووينې، نو د خريدارۍ په برخه کې به يې د دوی اسناد قبول نه کړي. پاچا په خپل ټول بد حالت کې له زور زياتي څخه کار وانه خيست. ځينو کسانو هغه ته مشوره ور کړه، چې له کابل څخه کشمير ته سوداګر روان دي او ډېرې زياتې پيسې ور سره دي، له هغوی څخه دې دا پيسې واخلي او خپل کار دې په وکړي. نيژدې وو چې دی د خپلو سلاکارانو په خبره قانع سوی او له سوداګرو څخه يې پيسې اخيستې او خپل جواهرات يې هغوی ته په ګروي او ضمانت کې ور کړي وای. د دربار قاضي يې فتوا ور کړه او ده ته يې وويل چې دا د پاچا له پاره قانوني او روا کار دی، مګر پاچا وويل چې دا کار د هغه حيثيت او اعتبار ته صدمه رسوي او د قاضي فتوا يې و نه منله. بالآخره دوی زما څخه مرسته وغوښتله... د پاچا جنرالانو مدد خان، اکرم خان او احمدخان نورزي... په خپلو خبرو کې وويل چې زموږ پر حکومت باندې باور لري او په خبرو کې يې د مرستې غوښتنه وکړه، خو ما په ډېر احترام ورته وويل چې موږ د دوی د هيواد خير، ښېګڼه غواړو خو په څرګنده مې ورته وويل، چې زموږ حکومت ستاسې په داخلي چارو کې مداخله نه کوي... د خبرو له پای ته رسېدلو څخه وروسته زما څخه بيا چا د مرستې غوښتنه و نه کړه، خو زه دوی د پخوا په څېر نازولم او په دربار کې زما قدر او منزلت هيڅ کم نه سو" (الفينستون، لومړی جلد، ص: ۳۷۳-۳۷۶)

سرجان کې، په هغو شرايطو کې د افغانستان د خزانې وضع او پوځي قوت، چې له کابل څخه د انګرېزانو د استازو د رپوټ په اساس يې ليکلي دي، ډېر ښه تشريح کوي. البته دا هغه وخت دی، چې تېمورشاه له تقريباً شلو کالو نسبتاً آرامي پاچاهی څخه وروسته خزانه يو څه ډکه کړې او خپل زوی شاه‌زمان ته يې په ميراث پرې ايښې ده.

"په افغانستان کې د جنګ مېړونه هيڅ وخت لږ نه ول، مګر د کورونو پرېښودلو ته د هغوی د تشويقولو له پاره پيسې په کار وې. ويل کېدله چې شاه‌زمان د يوه ملي حرکت له پاره دوه سوه زره

عسکر را غونډولای سي، البته که ده دونه پیسې درلودلای، چي هغوی ته یې تنخوا ور کړې وای. خو ده د یوه کوچني پوځ د استخدامولو او تنظیمولو له پاره کافي پیسې نه درلودلې. له ده څخه په ډېرو حساسو وختونو کي په پرله پسې توګه عسکر تښتېدل؛ او علت یې دا وو چي ده د عسکرو ضروریات پوره کولای نه سوای. د خزانې تش‌والي دی هر کار ته مجبوره کاوه او کله کله چي به یې بله لاره نه درلوده، نو د خپلي سکې ارزښت به یې لوړ کړ. د ده پوځ په یوه برخه کي بې‌اندازې کمزوری وو. ده په خپله ټوله پاچهي کي دوولس لوی توپونه او پنځه سوه زنبورک واړه توپونه، چي د اوښانو له شا څخه به یې ویشتل کول، درلودل. حتی دغو توپونو هم ښه کار نه ور کاوه، ځکه چي په جنګ کي د دغو اوښانو د رهي کولو له پاره کافي کسان نه ول او توپونه هم په ښه حالت کي نه ول. یوه تن چي په (۱۷۹۹م.) او (۱۸۰۰م.) کلونو کي یې د زمان‌شاه پوځ لیدلی وو، رپوټ ور کړ، چي د پاچا پوځ یوازي پنځه سوه آسونه لري او هغه زیاتره یا د پاچا یا د وزیر دي. عسکر زیاتره پر یابوګانو سپرېدل، چي په تاوده بازار کي په سل روپې نه ارزېدل. زمان‌شاه په دغه پوځي قوت پر هند باندي د حملې کولو پلانونه جوړول" (کې، لومړی ټوک، ص: ۱۶-۱۷)

د مؤرخ کې له دې متن څخه معلومېږي، چي حتی شاه‌زمان هم د خپل قدرت په وخت کي، چي پر هند باندي د یرغل کولو او د ډهلي د سلطنت د کنټرولولو له پاره د لښکرکښیو پلانونه یې جوړول، دونه لویه خزانه نه درلوده، چي د سایکس ادعا ته نیژدې وي.

شاه‌محمود او فتح خان له کندهاره څخه د کابل پر لور تر حرکت مخکي، هغه ښار د شهزاده ایوب په نوم، د تیمورشاه زوی او د فتح خان ورور اسد خان ته سپارلی وو. د شاه‌شجاع وراره شهزاده یونس هم دا وخت له هغوی سره ملګری وو. کله چي شاه‌شجاع د کندهار ښار ته نیژدې سو، شهزاده یونس له خپلو ور سره عسکرو سره د شاه‌شجاع سره ملګری سو او شهزاده ایوب او اسد خان له ښار څخه په تیښته ولاړل. شاه‌شجاع وایي چي سمدستي د لښکر په جمع کولو لګیا سو او د هندوانو او تاجرانو څخه یې پیسې په پور واخیستلې او درې زره کسیز پوځ یې جوړ کړ. شاه‌محمود او فتح خان له کابل څخه د شپږ زره عسکرو سره د کندهار پر لور حرکت وکړ او د کندهار سره نیژدې د جکان په علاقه کي یې نښته سره وکړه. شاه‌شجاع وایي چي دوه ځله مو د دښمن لښکر پر شا کړ، خو کله چي ګلستان خان اڅکزی ووژل سو او صالوخان اسحق‌زی د تاوده جنګ په ترڅ کي له خپلو اوو سوو عسکرو او بیرغ سره، زموږ څخه بېل او شاه‌محمود ته تسلیم سو، نو زموږ په عسکرو هم ماته ګډه سوه او زه د ارغسان له لاري دیره‌جات ته ولاړم. (شجاع، ص: ۳۵-۳۶)

که څه هم چې شاه‌شجاع خو د شاه‌محمود او وزیر فتح خان سره په دې جنګ کې د خپلې ماتې علت د خپلو پوځونو د لوی قوماندان ګلستان خان اڅکزي وژل کېدل او د جنګ په میدان کې د دښمن لوري ته د صالو خان اسحق‌زي اوښتل بولي، خو د شاه‌شجاع د ژوند له وروستیو پېښو څخه څرګندېږي، چې هغه په خپله په هغه اندازه چې د تخت او تاج د نیولو او قدرت لېونی وو، په هغه اندازه یې زړه‌ورتوب او جنګي وړتیا نه درلوده. البته دا خبره هم باید هېره نه کړو، چې دا لومړی ځل نه وو چې له شاه‌شجاع سره خپلو ډېرو نیژدې ملګرو او مهمو جنرالانو خیانت کاوه او د ده ملا یې ماتوله. خو شاه‌شجاع څو څو ځله نه یوازي خپل وروڼه، ورېرونه او خاین جنرالان وبخښل، بلکي بیرته به یې اعتماد ور باندي وکړ. دا به ښایي د شاه‌شجاع د شخصیت انساني اړخ وو؛ خو په ختیځو هیوادونو کي دغه راز سیاست که هر وخت نه وي، نو زیاتره وختونه یې منفي نتیجه ور کوله.



مونټ سټوارټ الفنسټن

# شاه‌شجاع او د کابل د تخت د بیرته نیولو دوهم ځل هلې ځلې

شاه‌شجاع د جنګ له میدان څخه په تېښته ولاړ. ځان یې دېره‌جات او وروسته راولپنډي ته، چې
خپله کورنی یې مخکې ور لېږلې وه، ورساوه. په راولپنډي کې یې رنجیت سینګهـ ملاقات ته ورغی
شاه‌شجاع وایي: سره له هغه چې هر څه مې له لاسه ور کړي ول، بیا مې هم یو څو قیمتي جواهرات
هغه ته په سوغات کې ور کړل. رنجیت سینګهـ د ملتان په نیولو کې د مرستې کولو پېشنهاد ورته وک
او ورته وې ویل چې د ملتان له نیولو څخه وروسته به هغه ملک شاه‌شجاع ته وسپاري او هغه به ا
ملتان څخه د کابل د تخت د بیرته نیولو له پاره هلې ځلې پیل کړي. شاه‌شجاع وایي ما دا پېشنها
ځکه و نه مانه، چې ما ویل که زه په خپله ملتان ته ور سم، ښایي د هغه ښار خلک ما ته تسلیم سي
خو که یې د رنجیت سینګهـ په مرسته ونیسم، بیا به رنجیت سینګهـ له ملتان څخه څوک باسي. (هـ
کتاب، ص: ۳۷)

شاه‌شجاع له راولپینډي څخه پر پېښور باندې یوه حمله وکړه او هغه ښار یې ونیوی، خو وروس
یې د وزیر فتح خان د ورور سردارمحمدعظیم خان سره په جنګ کې ماته وکړه. د اټک د قلا حاک
جهانداد خان، چې د کشمیر د والي عطامحمدخان بامیزایي ورور وو، د عطامحمدخان په لم
وغولاوه او د اټک په قلا کې یې بندي کړ. وروسته یې کشمیر ته بوت او عطامحمدخان د ک
ماران په بندیخانه کې بندي کړ. شاه‌شجاع څه باندې یو کال په بندیخانه کې تېر کړ؛ خو چې ش
محمود، د شاه‌شجاع په قول؛ د وروروګلوی د احساس له مخې وزیر فتح خان کشمیر ته واستاوه،
څو هم عطامحمدخان لیرې کړي او هم خپل ورور د هغه له بنده خوشې کړي. عطامحمدخان م
وکړه او له کشمیر څخه وتښتېدی. وزیر فتح خان شاه‌شجاع ته بلنه ور کړه، چې افغانستان ته و
سي او هلته شاه‌محمود ته بیعت وکړي او که یې خوښه وي، دېره‌جات ته هم تللای سي. څرن
چې پر کشمیر باندې په حمله کې له وزیر فتح خان سره د رنجیت سینګهـ جنرال محکم چند
ملګری وو او هغه شاه‌شجاع ته د رنجیت سینګهـ اخلاص څرګند کړ او د هغه له خوا یې ډېر عذر
ورته وکړل، نو شاه‌شجاع لاهور ته تلل ځکه غوره وبلل، چې د کورنی غړي یې په هغه ښار کې
او ده ډېره موده ور سره لیدلي نه ول.

که څه هم چې د شاه‌شجاع ټول ژوند له هغه سره د خپلو دوستانو او جنرالانو د خیانتونو او د

د بې زړه‌توب، ناکامیواو اشتباهاتو یو اوږد داستان دی ،خو له کشمیر څخه لاهور ته تلل او ځان د مسلمانانو او د ده د پلار، نیکه او کورنی دښمن ته سپارل، داسي اشتباه ده، چي سړی باید د اشتباه پر ځای یوه بله کلمه ورته وکاروي. سیکهانو له مسلمانانو سره څه باندي یو نیم سل کاله خونړي جنګونه کړي ول او له افغانانو او د ده له پلار او نیکه سره یې له څه باندي پنځوسو کالو راهیسي داسي جنګونه کړي ول، چي په سلهاوو زره کسان پکښي تلف سوي او ښارونه او کلي پکښي تباه سوي ول. شاه‌شجاع په کوم عقل په داسي حال کي چي د احمدشاه بابا د خزانې تر ټولو قیمتي غمیان لا هم ور سره ول، پرته له هیڅ محافظ او تضمین څخه، د سیکهانو منګولو ته ورغی.

رنجیت سینګهـ د شاه‌شجاع ډېر تود هرکلی وکړ. خو له لومړۍ ورځي یې حرم او عیال ور څخه بېل کړ او په دوهمه ورځ یې د خپل استازي رام سینګهـ په وسیله د کوه نور د الماس غوښتنه ور څخه وکړه. کله چي شاه‌شجاع د الماس له ور کولو څخه انکار وکړ، نو رنجیت سینګهـ پر هغه باندي له هیڅ ډول فشار او ظلم څخه دریغ و نه کړ؛ حتی ډوډۍ یې ور باندي بنده کړه. هغه به یې د قصر پر بام باندي د لاهور په ګرمي کي پر بام باندي درولی وو او خبره یې دې بې‌شرمی ته ورسوله، چي د حرم ښځي یې تهدید کړې. کور ته یې غله ور ولېږل او بالآخره شاه‌شجاع د کوه نور الماس ور کولو ته مجبور سو. رنجیت سینګهـ الماس واخیست. له ده سره یې د دوستی تړون لاسلیک کړ؛ په خپلو ټولو مقدساتو یې سوګند وکړ، چي له هغه سره به خیانت نه کوي او تر ابده به د شاه‌شجاع دوست پاته کیږي. خو آن یوه ورځ یې هم هغه تړون او سوګندونه رعایت نه کړل او بیرته هغه آش هغه کاسه سوه. د رنجیت سینګهـ حرص حدود نه درلودل او د شاه‌شجاع څخه یې د باقي پاته جواهراتو او قیمتي شیانو د تر لاسه کولو له پاره له خپل ټول زور څخه کار واخیست. پر شاه‌شجاع باندي یې دونه خواری تېري کړې او دونه سپکاوی یې ورته وکړ، چي نور نو کېدلای نه سوای؛ یو ځل خو یې د رام سینګهـ په نوم یو مامور ورته را واستاوه او هغه شاه‌شجاع ته وویل چي دا خبره له زړه‌سوي او خواخوږۍ ورته کوي، چي د هغوی پاچا رنجیت سینګهـ ته باید د خپلو مالونو او قیمتي شیانو په باب ریښتیا ووایي او بشپړه اطلاع ور کړي، کنه نو هغه لاس نه ور څخه اخلي او ښایي مړ یې کړي. شاه‌شجاع هغه ته د خپل کور د تلاښي کولو اجازه ور کړه. دوې ورځي وروسته د رنجیت سینګهـ سړیو د شاه‌شجاع د کور ټول سامان په ګاډیو کي بار کړ او رنجیت سینګهـ ته یې یووړ. څه چي د رنجیت سینګهـ په کار ول، هغه یې واخیستل، څه چي پاته سول هغه یې خپلو جنرالانو ته ور کړل او څه چي نه د رنجیت سینګهـ او نه د جنرالانو په درد لګېدل، هغه یې بیرته ورته راوړل. سپکاوی او تېری

دې ته حد ته ورسېد، چې شاه‌شجاع به هره ورځ له نفس‌تنگۍ څخه پر ځان باندي جامې څیرلې.



رنجیټ سینگهـ

شاه‌شجاع له لاهور څخه د تېښتي فیصله وکړه، خو هر ځل چي به يې اقدام کاوه، د رنجیټ سینگهـ له خوا به يې مخه نیول کېدله. د شاه‌شجاع تر ټولو نیژدې او معتمد سړي میر ابوالحسن د شاه‌شجاع د هري ورځي احوال د رنجیټ سینگهـ جاسوس ملا جعفر ته ور کاوه او هغه به د سیکهـ مشر پولیسو ته اطلاع ور کوله. شاه‌شجاع نه پوهېدی چي بالآخره پر چا اعتماد وکړي، تر څو چي میر ابوالحسن ته يې ښې ډېري پیسې ور کړې او په آینده کي يې د ښو انعامونو او سوغاتونو وعدې ور سره وکړې او هغه له جاسوسي کولو څخه لاس واخیست. شاه‌شجاع لومړی د خپل حرم ښځي او عیال په وار لس تنه په څلور ځله، د هندو مېرمنو په جامو کي په راز راز پلمو له لاهور څخه وایستلې او لودهیانې ته يې ورسولې. په خپله په ډېرو خواریو او چلونو د یوه هندو سادو په جامو کي، چي وېښتان يې په ایرو لړلي ول، د لاهور د ښار د یوه بدرفت له لاري، له ښاره ووت. له ښار څخه

دباندي تېز رفتاره آسونه ورته ولاړ ول او په وچه تاخته د ځو ورځو له مزل څخه وروسته د رنجيټ سينگهـ له قلمرو څخه ووت. په ډېرو خواريو او ستړياوو يې ځان د کيشتوار د راجا سيمي ته، چي سيمه او واکمني يې د رنجيټ سينگهـ له قلمرو څخه بهر وه او د رنجيټ سينگهـ سره مخالف وو، ورساوه. (هغه کتاب، ص: ۴۴- ۵۴)

شاه‌شجاع ته د کشتوار له راجا سره تر څو ورځو تېرولو وروسته، د کشمير د نيولو هوس پيدا سو. د پوځ د برابرولو له پاره يې د لاهور له هغو صرافانو څخه چي خپل جواهرات يې ورته ايښي ول، د پيسې را وغوښتلې. صرافانو يو څل پنځوس زره او بيا يو لک روپۍ ورته نغدي کړې، خو هغه د رنجيټ سينگهـ لاس ته ولوېدلې او شاه‌شجاع ته هيڅ په لاس نه ورغلل. شاه‌شجاع له دې وروستي گوزار څخه هم مايوس نه سو او د کشتوار د راجا په مرسته يې پوځ تنظيم کړ او پر کشمير باندي يې، چي دا وخت د محمدعظيم خان په لاس کي وو، حمله وکړه. د محمدعظيم خان د پوځونو د متقابلو حملو او د سختو واورو له امله يې ماته وکړه او په ډېرو خواريو يې ځان بيرته کشتوار ته ورساوه. د کشتوار له راجا سره يې نهه مياشتي تېري کړې. شاه‌شجاع په خپلو خاطراتو کي بل د هيچا نوم په دومره درناوي نه يادوي او د هيچا له اخلاص او مېلمه‌پالني څخه د هغه په اندازه مننه نه کوي. دی وايي کله چي مور له هغه څخه خدای په اماني اخيستله، نو هغه دوه مزله لار را سره ووهله او د مخه بښې په وخت کي يې دونه وژړل، چي زما سره ملگري دوستان يې په ژړا کړل. شاه‌شجاع څو هفتې د تبت په غرونو او واورو کي سرگردانه گرځېدی او په واورو پټو لارو کي يې تر سختو سفرونو وروسته ځان لودهيانې ته ورساوه او د خپلو مېرمنو او عيال سره يو ځای سو. (هغه کتاب، ص: ۵۵- ۶۲)

شاه‌محمود هم په خپل وار ډېر ژر وروسته د خپل کمزوري او عياش شخصيت او د خپل مشر زوی شهزاده کامران د خودخواهيو او بې‌ځايه سرکښيو قرباني سو. که څه هم چي شاه‌محمود په داخل کي داسي قوي دښمن نه درلود، چي د ده تخت او تاج دي تهديد کړي او بايد چي د فتح خان په توره يې خپل باقي ژوند د خپل طبيعت سره سم په عيش او نوش تېر کړی وای؛ او په حقيقت کي يې څه باندي نهه کاله په پوره بې‌غمي پاچهي وکړه. د ماليا تو تر ټولولو او بلي هري ستونزي تر حلولو پوري فتح خان د هري بلا سپر وو او د هغه ځوان او با استعداده ورور دوست محمدخان، چي ده له وړوکوالي څخه روزلی وو، د هر ماموريت او کار تمام وو. له فتح خان سره د خپلو ټولو ورونو، چي ډېر زيات يې د جنگ د ميدان پهلوانان ول، ټينگ ملاتړ ور سره وو او دا ټول هم فتح خان او هم شاه‌محمود ته وفادار ول او په دې حساب شاه‌محمود ته هيڅ خطر متوجه

نه وو. خو د هغه مغرور او خودخواه زوی شهزاده کامران، چې په خپله هم ډېر زړه‌ور او تکړه افسر وو، د فتح خان له محبوبیت او د هغه د ورونو له اقتدار څخه په وهم کې وو. هغه هر وخت فرصت ته منتظر وو. یوه ورځ یې خپل د کاکا زوی قیصر، چې لا په کابل کې اوسېدی او د خپل پلار سره لودهیانې ته نه وو تللی، په باغ کې په نس کې په خنجر وواهه او له یوه وار سره یې مړ کړ. که څه هم چې فتح خان په خپله هم په سیاسي قتلونو کې لاس درلودلی وو، خو د قیصر په دغه شکل وژل کېدلو خواشینی کړ او شاه‌محمود ته یې شکایت وکړ. شاه‌محمود له خپل زوی څخه ګیله وکړه او کامران د فتح خان د لاس لنډولو تصمیم ونیو.

د سدوزیو د سلطنت ستوری هغه وخت ولوېدی، چې شهزاده کامران وزیر فتح خان په سترګو ړوند کړ او وروسته شاه‌محمود او شهزاده کامران په دواړو غزني ته نیژدې په سیدآباد کې په ډېره بې رحمانه او وحشیانه توګه قتل کړ. لکه څرنګه چې د فتح خان د پلار سردار پاینده خان وژل کېدلو د شاه‌زمان د قدرت ستنې ولړزولې، دغه راز د فتح خان ړندولو او وژل کېدلو نه یوازې د شاه‌محمود تخت ونړاوه، بلکې د پوپلزیو سلطنت او اقتدار ته یې خاتمه ور کړه او قدرت د بارکزیو قبیلې ته انتقال سو. د فتح‌خان ورونو، چې زیاتره یې جنګي مېړونه ول، د افغانستان په بېلو بېلو سیمو کې یې قدرتونه درلودل او د بارکزیو د لویې او غښتلې قبیلې پراخ ملاتړ ور سره وو، د خپل مشر ورور د کسات اخیستلو په منظور یاغیان سول او د شاه‌محمود د سلطنت پر ضد یې ښورښونه او جنګونه پیل کړل. شاه‌محمود او کامران بالآخره هرات ته وتښتېدل او د کابل سلطنت د بارکزیو لاس ته ولوېدی.

## وزیر فتح خان

فتح خان چې د سردار پاینده خان مشر زوی وو، د خپل پلار له وژل کېدلو سره سم، پر یوه ګړندي آس باندې سپور سو او ځان یې په هغه ورځ ګرشک ته ورساوه. شاه‌زمان او د هغه وزیر وفادار خان، چې د پاینده خان د زامنو په باره کې یې بشپړه اطلاع درلوده، د فتح خان د نیولو له پاره قوه واستوله، خو هغه په ډېره چټکې ځان تر ځایه رسولی وو. فتح خان ډېر ژر ځان ایران ته ورساوه او سیده د ترشیز ښار ته، چې شاه‌محمود له څه وخته پکښې اوسېدی، ورغی. په څو ورځو کې د فتح خان نور ورونه، چې زیاتره د توري او جنګ خلک ول، ور سره یو ځای سول. که څه هم چې شاه محمود د جنګ او ارادې سړی نه وو. یو ځل مخکې یې د ایران له مرستې سره سره د شاه‌زمان په

مقابل کي ماته خوړلې وه او دا يې زړه ته هم نه لوېده، چي دی به د ایران د شاه له مستقیمي پوځي او مالي مرستي پرته کابل ونیسي نو له فتح خان سره يې هم زړه نازړه پر افغانستان باندي د حملې کولو نقشه ومنله. فتح خان له ډېرو لږو قواوو او سړیو سره له ایران څخه حرکت کړی وو او پر هرات باندي حمله کول يې لازم نه بلل او مخامخ د فراه پر لور روان سو. فراه يې ونیوله او د کندهار سره يې د شاه‌زمان د گورنر مهرعلي خان اسحق‌زي لښکرو ته ماته ور کړه. فتح خان ښار محاصره کړ او په ښار کي دننه له دوو خانانو باقي خان او حسن خان سره په تماس کي سو. هغوی د ښار د محاصرې په ماتولو کي مرسته ور سره وکړه او مهر علي خان په ځان کي د مقاومت توان نه لیدی او د دواړو خانانو، چي له ده سره يې خیانت کړی وو، تر نیولو او اعدامولو وروسته د کابل پر لور وخوځېدی. (فیریه، ص: ۱۲۵)

مخکي مو وویل چي د شاه‌زمان د لښکرو سرقوماندان احمدخان نورزی، چي د شاه‌زمان د نورو مشرانو په څېر يې له وزیر وفادارخان څخه ښه زړه نه درلود، له لسو زرو او د فیریه په قول له پنځلسو زرو عسکرو سره د مقر په شاوخوا کي له شاه‌محمودسره یو ځای سو. شاه‌زمان ماته وکړه او بالآخره هغه څه ور سره وسول، چي ده له خپل مشر ورور همایون سره، چي د شاه‌محمود سکه ورور وو، کړي ول.

شاه‌محمود لکه څرنگه چي يې د سلطنت د نیولو قدرت او شجاعت نه درلود، دغه راز يې د ساتلو لیاقت او صلاحیت هم نه درلود. هغه د کابل د تخت د نیولو له لومړۍ ورځي په عیش او نوش لگیا سو او د یوه منتهی کمزوري شخصیت په حیث يې ټول قدرت او د پاچاهی کاروبار خپل هوښیار وزیر فتح خان ته پرېښودل. د همدغه عیاشی، بې‌خبری او بې‌ارادگی له امله يې د شاه‌شجاع په مقابل کي ماته وکړه، بندیخانې ته ولاړ او بیرته د همدغه فتح خان په توره او هوښیاري له بنده وژغورل سو. په (۱۸۰۹م.) کال کي يې دوهم ځل تخت ونیوی او لکه له لومړي ځل تجربې څخه چي يې هیڅ نه وي زده کړي، د دوهم ځل پاچهی ټول نهه کاله يې په عیش او نوش تېر کړل؛ او دا ځل خو لا د دوست‌محمدخان توره او تدبیر هم ور سره ملگري ول. شاه‌محمود د فتح خان په برکت د بارکزیو لوی قوم د ځان کړ او د هغه قوم خانان او مشران هر هغه خدمت ته، چي فتح خان يې غوښتنه کوله، حاضر ول. شاه‌محمود د پاچهی قدرت یوازي د قدرت د خوړو او مزو له پاره په کار وو. هغه پوهېدی چي فتح خان د پاچهی په قلمرو کي د نظم او امنیت د ساتلو قدرت او کفایت لري، نو ځکه يې ټول اختیارات هغه ته پرېښودل او په خپله په ښکارونو او مېلو بوخت سو. فتح

خان په مقابل کې د دې اعتماد څخه هیڅ بده استفاده و نه کړه او چې څه عیش او نوش وو، هغه یې پر ځان حرام کړ او ټوله توجه یې د هیواد امنیت، ښېګڼو، تجارت، د لارو ساتلو او د شاهي خزانې ډکولو ته واړوله. فتح خان که څه هم هر څه یې په وس کې ول او په خلکو کې یې بشپړ محبوبیت درلود او ټول خلک پوهېدل، چې که هر څه ښه او پر ځای کارونه کیږي، نو عامل یې فتح خان دی؛ مګر فتح خان تر پایه پورې شاه‌محمود ته وفادار پاته سو او په خپل هغه مقام او صلاحیتونو چې پاچا ور کړي ول، قانع وو. هیڅ داسې سند نه سته، چې شاه‌محمود او د سدوزیو قدرت ته د فتح خان بې‌وفایي وښیي. فتح خان د خپلې تورې او عقل په زور ټول خانان او قبایل داسې تابع کړل، چې له دې څخه مخکې یې مثال نه وو لیدل سوی. هغه د حکومت او پاچا مخالفینو او یاغیانو ته سخت ګوزار ور کاوه او کله چې به یې شورش او مخالفت کرار کړ، نو بیا یې په هغه اندازه له ځوانمردۍ څخه کار اخیست. ده د پاچاهۍ اکثر حساس ښارونه او ولایتونه خپلو ورونو ته، چې ده تر هر چا زیات اعتماد په درلود او هغوی ټولو ده ته درناوی درلود، وسپارل؛ د بلوچستان حکومت یې رحمدل خان ته وسپاره، پردل خان ته یې د کندهار حکومت وسپاره، سلطان محمدخان یې په پېښور کې مقرر کړ، شېردل خان یې په غزني کې، کهندل خان په بامیان کې او نور ورونه یې په دغو یادو سویو ولایتونو کې د والیانو تر اداره لاندې مقرر کړي ول. پاته نور ورونه یې چې له ده سره یې د حکومت په چارو او اداره کې مرسته کولای سوای، لکه نواب جبارخان، عظیم خان او نواب اسدالله خان یې له ځان سره په کابل کې وساتل. دوست‌محمدخان ته یې د خپلې کورنۍ د چارو اداره سپارلې وه او یوازنی سړی وو، چې د فتح خان پر آس یې د سپرېدلو اجازه درلوده او همدغه آس یې د جنګ په میدانونو کې ځغلاوه. (فیریه، ص: ۱۴۷-۱۴۸)

د شاه‌محمود زوی کامران میرزا که څه هم چې ډېر ځوان وو، خو د فتح خان له قدرت، صلاحیت او پاچا ته د نیژدې والي له امله یې ډېره سخته کینه ور سره درلوده. کامران له لومړنی ځوانی څخه ډېر سخت ظالم او په عین وخت کې داسې عیاش وو، چې له هیڅ ډول اخلاقي فساد څخه یې مخ نه اړاوه. انګرېز مؤرخ ټېټ د ده په باره کې وایي چې کامران دونه ظالم وو، چې بس د انسان په جامه کې پړانګ وو. هر څه ته چې عیش او اخلاقي انحراف ویل کیږي، هغه یې کول او په رګونو کې یې د قهر او بې‌رحمۍویني جریان درلود. په لومړۍ ځوانۍ کې یې د نورو افغانانو په څېر د جنګ په میدانونو کې زړه‌ورتوب او مړانه ښودله، مګر په وروستیو کلونو کې، چې د عمل کولو ټولې دروازې ورته بندې سوې، نو یو ظالم واکمن ور څخه جوړ سو او وحشت ته یې مخه

کړه. (تېپټ، ص: ۱۲۶)

د شاه‌زمان زوی شهزاده قیصر له خپل کاکا شاه‌شجاع سره لودهیانې ته نه ولاړ او د شاه‌محمود سره په کابل کې پاته سو. شهزاده قیصر زیاتره د فتح خان له خوا ساتل کېدی او د هغه په ملاتړ یې زړه پوړه وو. شهزاده کامران هغه ته یوه ورځ په خپل کور کې شکنجې ور کړې او د جواهراتو غوښتنه یې ور څخه وکړه. فتح خان خبر سو او هغه ته یې نجات ور کړ. بله ورځ یې په کابل کې په یوه شاهي باغ کې قتل کړ. فتح خان چې د هغه د ساتلو ذمه یې وهلې وه، شاه‌محمود ته شکایت وکړ او هغه ته یې وویل چې کامران به په دغه ظالمانه سلوک له نورو افغانانو سره څرنگه گوزاره کوي. دواړو فیصله وکړه چې کامران ته به د هیڅ ولایت حکومت نه سپاري او په کابل کې به یې ساتي. له دغه وختله څخه له فتح خان سره د کامران دښمني او کینه نوره هم زیاته سوه. (فیریه، ص: ۱۴۶-۴۷)

د شاه‌محمود د پاچاهی په دوهم کال د کشمیر والي عطامحمدخان د مالیاتو له ور کولو څخه ډډه وکړه او شاه‌محمود، وزیر فتح خان او دوست‌محمد خان، دریو واړو د کشمیر د مسئلې د حلولو له پاره، چې د افغانستان له پاره یې ډېر زیات ستراتیژیک او مالي حیثیت درلود، پر هغه لور له ډېرشو زرو عسکرو سره، حرکت وکړ. عطامحمد خان یو ځل د کشمیر د مالیاتو ور کول ومنل او شاه محمود او وزیر فتح خان د ملتان پر لور حرکت وکړ، خو کله چې دوی دواړه له صحنې څخه لیري سول، نو عطامحمد خان بیرته سرکښی ته ملا وتړله. فتح خان او سردار محمدعظیم خان د کشمیر پر لور حرکت وکړ. په دغه وخت کې چې دوی د کشمیر د مسئلې په حلولو او د عطامحمد خان د ځپلو په کار لگیا ول، له کابل څخه د یوې بلې هنگامې خبر ورته را ورسېدی. شهزاده عباس له بالاحصار څخه تبنتېدلی او کوهدامن ته تللی وو. په کوهدامن کې د سید اشرف او سید عطا په نوم دوه روحانیون ور سره یو ځای سوي او د کابل پر لور یې حرکت کړی وو. مرحوم کهزاد د شهزاده عباس د دغه ښورښ په ارتباط د ملا یوسف مقتول په نوم یو شاعر له یوې منظومې رسالې حواله ور کوي. د منظومې رسالې وجود په خپله د دې معنی ور کوي، چې شهزاده عباس چې ځان یې شاه عباس باله او حتی خطبه او سکه یې جاري کړې وه، په کابل کې لویه هنگامه جوړه کړې وه. شاه محمود او وزیر فتح خان په پېښور کې پاته سول او دوست‌محمدخان ته یې د ښورښ د ځپلو وظیفه ور کړه. دوست‌محمدخان ډېر ژر ځان کابل ته ورساوه او مخکې له هغه چې شاه عباس خپل قدرت مستحکم او له ایله جاري خلکو څخه منظم پوځ جوړ کړي، بالاحصار محاصره کړ او په لسو ورځو

کي يې شاه عباس تسليمېدلو ته مجبور کړ. شاه عباس يې بيرته په بالاحصار کي بندي کړ او سيد اشرف يې مړ کړ او سيد عطا يې د پيلانو په پښو کي پايمال کړ. (موهن لال، لومړی ټوک، ص: ٨١)

له شهزاده عباس سره د روحانيونو له ملګرتوب څخه په څرګنده ښکاري، چي دې ښورښ د سُني او شيعه د جنګ شکل غوره کړی او د شمالي د سُني سيمو مُلايانو د شهزاده عباس د پاچا کولو تر نامه لاندي خپل هدفونه درلودل. دا چي شهزاده عباس د بالاحصار له بنديخانې څخه په تښتېدلو، استالف ته په رسېدلو، د روحانيونو او خلکو په غونډولو او پرته له منظمو پوځونو، د کابل د ښار په نيولو او بالاحصار ته په رسېدلو بريالی کيږي، د دې معنی دا ده چي په کابل کي هيڅ ډول امنيتي قوه، چي لږ تر لږه د ښار امنيت دي وساتي او د بالاحصار په څېر له حساسي او معتبري بنديخانې څخه د بنديانو د تښتېدلو مخه ونيسي، موجوده نه وه. د منظومې شاعر د شهزاده عباس ښکاره مخالف دی او هغه د دجال او لښکر يې له ياجوج سره تشبيه کوي او وايي چي له بارانې څخه تر هندوګذر پوري يې قصابان، چرم ګران، ندافان، سقاوان، جولاګان او... پر ځان را ټول کړي ول. د دې منظومې له يوه بيت څخه په څرګنده ښکاري، چي د شمالي خلک هم د شلمي پېړۍ د وروستيو لسيزو د مجاهدينو په څېر د چور او تالاک له پاره له شهزاده عباس سره ملګري سوي او کابل ته راغلي ول.

ګروهی شنيدم که از بهر مال

ګرفته بکف ريسمان و جوال

د کابل وضع که څه هم چي د دوست‌محمد خان په تدبير او توره کراره سوه؛ خو له وزير فتح خان سره يې جدي انديښنه پيدا کړه او له شاه‌محمود او سردار محمدعظيم خان سره کابل ته ستون سو. د شمالي سيمو امنيتي وضع د شهزاده عباس له وروستي ښورښ سره ناکراره سوې وه او فيصله پر دې وسوه، چي دوست‌محمد خان دي په شمالي کي نايب‌الحکومه سي. دوست‌محمد خان د خپل حکومت په څو مياشتو کي ځيني کسان په طلا او پيسو د ځان کړل، ځيني يې د وسلو په زور کرار کړل او ځيني يې په سوګندونو او وعدو خپل دربار ته وبلل او له منځه يې يووړل. په دې لړ کي يې محمداسلم او ساقي خان کوهستاني، د اوپيان اوسېدونکی سيد عشرت او د فرزې اوسېدونکی خان جي په مختلفو وسيلو له منځه يووړل. حتی د ځينو خانانو او ياغي مشرانو له لوڼو سره يې ودونه وکړل او بيا يې قتل کړل او د خان جي د نيولو له پاره يې، چي په امير دوست‌محمدخان يې هيڅ ډول اعتبار نه کاوه، د هغه يو بل دښمن خان قتل کړ او کله چي خان جي بالآخره د ده په دوستی او

سوګندونو اعتبار وکړ او دربار ته يې حاضر سو، له منځه يې يوړ. (هغه کتاب، ص: ٩٦-٩٧)

سره له هغه چي دوست‌محمد خان د کابل د تخت غليمان او ياغيان وځپل، مګر په هغه سيمه کي ناکراري دوام وکړ. بالآخره شاه‌محمود او وزير فتح خان د شمالي د وضع د کرارولو له پاره روان سول او د دوست‌محمد خان سکه ورور اميرمحمد خان يې په کابل کي والي کړ. خو په هغه جنګ کي د شمالي سيمو د ياغيانو او د شاه‌محمود د لښکرو تر منځ، چي د برج شاخي په نوم يو ځای سره وسو، د شاه‌محمود لښکرو ماته وکړه او شاه‌محمود او وزير فتح خان بيرته کابل ته ستانه سول. (کهزاد، ص: ٣٩١)

دوست‌محمدخان په کوهدامن او کوهستان کي پاته سو او په څو مياشتو کي يې د هغي سيمي وضع داسي کراره کړه، چي په ډېر وخت کي يې داسي امنيت نه وو ليدلی.

دوست‌محمد خان د کابل د شمالي سيمو او کوهستان د امنيت له ټينګولو څخه وروسته کابل ته ستون سو او د خزانې د ډکولو له پاره يې په اصلاحاتو لاس پوري کړ. په يوه کال کي يې خزانه يو څه ډکه کړه او دواړو ورونو سردار دوست‌محمد خان او فتح خان کشمير ته د تللو اراده وکړه. فتح خان په لاره کي د پنجاب د مهاراجا رنجيت سينګهـ سره دفاعي تړون لاسليک کړ او له هغه څخه يې د کشمير د فتح کولو له پاره پوځي مرسته وغوښتله. رنجيت سينګهـ په دې شرط پوځي مرسته ور سره ومنله، چي فتح خان به د غنميتونو د تر لاسه کولو په صورت کي دريمه برخه رنجيت سينګهـ ته ور کوي. په کشمير کي د عطامحمد خان او سردار دوست‌محمد خان تر منځ په جنګ کي عطامحمد خان ماته وکړه او د خپل ورور غلام‌محمد خان سره دواړه د فتح خان په لاس کي بنديان سول. فتح خان د دې جنګ له ګټلو څخه وروسته د رنجيت سينګهـ استازي ته څکه د غنيمت منل سوې برخه ور نه کړه، چي ويل يې د هغه پوځيانو په جنګ کي برخه نه وه اخيستې. فتح خان د کشمير والي او د هغه ورور غلام‌محمد خان دواړه خوشي کړل. د کشمير حکومت يې خپل ورور سردار محمدعظيم خان ته وسپاره او د کابل پر لور يې حرکت وکړ. عطامحمد خان کندهار ته ولاړ او له کامران سره، چي له فتح خان سره يې هر وخت په زړه کي کينه درلوده، يو ځای سو او غلام محمد خان په پېښور کي د اټک قلا، چي د دوی د کورنۍ په لاس کي وه، په يو لک روپۍ پر رنجيت سينګهـ باندي خرڅه کړه. رنجيت سينګهـ د دې ستراتيژيکي قلا له تر لاسه کولو سره پېښور او ټولي پښتني سيمي تر تهديد لاندي را وستلې او کرار کرار يې فتح کړې. ويل کيږي چي سردار دوست‌محمد خان خپل ورور فتح خان ته ويلي ول، چي غلام‌محمد خان خوشي نه کړي او له ځان

سره یې وساتي. (موهن لال، لومړی ټوک، ص: ۸۴-۸۶)

ویل کیږي چې عطامحمدخان په کشمیر کې د خپل قدرت په زمانه کې، د هغه سمسور او شتمن ولایت له مالیاتو څخه په تر لاسه کړو پیسو جواهرات اخیستل او د ټولو جواهراتو په ډول یې د جعلي نقلونو د جوړولو له پاره له هوښیارو استادانو څخه کار اخیستی او نقلي جواهرات یې په یوه بله صندوقچه کې ساتل. کله چې فتح خان کشمیر ونیوی او عطامحمد خان تسلیمېدلو ته مجبور سو، نو هغه ته یې د بخښنې د غوښتلو له پاره قرآن شریف واستاوه او په هغه قرآن شریف یې سوګند یاد کړ، چې د کشمیر له عایداتو څخه فقط دغه جواهرات ور پاته دي، نور هیڅ نه لري. فتح خان په ډېره خوشالي هغه جواهرات، چې ټول نقلي ول، ور څخه قبول کړل او عطامحمد خان یې رخصت کړ. فتح خان ته وروسته معلومه سول چې هغه ټول جواهرات نقلي ول، خو دا وخت کار له کاره تېر سوی او عطامحمد خان ځان کندهار ته رسولی وو. (عطامحمد، ص: ۹)

له هغې عریضې څخه چې د کشمیر خلکو د شاه‌محمود دربار ته د سردار محمدعظیم خان د ظلمونو او ضمنا د پخواني والي عطامحمد خان څخه د خوښی ښرګندولو په منظور استولې ده، ښکاري چې سردار محمدعظیم خان د هغه ولایت پر خلکو باندي سخت ظلمونه کړي او په عذاب یې اخته کړي دي. د عریضې یو بیت چې د پخواني او اوسني والي نومونه پکښې راغلي دي او ادبي ارزښت لري، ډېر مشهور دی:

عطـای محمـد زمـا بـرده ای

بـلای عظیمـی فرسـتاده ای

رنجیت سینګهـ ډېر ژر د اټک د قلا په ترمیمولو لګیا سو او ډېره زیاته قوه یې پکښې واچوله. هغه دې سیمې ته له فتح خان او دوست‌محمدخان سره د مقابلې له پاره، چې ده یې هر آن د راتللو انتظار کاوه، ډېره زیاته قوه واستوله. د رنجیت سینګهـ له انتظار سره سم، فتح خان او دوست‌محمد خان ډېر ژر ځانونه د اټک د قلا شاوخوا ته ورسول. د دواړو خواوو تر منځ سختې نښتې وسوې. خبره چې هر ډول وي، هغسې به وي، خو په نتیجه کې فتح خان ماته وکړه او پېښور ته پر شا سو[٢].

---

[٢]مرحوم سید قاسم ریشتیا د خپل کتاب د څلرویشتم مخ په حاشیه کې، د سراج التواریخ د لومړي ټوک د اته اتیایم مخ په حواله لیکي چې شاه‌شجاع هم رنجیت سینګهـ ته د کوه نور الماس تر ورکولو وروسته په دغه جنګ کې له خپلو افغاني قواوو سره برخه درلوده. په داسې حال کې چې د شاه‌شجاع د خپلو خاطراتو په شمول، ټول مؤرخین په دې عقیده دي، چې هغه له رنجیت سینګهـ څخه په تېښته ولاړ او بیا ئې ایله شل کاله وروسته له هغه سره لیکونه←

د شاه‌محمود د سلطنت پاته کلونه د خپلو ورونو شاه‌زمان او شاه‌شجاع په خلاف، چي زیاتره په داخلي جنګونو کي تېر سول، نسبتاً ارام ول. د دې علت دا وو چي جنګونه او ناکراري به زیاتره د والیانو او مقتدرو حکمرانانو د یاغي کېدلو او د مالیاتو د څنډولو او یا بېخي انکار کولو له امله پېښېدل؛ خو څرنګه چي فتح خان د شاه‌محمود د قلمرو ټول شتمن ولایتونه او حساس ځایونه د خپلو ورونو تر منځ وېشلي ول او هغوی ټول خپل مشر ورور فتح خان ته وفادار ول او هر یوه خپل ور سپارل سوی ولایت آرام ساتلی وو، نو چنداني شورښونه منځ ته نه را تلل.

د (۱۸۱۶م.) کال په وروستیو شپو، ورځو کي د کابل دربار ته داسي آوازې ورسېدلې، چي د هرات والي حاجي فیروزالدین د ایران له دربار سره پرله پسې په تماس کي دی او د ایران په مرسته د خپلواکۍ خیال لري. داسي آوازې هم را ورسېدلې، چي حاجي فیروزالدین چي د شپاړسو کالو راهیسي په هرات کي نایب‌الحکومه دی، د ایران له پاچا فتحعلي‌شاه سره منلې ده چي په هرات کي به سکه او خطبه د هغه په نامه کوي، خو د ایران پاچا به د هرات په داخلي چارو او مالیاتو کي لاس نه وهي او د شاه‌محمود د یرغل په مقابل کي به یې ملاتړ کوي. شاه‌محمود او فتح خان د دغه آوازو په اساس، چي ډېري بې‌اساسه هم نه وې، د شهزاده کامران سره یو ځای د هرات پر لور حرکت وکړ.

شاه‌محمود او کامران په کندهار کي پاته سول او فتح خان ته یې د هرات د والي د نیولو او کندهار ته د لېږلو هدایت وکړ. حاجي فیروزالدین هم د دې ورځي انتظار درلود او په لومړي سر کي یې فتح خان ته اجازه ور نه کړه چي هرات ته داخل سي، خو فتح خان له خپلو هنرونو او غوړو پیغامونو څخه کار واخیست او حاجي فیروزالدین یې د ښار د دروازو پرانیستلو ته مجبور کړ. فتح

---

← تبادله کړل. نه شاه‌شجاع له رنجیت سینګهـ سره وو او نه ئې افغاني قوه درلوده، چي په جنګ کي برخه واخلي. سراج التواریخ په نیوي‌یم مخ کي هم دغه ته ورته یوه بله لویه تاریخي غلطي کوي او وایي چي په (۱۸۱۶م.) کال کي فتح خان او شاه‌محمود د لاهور د نیولو په نیت روان سول. رنجیت سینګهـ هم د خپل جنرال رام سینګهـ او شاه‌شجاع سره د اټک د سیند پر غاړه مقابله ور سره وکړه... شاه‌محمود او وزیر فتح خان ماته وکړه او د سند او ملتان ته د مالیاتو د اخیستلو له پاره روان سول.

په داسي حال کي چي نه دا جنګ اصلاً پېښ سوی او نه ئې د پېښېدلو په صورت کي د شاه‌شجاع ګډون امکان درلود، ځکه چي هغه د څلورو کالو راهیسي په لودهیانه کي د انګلیسیانو پر سترخوان مېلمه وو. د ریشتیا په څېر یوه مؤرخ له پاره دا لازمه نه وه، چي پر دغه راز مغشوشوونکو او غلطو متونو باندي ئې له سره حواله ور کړې وای، ځکه چي دغه راز ناسم متون هسي بې‌ځایه د تاریخ د شاګردانو او پلټونکو ذهنونه مغشوشوي.

خان په ښار کي له څو ورځو تېرولو ځخه وروسته د يوې مبلمستيا په ترڅ کي حاجي فيروزالدين بندي کړ او کندهار ته يې واستاوه.

فتح خان ته رپوټ رسېدلی وو چي حاجي فيروزالدين د هرات د کلونو کلونو عايدات او جواهرات د حرم په خزانه کي ساتلي دي. که څه هم چي حرم داسي ځای وو چي هيچا ته د ور تللو اجازه نه وه؛ خو فتح خان دا مسؤليت درلود چي د حکومت پيسې بايد اصلي مالک ته، چي بيت‌المال دی، تسليم کړي. په دې برخه کي سردار دوست‌محمد خان تر خپل حد تېری وکړ. د حاجي فيروزالدين د زوی ملک قاسم مېرمن رقيه بېگم يې، چي د شاه‌محمود لور وه، تلاښي کړه او ويل کيږي چي د هغې بې عزتي يې وکړه. دا رپوټ له حرم ځخه فتح خان ته ورسېدی او هغه د دوست‌محمد خان د گرفتارولو امر وکړ. دوست‌محمد خان پر خپل آس باندي سپور سو او مخامخ کشمير ته روان سو. په لار کي يې په کندهار کي له شاه‌محمود او کامران سره وليدل او هغوی ته يې خپل وروستی سلام وکړ. سردار محمدعظيم خان د فتح خان له امر سره سم دوست‌محمد خان بندي کړ.

رقيه بېگم خپل پوړنی او يو ليک خپل ورور شهزاده کامران ته واستاوه او هغه ته يې پېغور ور کړ، چي د ده په پاچهي کي يې خور بې‌عزته کيږي. کامران چي فتح خان ته يې له خدايه پلمه غوښته او څو کلونه پرله پسې يې خپل پلار د هغه له قدرت او محبوبيته وېرولی او د فتح خان پر ضد اقدام کولو ته هڅولی وو، د شاه‌محمود په حکم د هرات پر لور حرکت وکړ. که دا خبره ومنو چي فتح خان په دغه سفر کي له کابله تر هرات پوري په شپږو مياشتو کي څه کم لس ميليونه روپۍ په انعامونو، سوغاتونو او عسکرو ته په پېشکي تنخواوو لگولي دي، نو سړی ويلای سي چي فتح خان بايد د نفوذ په خاوندانو او پوځ کي ډېر زيات محبوبيت درلودلی وي. (ټېټ، ص: ١٢٦)

په دغه شپو، ورځو کي د فتح‌علي‌شاه زوی حسن‌علي ميرزا د خراسان پر لور لښکرکښي وکړه او د هرات خوا ته را روان سو. د هغه له بدي طالع فتح خان له زياتو قواوو سره هرات ته راغلی او تيار ناست وو. فتح خان د هغه مخي ته ور ووت او د دواړو خواوو قواوي له اسلام قلعه سره نيژدې سره مخامخ سوې. ايرانيانو په جنگ کي ماته وکړه او بيرته ايران ته پر شا سول. په دغه وخت کي يوه گولۍ د فتح خان په خوله کي ولگېده او هغه ځای پر ځای بې‌هوښه سو. عسکرو يې فکر وکړ چي فتح خان ووژل سو او په ډېره وارخطايي او بې‌نظمي د هرات ښار ته ننوتل. فتح خان خپلو ساتونکو سمدستي د هرات ښار ته ورساوه او هلته معلومه سوه، چي زخم يې ډېر کاري نه دی. جنگ پای ته

ورسېدی او هري خوا فکر کاوه، چي مقابل لوري ته يې ماته ور کړې ده.

فتح خان چي په ځان کي يې هيڅ ګناه نه ليده، په هرات کي د کامران تود هرکلي وکړ او د حکومت چاري يې د پخوا په شان سمبالولې. کامران د ايران د خراسان والي حسن‌علي ميرزا ته ليک واستاوه. د هغه لښکرو ته يې د تلفاتو د رسېدلو له امله بخښنه وغوښتله، جګړه يې سوءتفاهم بللی او پړه يې ټوله پر فتح خان اچولې وه. حسن‌علي ميرزا په جواب کي ورته وليکل چي د دواړو هيوادونو د دوستی په خاطر بايد يا فتح خان ايران ته را واستوی او يا يې په سترګو ړوند کړی. کامران ته پلمه په لاس ورغله او په يوه مناسب فرصت کي يې، چي فتح خان د هيڅ راز خيانت انتظار نه درلود، هغه ګرفتار کړ او د عطامحمد خان په وسيله يې، چي له فتح خان سره يې پخوانی دښمني درلوده، په سترګو ړوند کړ.

د فتح خان ورونه؛ شېردل خان او کهندل خان سمدستي پر آسونو سپاره سول او د کندهار پر لوري يې مخ ونيوی. يوازي پردل خان، چي ناروغ وو او حرکت يې کولای نه سو، د کامران په لاس کي بندي پاته سو. پردل خان هم څه موده وروسته د کامران له نظربندی څخه وتښتېدی او له خپلو ورونو سره يو ځای سو. سردار محمدعظيم خان د فتح خان د ړندېدلو د بد خبر له اورېدلو سره، دوست‌محمد خان خوشي کړ او هغه ته يې د پوځ د برابرولو له پاره دوه لکه روپۍ او د ځلورو لکو روپيو سند ور کړ. (پيريس، ص: ۱۰۳)

دوست‌محمدخان د پېښور له سردارانو يارمحمد خان، سلطان محمدخان، سعيدمحمد خان او پيرمحمد خان سره د کابل پر لور روان سو او له پېښور څخه يې د تېمورشاه يو زوی سلطان علي هم ور سره واخيست او د کابل د تخت وعده يې ور سره وکړه، ځکه هغه په دې پوهېدی چي د افغانستان خلک به ډېر ژر له سدوزيو څخه بارکزيو ته د قدرت او پاچهی انتقال و نه مني او که نور هيڅ نه وي، يو تش په نامه سدوزی پاچا په کار دی.

هغه نسبي امنيت چي تقريبا اووه کلونه د فتح خان او دوست‌محمد خان په تدبير او توره ټينګ سوی وو، په څو ورځو کي داسي خراب سو او د داسي داخلي او خپل‌منځي جګړو اور بل سو، چي لمبې يې تر ډېرو کلونو پوري کراري نه سوې.

کابل يو ځل بيا هم خالي پاته وو او د امنيت د خوندي کولو له پاره يې څوک نه درلودل. شاه محمود او شهزاده کامران په کندهار کي پاته سول او عطامحمد خان باميزايي يې د کامران له زوی

شهزاده جهانګیر سره کابل ته واستاوه. مخکې له هغه چې بارکزي ورونه ځانونه کابل ته ورسوي، جهانګیر بالاحصار ونیوی او د پلار او نیکه را تللو ته منتظر سو. دوست‌محمد خان د عطامحمد خان په برخه کې، چې له وسلو او پوځونو سره راغلی وو، د جنګ پر ځای د خبرو لاره غوره کړه. عطامحمدخان ضمناً له شاه‌محمود څخه له دې کبله خفه وو، چې د کشمیر ولایت یې ور څخه اخیستی وو او د شهزاده کامران له خودخواه او مغرور شخصیت څخه یې هم ویره درلوده، نو د دوست‌محمدخان دا پېشنهاد یې، چې پر قرآن شریف باندې د مهر لګولو او سوګند یادولو سره ملګری وو، ور سره ومانه، چې د کابل د تخت د نیولو سره به عطامحمد خان د سلطان علي‌شاه وزیر وي او ټول اختیارات به یې په لاس کې وي. کله چې عطامحمد خان یو څه مطمین سو، نو د شهزاده سلطان علي د سلام له پاره برج وزیر ته، چې بارکزي ورونو ځای پکښې نیولی وو، ورغی. پیرمحمد خان چې قصداً یې پر قرآن شریف باندې مهر نه وو لګولی او په سوګند کې یې برخه نه درلوده، عطامحمد خان پر مځکه وویشتی او سمدستي یې سترګې ور څخه وایستلې.

بارکزي ورونو هم د خپل مشر ورور فتح خان د سترګو قصاص واخیست. هم یې د عطامحمد خان تر قوماندې لاندې عسکر بې‌سرپرسته کړل او هم یې شهزاده جهانګیر، چې له دوو زرو پوځیانو سره په بالاحصار کې ناست وو، له یوه غښتلي او جنګ لیدلي جنرال څخه بې‌برخي کړ. جهانګیر په بالاحصار کې محاصره سو. د امیر دوست‌محمد خان او د هغه له ورونو سره داسې توپچي قوه نه وه، چې د بالاحصار د محاصرې د ماتولو کار دې ور څخه واخیستل سي، نو د دوه څلوېښتو ورځو له پاره یې د بالاحصار محاصرې ته دوام ور کړ. بالآخره یې د بالاحصار یو برج په باروتو والوزاوه. جهانګیر په شپه کې وتښتېدی او کابل دوست‌محمد خان ته پاته سو. دوست‌محمد خان په دې پوهېدی چې که د کابل تخت ونیسي، له هرې خوا به له مخالفت سره مخامخ سي، نو سلطان علي یې د کابل پر تخت کښېناوه او په خپله د هغه وزیر سو. په حقیقت کې ټول قدرت د ده په لاس کې وو. (هغه کتاب، ص: ۱۰۷)

شهزاده جهانګیر ځان په وچه ځغاسته کندهار ته ورساوه او پلار او نیکه ته یې د کابل د سقوط کیسه تېره کړه. شاه‌محمود او کامران له دېرشو زرو عسکرو سره له کندهاره حرکت وکړ او کندهار یې ګل‌محمد خان پوپلزي ته وسپاره. دوست‌محمدخان له دریو زرو سپرو سره له کابل څخه را ووت او د دواړو خواوو پوځونه په چهارآسیاب کې سره مخامخ سول. دوست‌محمدخان پوهېدی چې له دېرشو زرو عسکرو سره په دریو زرو عسکرو مقابله کول چنداني ممکن کار نه دی، نو د

عطامحمدخان له مُهر څخه یې استفاده وکړه او د هغه له خوا یې شاه‌محمود او کامران ته ولیکل، چې ستاسي د لښکر مشرانو او جنرالانو له سلطان علي شاه سره د بیعت کولو فیصله کړې ده او که کابل ته ولاړ سي، نو ښایي د بارکزیو ورونو لاس ته ولوېږي او هلته به خبره ډېره گرانه سي. د دې خبري حقیقت معلومول، ځکه گران دي چې په هغه صحنه کي چا څه نه دي لیدلي او څه یې نه دي لیکلي. موږ دونه په یقین سره پوهیږو، چې په چهارآسیاب کي له یوې ورځي نښتو څخه وروسته نوره لویه جگړه نه ده سوې او دوست‌محمد خان د جگړې پر ځای له خدعې څخه کار اخیستی دی. شاه‌محمود او کامران روحیات له لاسه ور کړل او د شپې یې د کندهار پر لوري حرکت وکړ. کله چې یې پوځیان سهار خبر سول، دوی ډېر لیري تللي ول او لښکر یې هم تیت او پرک سو. شاه‌محمود او کامران د کندهار له شاوخوا سره خبر سول، چې کندهار د دوست محمدخان ورونو پردل خان او شېردل خان، له گل محمد خان پوپلزي څخه نیولی دی. شاه‌محمود او کامران د دهراود له لاري هرات ته ولاړل او هغه ښار یې د ځان کړ.



شهزاده کامران

## د فتح خان شخصیت

وزیر فتح خان د افغانستان د تاریخ له تر ټولو مهمو او ځلاندو شخصیتونو څخه دی. فتح خان د خپل پلار سرفراز خان یا پاینده خان تر وژل کېدلو وروسته، څه کم شل کاله په ټولو تاریخي پېښو او میدانونو کې وځلېدی. کله چې د توري ځای وو، هلته یې جنگ کاوه او کله چې به یې زور نه رسېدی، نو خدای داسې ژبه ور کړې وه، چې د هر ډول سخت دښمن زړه یې نرماوه او توره یې بې اثره کوله.

خو د هغه په باره کې د ځینو مؤرخینو تر اندازې زیات احساساتي قضاوتونه له واقعیتونو سره چنداني اړخ نه لگوي. د مثال په ډول مرحوم احمدعلي کهزاد په دې عقیده دی، چې فتح خان د یوه مدبر شخصیت په حیث، د سدوزي شهزاده‌گانو تر منځ اختلافات او د هغوی فعالیتونه رهبري کول او د خپل مرام د عملي کولو له پاره یې دراني شهزاده‌گان یو په یو امتحانول او په داسې لایق او باحیثیته شخص پسې گرځېدی، چې د افغانستان تخت او تاج هغه ته تسلیم کړي... (کهزاد، ص: ٣٦٦)

دا چې فتح خان د توري او تدبیر په میدانونو کې تل بریالی وو، په دې کې چنداني شک نه سته. خو موږ گورو چې فتح خان په سدوزیو شهزاده گانو کې په یوه له تر ټولو کمزورو شهزاده‌گانو یعني شاه‌محمود اعتماد کړی او له هغه سره تر پایه وفادار پاته سو. د دې علت دا دی، چې فتح خان یو جاه‌طلبه سړی وو. هغه ته د شاه‌محمود په څېر یو کمزوری پاچا په کار وو، چې په خپله خپل ټول قدرت فتح خان او د هغه ورونو ته، چې اکثر یې د توري خلک ول، وسپاري. د شاه‌شجاع له دربار څخه دوه ځله تښتېدل او د هغه په مقابل کې دوه ځله د شهزاده قیصر په څېر یو نالایقه او هرزه شهزاده پارول او وروسته د همدغه شاه‌شجاع په مقابل کې د یوه بل کمزوري او نا اهله شهزاده یونس پارول، په هیڅ توگه د وطن په گټه کار نه وو او د هر شهزاده د لمسولو او خپل کاکا سره د جنگ میدان ته په ایستلو کې هم سرونه رغړېدلي، هم بیت‌المال ته تاوان رسېدلی او هم د خلکو کلي او ښارونه پایمال سوي دي. وطن خو لابراتور نه دی، چې سړی تجربې پکښې وکړي، جنگ خو هسې ټوکې نه دي، چې سړی یې یو ځل پیل او بیرته ختم کړي. داخلي جنگونه په هر صورت د هیواد په تاوان وو او هر ځل یې یو عالم مصیبتونه او تباهی ور سره راوړې دي. زړې دښمنۍ یې

له سره تازه کړي دي، نوي دښمنۍ یې را پیدا کړي او د پښتنو د بې‌اتفاقۍ ناعلاجه رنځ یې دایمي کړی دی. له بده مرغه چې چا د دغو بدمرغو جنګونو په نتیجه کې د رسېدلو تباهیو او زیانونو ارقام ثبت کړي نه دي او د ارقامو او حتی د پېښو د څرنګوالي تر منځ دونه توپیر موجود وي، چې له سرې څخه د قضاوت کولو لاره ورکه کړي. د شاه‌محمود د پاچهۍ په دوهم کال له غلجیو سره د جګړې په نتیجه کې چې تقریباً یو کال یې دوام وکړ، د شپږو سوو غلجیو له کله منار څخه تر شپږو او لسو زرو غلجیو تر قتل عام او کله منارونو پورې ارقام ور کول کیږي. څرنګه چې دې جنګونو د اکثرو تاریخونو په قول زیات و کم یو کال دوام کړی دی، نو د تباهیو او سرونو د رغړېدلو په باب اټکل کول ډېر ګران کار نه دی.

البته که شاه‌زمان، شاه‌محمود، شاه‌شجاع او یا کوم بل شهزاده د ځان له پاره قدرت غوښتی او د قدرت له پاره یې خلک وژل او ښارونه یې پایمالول، نو فتح خان ته، چې هم یې پلار وژل سوی، هم د بارکزیو د یوې لویې قبیلې منل سوی سالار او هم یې په توره او عقل کې لیاقت ثابت وو، په سلو کې سل د قدرت د نیولو حق حاصل وو. موږ که د فتح خان د شخصیت په باره کې قضاوت کوو، نو باید چې په دغه مقطع کې یې وڅېړو.

په دې کې شک نه سته، چې شاه‌شجاع او شاه‌محمود په افغانستان غوندې یوه ملک کې، چې د کورنیو او قبیلوي دښمنیو او تضادونو د پېړیو تاریخ یې درلود، شاه‌شجاع یو کمزوری او شاه‌محمود یو عیاش او بې‌کاره سړی وو. دا د قدرت او سیاست عمومي فورمول دی، چې قدرت چې په هره وسیله تر لاسه کیږي، په هغه وسیله ساتل کیږي. شاه‌زمان، شاه‌محمود او شاه‌شجاع قدرت په توره تر لاسه کړی او باید په توره یې ساتلی وای، چې نه یې سوای ساتلای له تخته هم وپرزېدل. شاه‌شجاع د خپل ورور د تخت په پرزوونکي او د ده په مقابل کې جنګېدلي او بریالي سوي فتح خان باندي څرنګه اعتماد کولای سوای او کله چې د ده د ټول اعتماد او بخښني سره سره یو ځل ورته یاغي سو، دوهم ځل یې بیا څنګه اعتماد په وکړ. خپل وراره یې له هر ځل یاغي کېدلو وروسته بیرته د کندهار او کابل په څېر د حساسو او مهمو ښارونو نایب‌الحکومه کړ او داسي نور په لسهاوو حیاتي تېروتني. فتح خان د سدوزي شهزاده‌ګانو له اشتباهاتو او سادګیو څخه ګټه پورته کولای سوای او چې تر هغه ځایه پوري یې امکان درلود، خپله استفاده یې وکړه او د سلطنت د قدرت ټولي ستني یې، یوه په یوه ولړزولې او حساس ځایونه یې خپلو ورونو ته ور کړل.

د شرق‌الهند د کمپنۍ استازي الکيزانډر برنس په (۱۸۳۲م.) کال کي د لاهور، پېښور او کابل له لاري بخارا ته د سفر په ترڅ کي، په هند کي د لوديانې په ښار کي له شاه‌شجاع سره کتلي ول او د هغه په باره کي يې ډېر پر ځای قضاوت کړی دی "... ده په شکارپور کي دا هېره کړې وه، چي د يوه پاچا په حيث خپل حيثيت خوندي کړي. هغه د شکارپور او سند له خلکو سره په داسي سپکو کارونو کي لاس درلود، چي هم يې د هغو خلکو عزت او اعتبار بد نامه کړ او هم يې ځان بد نامه کړ. سړی فکر نه سي کولای چي هغه به هيڅ وخت د پاچهۍ لياقت درلود. له ده سره چي سړی ګوري نو ډېر په نزاکت ناسته، ولاړه او خبري کوي، مګر چي قضاوت يې ګورې نو تر يوه عادي او ساده سړي لوړ نه دی. که داسي نه وای نو ده به اوس له خپل هيواد او تخت څخه ليري په تبعيد کي ژوند نه کولای. شل کاله کيږي چي له وطنه ليري دی؛ لا يې عمر پنځوس ته نه دی رسېدلی، مګر ټول اميدونه يې له لاسه ور کړي دي" (برنس، بخارا، ص: ۳۱۳)

له دې پېښو څخه څه باندي يو سل او شل کلونه مخکي د پښتنو د تاريخ تر ټولو هوښيار او د پښتو د شعر لمر خوشحال خان د قدرت په باب، چي طبعاً د ده د سيمي د واقعيتونو انعکاس دی، څه ښايسته غزل لري:

څـو د ملـک وارث و نـه وهـي سرونـه
هـومره چيـري قرارېـږي سـمه، غرونـه

يـا بـه ستا پـه وره نـاري وي، تـه بـه ژاړې
يـا دستا لـه لاسـه ويـر د چـا پـه ورونـه

رخنه‌ګر د ملک پرې مه بږده په خپل ملک کښي
پـه حکمـت پـه زرو زور پـه لښـکرونه

څـو پـه تـورو، پـه توبريـو، پـه نېزو شي
صـد چنـدان شي پـه تـدبير پـه هنرونـه

رور او زوی د ملک په کار کښي قتل کيږي
نـور پـه واړو بانـدي جـوړ شـول محضرونـه

بـې د تيـغ لـه آبـه نـوري اوبـه نـه شـته
چـه جنګجـوی سره سـاړه کـا ټـرونـه

د سردار د رياست ونه په وينو
په لړشينو د اعداء کا ثمرونه
په ميدان کښې تويي شه دي د سر ويني
نه چې ډکه سينه وړې له ځيګرخونه
يا د مرد غوندي شمله د دستار پريږده
يا په سر کړه لکه ښځه ميزرونه

د خوشحال خان ختک دا شعر د سياست کولو، قدرت نيولو او قدرت ساتلو په موضوع کې د اووه لسمې پېړۍ د تاريخي او اجتماعي شرايطو تقاضا وه. دې شرايطو د نولسمې پېړۍ په افغانستان کې هم چنداني تغير نه وو کړی او حتی په شلمه پېړۍ کې هم دغه ډول شرايط حاکم ول؛ او د قدرت ساتلو له پاره د قوت استعمال ته اړتيا وه.



وزير فتح خان (۱۷۸۰-۱۸۱۸ز.)

انځورګر: غفور برېښنا

## د قدرت نیولو له پاره د شاه‌شجاع دریيم ځل هلي ځلي

شاه‌شجاع تقريباً څلور کاله په لوديانه کي د انګليسيانو په سيوري کي په آرامی تېر کړل. په افغانستان کي د حالاتو بدلېدلو، د کابل له تخته د شاه‌محمود پرزېدلو او په نتيجه کي د داخلي جنګونو د پيل کېدلو حتمي احتمال له هغه سره يو ځل بيا د تاج او تخت د نيولو اشتها پيدا کړه. د فتح خان کشر ورور دوست‌محمد خان، چي په کشمير کي له خپل ورور سردار محمدعظيم خان سره بندي وو، د مشر ورور د کسات اخيستلو له پاره کابل ته حرکت وکړ او سردار محمدعظيم خان خپل ورور نواب عبدالجبار خان ته د کشمير چاري وسپارلې او په خپله د پېښور پر لور روان سو. د پنجاب حکمران رنجيت سينګه ډېر ژر کشمير له نواب عبدالجبار څخه واخيست او د سيکهانو په قلمرو پوري يې وتاړه. سردار محمدعظيم خان له پېښور څخه شاه‌شجاع ته ليک واستاوه او هغه ته يې د کابل د تخت د نيولو له پاره د عملياتو بلنه ور کړه. شاه‌شجاع چي دا ډول بلنه له خدايه غوښته، سمدستي حرکت وکړ. له پېښور څخه يې خپل زوی شهزاده تېمور د سيند د ميرانو او مشرانو، چي د شاه محمود له اداري او د هغه له مامورينوڅخه په عذاب ول، په بلنه شکارپور (ښکاپر) ته واستاوه. د سيند ميرانو د هغه هرکلی وکړ او شهزاده تېمور ته يې د شکارپور اداره ور وسپارله.

شاه‌شجاع په پېښور کي له سردار محمدعظيم خان سره خبري وکړې. د سردار له خبرو څخه څرګنده سوه، چي هغه په خپله د کابل د قدرت د نيولو تکل کړی او غوښتل يې چي شاه‌شجاع تش په نامه پاچا وي او نور ټول واک د هغه په لاس کي وي. شاه‌شجاع چي د کابل پاچهي يې کړې وه، تش په نامه قدرت منلای نه سو او د دواړو خواوو تر منځ اختلاف د جګړې سرحد ته ورسېدی. د پېښور د تهکال په سيمه کي د دواړو خواوو پوځونه سره مخامخ سول. د شاه‌شجاع پوځيان ډېر ښه وجنګېدل او د سردار محمدعظيم خان پوځيان څو ځله پر شا تګ ته مجبور سول، خو يو ناڅاپه د شاه‌شجاع په پوځ کي د باروتو په ذخيره کي ډېر سخت اور ولګېدی او هم يې جبه‌دخانه تالا کړه او هم يې ډېر پوځيان د باروتو د اور په اثر تلف سول. شاه‌شجاع د اور د لوګيو او د خلکو له وارخطايي څخه په استفادې سره د جنګ له ميدانه په تېښته ولاړ او ځان يې د خيبر درې ته ورساوه. د خيبر اپرېديو د هغه هرکلی وکړ او چي سردار محمدعظيم خان د هغه د تر لاسه کولو له پاره هر څه تلاښ وکړ بريالی نه سو او د خيبر اوسېدونکو د شاه‌شجاع ساتنه وکړه.

سردار محمدعظیم خان د تېمورشاه بل زوی شهزاده ایوب، چې دا وخت په پېښور کې اوسېدی، ورسره واخیست او په کابل کې یې د ایوب شاه په نوم پر تخت کښېناوه. ایوب شاه د سردار محمدعظیم خان له آرزو سره سم ویلي ول چې ما پاچا کړئ او سکه زما په نامه ووهئ، نور زه له تخته سره غرض نه لرم. ایوب شاه دونه بې وسه وو، چې د وزارت له پاره مخصوصه چپنه هم سردار عظیم خان په خپلو پیسو واخیستله او ایوب شاه هغه په عظیم خان واغوستله. ایوب شاه تر هغه چې له عظیم خان سره یې منلې وه، نور هم د هغه تر لاس لاندې او بې اختیاره ژوند پیل کړ او د هغه په امر او غوښتنه یې ټول هغه ځوان شهزادګان چې په کابل کې اوسېدل او د پاچهي خیال یې په سر کې درلود، قتل کړل. خو وروسته لکه چې ایوب شاه هم د غلامۍ ژوند نه سوای منلای، نو خپلو ورونو شاه‌محمود او شاه‌شجاع ته یې لیکونه واستول او له هغوی څخه یې د مرستې غوښتنه وکړه. دا لیکونه هغوی ته و نه رسېدل او د عظیم خان لاس ته ولوېدل. هغه لیکونه یې ایوب شاه ته وښودل او هغه یې له کابل څخه بیرته پېښور ته په تللو مجبور کړ. (فیریر، ص: ۱۸۲)

سردار دوست‌محمد خان د تېمور شاه بل زوی شهزاده سلطان علي د وخته لا په کابل کې ور سره ساتلی او د تېمورشاه د ریښتوني وارث په توګه یې پر تخت کښېنولی وو. د دواړو سردارانو د دسیسو په وجه، سلطان علي او د ایوب شاه زوی اسماعیل ووژل سول. په همدغه توګه د تېمورشاه بل زوی شهزاده مراد میرزا، چې نه ده معلومه څرنګه په کندهار کې اوسېدی، کهندل خان وواژه. (هغه کتاب، ص: هغه مخ)

د سند میران د شاه‌شجاع له وروستی ماتې څخه خبر سول او په دې فکر کې وه، چې د شاه شجاع له زوی شهزاده تېمور سره، چې په شکارپور کې یې اته میاشتې په عیش او نوش تېرې کړې وې، څه وکړي. په دغه وخت کې شاه‌شجاع له خیبر څخه خپل ځان شکارپور ته ورساوه او د چارو واګې یې په لاس کې ونیولې.

شاه‌شجاع تقریباً دوه کاله په شکارپور کې مستقل واکمن وو. که د هغه د حکومت او ادارې په باره کې د معاصر تاریخ لیکونکي خبري ومنو، چې د ردولو له پاره یې بل ماخذ هم نه لرو، نو شاه شجاع په شکارپور کې د خپل قدرت په دوه کلنه دوره کې له هیڅ ډول ظلم او تېري څخه مخ نه دی اړولی. شاه‌شجاع چې د کابل د تخت د بیرته نیولو ارمان یې هیڅ وخت له زړه نه وو ایستلی، پیسو او خزانو ته ضرورت درلود. هغه چې څه پیسې او طلاوې درلودې یا رنجیت سینګه‌ ور څخه

لوټلي او يا يې په جنګونو کي لګولي وې. د دې کمبود د پوره کولو له پاره يې له خلکو څخه په وچ زور پيسې لوټلې. د مثال په توګه کله چي سعادت خان الکوزی وفات سو، نو د هغه ټوله شتمني يې غصب کړه. د هغه له کوره څخه يې نغدي پيسې، د سرو زرو زېورات او جواهرات، طلاکاري او مرصع توري او توپکونه، قاليني، کشميري شالونه او زريني جامې او هر څه را وايستل او پر دې برسېره يې د هغه کور ته خپل سړي واستول او د خزانو او پټو پيسو د پيدا کولو له پاره يې د هغه د کور د ټولو خونو دېوالونه ونړول. هر څه چي يې په لاس ور تلل، هغه يې يوړل او داسي څوک نه وو چي له ده څخه دا پوښتنه وکړي، چي متوفی څه ګناه کړې وه چي مال يې لوټل کيږي او دی په کوم حق د هغه مالونه لوټي؟ د سعادت خان الکوزي په مرستيال عبدالعزيز خان پسي، چي د شاه شجاع له ويري تښتېدلی او پټ سوی وو، ډېر وګرځېدی خو هغه يې پيدا نه کړ. د شکارپور له صرافانو څخه يې د برچې په زور دوه لکه روپۍ واخيستلې او خلاصه داسي څوک نه وو، چي څه يې درلودل او د شاه‌شجاع له آزاره دي خلاص سوی وي. د دې تر څنګ يې لا شهواني اشتها د سړېدلو نه وه او چي هر ځای به يې د يوې ښايستې پېغلې په باره کي خبر تر لاسه کړ، هغه به يې خپل حرم ته بېوله. يوه ورځ سهار پر آس سپور هواخوری ته وتلی وو او و يې ليدل، چي د کجاوو يو کاروان تېرېږي. ور سره ملګري نيکو خان خواجه ته يې وويل چي ور سي او په کجاوو کي وګوري، که کومه ښايسته پېغله يې په سترګه سوه، هغه دي د شاه‌شجاع حرم ته بوځي. خواجه په ټول کاروان کي د يوه لوی خان، جمعه خان پوپلزي لور خوښه کړه. جمعه خان چي هر څه زاری ورته وکړې، چي دا لور مي نامزده ده او ډېر ژر وروسته يې واده دی؛ شاه‌شجاع د هيڅا خبره و نه منله او هغه نجلۍ يې خپل حرم ته بوتله. (عطامحمد، ص: ۳۳- ۴۰)

که د هغه انګرېز صاحب منصب، چي د افغانستان او انګرېزانو د لومړي جنګ (۱۸۳۹-۱۸۴۲م.) او د انګرېزانو له خوا د افغانستان د اشغال په وخت کي يې په بالاحصار کي وظيفه درلوده، دا خبره ومنو چي وايي شاه‌شجاع په حرم کي اته سوه شپېته ښځي درلودې او ټولو ته يې ويلي ول، چي که هر وخت داسي ورته څرګنده سوه، چي ياغيان بالاحصار نيسي، نو دی به د حرم ټولو ښځو ته زهر ور کړي. (ستوک ويلر، ضميمه، ص: ۷۵) نو دا خبره له امکانه لېري نه ده، چي هغه به د خپل حرم د ډکولو له پاره، چي د شکارپور د واکمنی په وخت کي لا ډېر ځوان هم وو او عمر يې ايله دېرشو کالو ته رسېدی، له هري ناروا وسيلې څخه کار اخيستی وي.

په سند کي د شاه‌شجاع ظلمونه او تېری داسي حد ته ورسېدی، چي د سند خلکو يې نور د

زغملو توان نه درلود او بالآخره یې سردار محمدعظیم خان ته، چې تازه یې د کابل پر تخت ځان ټینګ کړی وو، سړی واستاوه او له هغه څخه یې هیله وکړه، چې د شاه‌شجاع د ایستلو له پاره لښکر ور واستوي. محمدعظیم خان دې فرصت ته له پخوا هم منتظر وو او دا یې په خپل حق کې څکه غیبي مرسته بلله، چې د سند میرانو له څو کلونو راهیسې د کابل حکومت ته مالیه نه وه ور کړې او که یې ور کړې وه هم، محمدعظیم خان ته د اضافه مالیاتو او پیسو غوښتنې له پاره یو ښه فرصت په لاس ور تلی. محمدعظیم خان د سند پر لور حرکت وکړ، په کندهار کې د هغه ورونه پردل خان او شیردل خان ور سره یو ځای سول او شاه‌شجاع ته د هغوی د نیت په باب اطلاع ورسېده. کله چې شاه‌شجاع د سند له میرانو څخه د احوال پوښتنه وکړه، هغوی ورته وویل چې د هر دښمن د لښکر او پوځ په مقابل کې به د هغه ملاتړ وکړي. شاه‌شجاع د هغوی په مرسته زړه تړلی وو، خو کله چې محمدعظیم خان د سند حدودو ته ورسېدی، نو معلومه سوه چې د سند میران هم ور سره ملګري دي او د شاه‌شجاع د لیرې کولو له پاره یې لاسونه سره یو کړي دي. شاه‌شجاع مجبور سو چې بیرته د لودیانې پر لور حرکت وکړي او له سند څخه لاس پرې مینځي.




سردار دوست‌محمدخان

## سردار محمدعظیم خان او بارکزي ورونه

سردار محمدعظیم خان په دې لښکرکښۍ کې هم شاه‌شجاع ته یو ځل بیا ماته ور کړه او له سیمې څخه یې لیرې تللو ته مجبور کړ او هم یې د خپلو ملګرو سردارانو او منصبدارانو له پاره د تقریباً یو لک روپیو په اندازه سوغاتونه تر لاسه کړل او هم یې د سند له میرانو څخه دوولس لکه روپۍ د لښکر د خرڅ په نامه واخیستلې. (هغه کتاب، ص: ۵۳)

سردار محمدعظیم خان له دې پېښو څخه تقریباً دوه کاله وروسته له رنجیټ سینګهـ سره جنګ کولو ته مجبور سو. د دې علت دا وو، چې پېښور د محمدعظیم خان ورور یارمحمد خان ته، چې یو کمزوری شخصیت وو، پاته سوی وو. رنجیټ سینګهـ چې قدرت یې ورځ په ورځ زور اخیستی او په شاوخوا کې حریف ورته پاته نه وو، د پېښور او شاوخوا سیمو د لاندې کولو فیصله وکړه. مخکې له هغه چې پر پېښور باندې حمله وکړي، له یارمحمد خان څخه یې د آسونو او تحفو غوښتنه وکړه. یارمحمد خان هغه ته آسونه ولېږل او رنجیټ سینګهـ پر پېښور باندې له سمدستي حملې کولو او اشغالولو څخه تېر سو. سردار محمدعظیم خان رنجیټ سینګهـ ته د دغه راز باج ور کولو سره مخالف وو او له رنجیټ سینګهـ سره یې د جنګ له پاره تیاري ونیوله. له یوه لوی پوځ سره پېښور ته روان سو، خو د ده ورور یارمحمد خان د دې پر ځای چې له ده سره په جنګ کې برخه واخلي، د یوسفزیو سیمو ته وتښتېدی. سردار محمدعظیم خان له رنجیټ سره ډېر سخت جنګ وکړ. د ورځې په یوه برخه کې یې د رنجیټ سینګهـ د پوځونو یوې برخې ته ماته هم ور کړه، خو رنجیټ سینګهـ د توپخانې او هغو پوځونو چې د اروپایي جنرال وینټورا تر قوماندې لاندې یې حمله وکړه، تاب را نه ووړ او دغه راز یې نورو وروڼو د جنګ په میدان کې نامردي ور سره وکړه او محمدعظیم خان زړه‌ماتی کابل ته ستون سو. د جلال آباد په لاره کې سخت ناروغ سو او په لته‌بند کې یې ساه ور کړه.

فیریر وایي: ده له کهندل خان، د هغه له زامنو او د کهندل خان له ورور څخه په خپله اورېدلي دي، چې له سردار عظیم خان څخه د دوو میلیونو اوو سوو زرو سټرلینګ پونډو په ارزښت شتمني او خزانه پاته سوه. (فیریر، ص: ۱۸۴)

له عظیم خان څخه د ډېرې لویې خزانې د پاته کېدلو په باب ټول مؤرخین اتفاق سره لري، خو

که دا وروستی رقم جدي ونیسو، نو دا اووه ویشت میلیونه روپۍ کیږي، چي په هغه وخت کي داسي کار نه وو، چي کفایت یې نه وای ورته کړی. په هغه وخت کي د کندهار او شاوخوا سمسورو کلیو او سیمو کلنی عاید له کاله دوولس لکه روپۍ اټکل سوی وو. په دې حساب له عظیم خان څخه پاته سوې خزانه د کندهار او شاوخوا سیمو د دوه ویشتو کالو عایدات کېدله او دا چي په کابل کي د بارکزیو وروڼو تر منځ د دغو پیسو د تر لاسه کولو پر سر جنګونه سوي دي، نو هیڅ عجبه خبره نه ده. ویل کیږي چي عظیم خان له خپل مرګ څخه لږ وړاندي دا خزانه خپل زوی حبیب الله خان ته وسپارله او هغه ته یې وصیت وکړ، چي له دې پیسو څخه به د خپل پلار د ماتي خوړلو د کسات اخیستلو او د وطن د بدمرغیو د علاج کولو له پاره کار اخلي. فیریر وایي: د سردار محمدعظیم خان د شخصیت د ارزولو په باره کي چي کوم بې‌طرفانه قضاوت سوی دی، نو هغه دا دی چي عظیم خان د عادي لیاقت خاوند وو او کومه وظیفه چي ور تر غاړي سوه، هغه یې تر وس تېره وه؛ چندانې استقامت یې نه درلود او پوځي وړتیا یې هم د یوه عادي سردار په څېر وه او د شرابو له څښلو سره یې دونه سخت عادت درلود، چي په څلرویشتو ساعتونو کي به ډېر لږ وخت په سد کي وو. ډېر نرم او د روغي جوړي سړی وو او له خلکو سره یې ښه سلوک درلود. (هغه کتاب، ص: ۱۸۴-۱۸۵)

سردار حبیب الله خان چي هیڅ ډول لیاقت یې نه درلود او د کابل او افغانستان په هغو شرایطو کي چي له خارج او دننه د هري بلا خوله ورته خلاصه وه، د هیڅ کار او فعالیت له پاره وړ نه وو، د خپل پلار له ټول ثروت سره په بالاحصار کي پر تخت کښېناست. څرنګه چي په خپله یې هیڅ لیاقت نه درلود، نو طبیعي خبره ده، چي ښه او اهل سلاکاران یې هم ځان ته نه سوای پیدا کولای او که دې وضع دوام کړی وای، نو ښایي ټول ثروت یې هسي بې‌ځایه له لاسه وتلی او د هیچا په درد یې نه وای خوړلی.

دوست‌محمد خان په دغه وخت کي په کوهدامن کي اوسېدی او تر ټولو وروڼو مخکي یې د کابل پر لور حرکت وکړ. په ډېره آرامي یې د خپل وراره دربار ته لاره پیدا کړه او له هغه سره یې داسي نرم سلوک غوره کړ او په دومره تعظیم او احترام یې ناسته، ولاړه کوله، چي د هغه درباریانو او سلاکارانو ته یې شک پیدا کړ. درباریانو سردار حبیب الله ته مشوره ور کړه، چي باید ځان د دوست محمدخان له چل او فریب او بالآخره احتمالي خطر څخه وساتي. دوی په خپلو کي فیصله وکړه، چي دوست‌محمد خان په سترګو ړوند کړي او د عمر له پاره یې له شره خلاص سي. د دوست

محمد خان له ښې طالع، چې حاجي تاج‌محمد کاکړ، چې په حاجي خان مشهور وو، په دې پټ مجلس کې برخه درلوده. کله چې سردار دوست‌محمد خان بالاحصار ته داخل سو؛ حاجي خان کاکړ پر خپلو سترګو ګوتې ونیولې او دوست‌محمد خان چې په هوښیاري او رموزفهمي مشهور وو، سمدستي په خطر پوه سو او پر آس باندې یې پښنه واړوله. دوست‌محمد خان چې له یو څه قواوو سره کابل ته راغلی وو، پر بالاحصار یې حمله پیل کړه. سردارحبیب الله په جنګ کې ماته وکړه او په بالاحصار کې قلابند سو. یوه ورځ وروسته سردار حبیب الله ته له لوګر او سردار دوست محمدخان ته د خپل ورور سردار امیرمحمد خان په مشرۍ پوځي مرستي ورسېدلې او جنګ زور واخیست. که څه هم چې د کابل د سپین ږیرو په منځګړیتوب د دواړو خواوو تر منځ روغه جوړه وسوه، خو حبیب الله خان د سردار دوست‌محمد خان د راتلونکو احتمالي حملو له ویرې د کندهار له سردارانو څخه مرسته وغوښتله.

شېردل خان له کندهاره حرکت وکړ او سردار دوست‌محمدخان چې دا وخت په غزني کې وو، کوهستان ته ولاړ او د کابل او له هغه ځایه څخه یې د کابل وضع څارله. شېردل خان له خپل وراره سره د مرستي کولو پر ځای له حبیب الله خان څخه د بالاحصار قدرت واخیست. هغه ته یې له کاله دېرش زره روپۍ تنخوا مقرره کړه او خپل ماما خداینظر خان یې د خپل مرستیال په حیث وټاکی. شېردل خان خپل ماما ته وظیفه ور کړه، چې په کابل کې له خلکو څخه هغه پیسې واخلي، چې د سردار محمدعظیم خان څخه ور سره پاته دي، خو باید چې له چا څخه له سنده پرته پیسې و نه غواړي. خو خداینظرخان په اسنادو کې رې نه واهه؛ له خپل قدرت څخه یې ناروا استفاده وکړه او چې هر شتمن یې لیدی، د سردار عظیم خان د پیسو په پلمه یې په زور پیسې ور څخه اخیستلې او آزار یې ور کاوه. په ډېر لږ وخت کې یې د کابل خلک دونه په عذاب کړل، چې له دوست‌محمد خان څخه یې د مرستي غوښتنه وکړه او هغه یې کابل ته وباله.

دوست‌محمدخان له خپلو لښکرو سره کابل ته راغی او د شېردل خان سره یې له مذاکراتو وروسته داسې فیصله وکړه، چې هغه به د کابل واکمن وي او دوست‌محمد خان ته به د غزني، میدان او کوهستان سیمي سپارلي کیږي. په دې وخت کې دوست‌محمد خان یو بل مهم کار هم وکړ او د سردار محمدعظیم خان له کونډې سره یې، چې د صادق خان جوانشیر لور وه، د واده کولو موافقه تر لاسه کړه. دوست‌محمد خان په دې توګه هم یوه شتمنه ښځه، چې وایې بې‌حده ښکلې وه، تر لاسه کړه. هم یې د کابل له شیعه‌ګانو سره، چې د ده خپله مور هم شیعه وه، یو بل تماس ټینګ کړ او هم یې سردار حبیب‌الله، د خپلې میرې له لاري تر اغېزې لاندې کړ. د شېردل خان او دوست

محمد خان تر منځ اړیکو، چې د دواړو مطلب د کابل د قدرت او د سردار محمدعظیم خان د خزانې تر لاسه کول وه، ډېر وخت دوام و نه کړ. شېردل خان خپل وراره حبیب الله خان په لوګر کې د خپل ماما خداینظر خان قلا ته تبعید کړ او د سردار دوست‌محمد خان سره مقابلې کولو ته تیار سو.

شېردل خان له دوست‌محمد خان سره تر جنګ کولو د مذاکراتو لاره غوره وبلله او هغه ته یې بلنه ور کړه، چې د ورونو تر منځ په جلسه کې برخه ور سره واخلي. ده غوښتل چې سردار دوست محمد خان ته له خپله ښه نیته اطمینان ور کړي او په یو مجلس کې یې په سترګو ړوند کړي. کله چې دوست‌محمد خان د مجلس خونې ته داخلېدی، نو حاجي خان کاکړ چې د شېردل خان له معتمدو نوکرانو څخه وو، یو ځل بیا دوست‌محمد خان په اشاره پوه کړ او هغه له خونې څخه ووت او پر آس سپور له بالاحصار څخه دباندې ولاړ.

د دوست‌محمد خان له پاره دا دوهم ځل دسیسه بېخې د منلو نه وه او له قضیې څخه یې د پېښور سردارانو ته اطلاع ور کړه. هغوی یې هم مرستې ته را غلل او ده یو ځل بیا بالاحصار محاصره کړ. شېردل خان ډېر ژر د خوراکي موادو له کمبود سره مخامخ سو. کندهاري ورونو چې د شېردل خان مرستې ته راغلي ول، بالاحصار ته مرستې نه سوای رسولای او محاصرې دوام وکړ. بالآخره دوست‌محمد خان شېردل خان ته بلنه ور کړه، چې له بالاحصار څخه را ووځي او پر میدان یې ور سره معلومه کړي. شېردل خان له بالاحصار څخه را ووت او له شاه شهید سره یې سنګر ونیوی او دوست‌محمد خان په تپه مرنجان کې ورته خزه سو. جنګ څو ورځې دوام وکړ او بالآخره ټول ورونه د نواب صمد خان په مشوره خبرو ته حاضر سول.

د سردار پاینده خان زامن د شېردل خان او دوست‌محمد خان په شمول، د نواب صمدخان په خېمه کې را ټول سول او تر ډېرو زیاتو بحثونو وروسته یې داسې فیصله وکړه:

سردار شېردل خان دې د خپلو ورونو په ریاست ومنل سي.

څرنګه چې پېښور او د هغه مربوطات د پنځو ورونو؛ یارمحمد خان، سلطان‌محمد خان، عطامحمد خان، سعیدمحمد خان او پیرمحمد خان له پاره کفایت نه کوي (عطامحمد خان له دې پېښې څخه څو کاله مخکې د شاه‌شجاع په مقابل کې، د پېښور په یوه جنګ کې وژل سوی وو [جهانې]) نو دوه لومړني یاد سوي سرداران دې کابل ته انتقال سي. د کوهستان او غزنې تر منځ علاقه دې دوست‌محمد خان او د هغه سکه ورور امیرمحمد خان ته وسپارله سي. دوست‌محمد خان دې د کوهستان او امیرمحمد خان دې د غزنې حکمران وي. نواب جبار خان ته دې د لغمان حکومت وسپارل سي او نواب اسد خان دې د ډېره‌جاتو د باقي پاته برخو حاکم وي. شېردل خان او د هغه سکه ورونه پردل خان، کهندل خان او مهردل خان دې په کندهار کې وي او رحمدل خان ته

دي د سند حکومت وسپارل سي. د نواب صمدخان زوی نواب زمان خان دي د جلال آباد حاکم وي. شېردل خان له خپل ورور پردل خان سره کندهار ته ولاړ او د سردار عظیم خان د خزانې دونه پیسې یې ور سره یووړې، چې د کندهار د کرني د محکو له لسو څخه نهه برخي یې واخیستلې. (کهزاد، ص: ۴۲۳)

سردار یارمحمد خان لږ وخت وروسته له کابل څخه بیرته پېښور ته روان سو او هلته یې د خپلو سکنیو ورونو مشرتوب پر غاړه واخیست. سلطان‌محمد خان په کابل کي حکمران سو. لږ وخت وروسته دوست‌محمد خان پر کابل باندي په (۱۸۲۶م.) کال کي بیا حمله وکړه او سلطان‌محمد خان یې د بالاحصار پرېښودلو ته مجبور کړ. سلطان‌محمد خان پېښور ته ولاړ او دوست‌محمد خان د کابل د راتلونکي واکمن په حیث وعده ور سره وکړه، چې له کاله به یو لک روپۍ ور کوي. پر دې وعده باندي هیڅ وخت وفا و نه سوه او هسي د جنګ د پای ته رسولو یوه وسیله سوه.

په دې توګه هغه افغانستان چي احمدشاه بابا په ټول نظامي او سیاسي نبوغ او د زړه په وینو تأسیس کړی وو، عملاً ټوټې ټوټې او د قدرت پر څلورو لویو مرکزونو ووېشل سو. عظمت یې د تل له پاره له منځه ولاړ او تر ډېره وخته یې د آرامۍ مزه و نه څکله. دلته به بارکزي سرداران په کابل، کندهار او پېښور کي پرېږدو او موږ به د شاه‌شجاع خبر واخلو.

د قدرت عجبه نشه ده او انسان عجبو کارونو ته هڅوي. شاه‌شجاع چي د کابل د تخت مزه یې څکلې وه، د قدرت د بیرته نیولو له تلاښ څخه تر مرګه لاس وا نه خیست او هري خوا ته یې لاسونه وغځول.



سردار عظیم خان

## له رنجیت سینګه سره دوستي او شرموونکي تړونونه

شاه‌شجاع په لودیانه کې له تقریباً دوولسو کالو تېرولو څخه وروسته متوجه سو، چې که د کابل د تخت د نیولو له پاره له رنجیت سینګه څخه، چې د بارکزیو سردارانو؛ په تېره بیا امیر دوست‌محمد خان سره سخته او زړه دښمني لري، کار واخلي، نو د ده د ارمان له پوره کولو سره به مرسته وکړي. شاه‌شجاع لږ تر لږه دې حقیقت ته توجه و نه کړه، چې د کابل د تخت د نیولو له پاره له داسي قوي حریف څخه، چې د منظمو پوځونو او عصري وسلو تاب یې هیڅ ګاونډی نه لري، څرنګه د پاچهي په نیولو کي استفاده کولای سي؟ که د رنجیت سینګه پوځونه یو ځل جلال آباد او کابل لاندي کړي؛ بیا به دی هغه په کوم زور او طاقت له دې سیمو؛ په تېره بیا جلال آباد څخه، چې رنجیت سینګه یې له ډېره وخته د نیولو خیال درلود، باسي. شاه‌شجاع د قدرت لېونتوب اخیستی وو. هغه ته د کابل تخت تر هر څه مهم وو او په دې لاره کي یې هري وسیلې ته لاس اچاوه. په دې لړ کي یې حتی له رنجیت سینګه څخه مرستي غوښتلو ته لاس اوږد کړ. پر خپل غرور یې، که یو څه ور پاته وو، پښه کېښېښودله، د رنجیت سینګه ټول سپکاوی او خواری یې هېري کړې، هغه ته یې د دوستی لاس وغځاوه او لیک یې ور واستاوه او هغه هم له ده سره د کابل د تخت د نیولو په تلاښ کي د مرستي کولو له پاره داسي شرایط ورته وړاندي کړل، چې د یو افغان له پاره په هیڅ توګه د منلو وړ نه ول؛ خو شاه‌شجاع د قدرت نشې داسي لېونی کړی وو، چې پر خپل غیرت باندي یې پښه کېښېښودله او مخکي له هغه چې له انګلیسیانو سره تړون وکړي او له هغوی څخه مرستي واخلي او یا د مرستو غوښتنه ور څخه وکړي، له سیکهانو سره یې هر څه ومنله. دلته به هغه لیکونه او تړونونه وړاندي کړو، چې د رنجیت سینګه او شاه‌شجاع تر منځ تبادله سوي او لاسلیک سوي دي.

**د بریتانوي هند د حکومت سیاسي استازي کپتان کلاډ ایم. وېډ له لودیانې څخه خپل مرکز کلکتې ته د ښاغلي ایچ. ټي. پرینسیپ په نوم د (۱۸۳۱م.) کال د نومبر پر یوویشتمه ولیکل:**

"زه د هغو لیکونو متن او ترجمه در لېږم، چې د شاه‌شجاع‌الملک او مهاراجا رنجیت سینګه تر منځ تبادله سوي دي. شاه‌شجاع له مهاراجا سره دا مذاکرات د دې له پاره پیل کړي دي، چې غواړي بیرته

د کابل تخت ونیسي"

د هغه یادداښت ترجمه چي د شاه‌شجاع‌الملک استازي قاضي محمدحسین، مهاراجا رنجیت سینګه ته تقدیم کړی دی:

۱: څرنګه چي مهاراجا زما بادار ته ښه نیت لري، نو زما بادار شاه‌شجاع زما څخه غوښتي دي، چي درته ووایم چي حق تعالی تاسي جلالتماب د دې زمانې یو له تر ټولو لویو شخصیتونو څخه جوړ کړي یاست. تاسي ته یې ټول هغه څه چي ستاسي له لویي سره ښایي، درته عطا کړي دي او ستاسي له شخصیت څخه هره ورځ یوه لویه کارنامه صادرېږي. خو یو شی پاته دی، چي هغه د تخت بخښل دي.

۲: کشمیر، پېښور او نور هغه ځایونه چي مهاراجا لاندي کړي او د هغه تر کنټرول لاندي دي، هغه دي د مهاراجا وي، خو که تاسي جلالتماب د باقي پاته ځمکو تاج او تخت شاه‌شجاع ته وبخښئ، نو د مهاراجا نوم به په ټولي نړۍ کي مشهور سي.

۳: شاه‌شجاع زما څخه دغه راز وغوښتل تاسي ته ووایم، چي په تېرو وختونو کي چي هغه ته هر څه پېښ سوي دي، هغه د قسمت خبره وه او په دې کي ستاسي جلالتماب هیڅ غلطي نه وه.

۴: که چیري مهاراجا د هغو مځکو واک او اختیار ما ته وسپاري، چي اوس حاضر په دوی اړه نه لري نو زه به له هغه جلالتماب سره ملګری سم. په عوض کي چي مهاراجا هر څه غواړي، هغه به ور کړم. دوستي تر ټولو لویه تحفه ده.

۵: که هغه جلالتماب زما له غوښتني سره سم زما سره دوستي وکړي او په سخاوتمندي سره سلوک را سره وکړي، نو زما اولاد به د ده نېکي هېره نه کړي. اوس دي نو مهاراجا خپلي غوښتني او پېشنهادونه یو په یو راته ولیکي.

## د قاضي محمد حسین د یادداښت په جواب کي د مهاراجا پېشنهادونه

۱: که د دوستۍ د هغه تړون په اساس چي د بریتانیې او لاهور د حکومتونو تر منځ لاسلیک سوی دی، مناسبه وه نو شاه‌شجاع کولای سي، چي په اطمینان سره امرتسر یا لاهور ته راسي او په هغه اطمینان دي له مهاراجا سره وګوري، لکه مخکي چي یې په راولپینډۍ، خوشاب او لاهور کي ور سره لیدلي وه. شاه به د مهاراجا سره د هغه له آرزو سره سم یو تړون لاسلیک کړي؛ هغه به مُهر کړي

او سوګند به یاد کړي چي د مهاراجا له عسکرو سره به خیانت نه کیږي او کله چي مهاراجا د پېښور پر لور حرکت وکړي، نو شاه به هم د مهاراجا د ملاقات له پاره هلته ور ځي.

۲: د شاه ولیعهد به د خپلي پوځي قوې سره د مهاراجا په دربار کي حاضر وي او کورنی به یې هم ورسره وي. له هغه سره به د هغه له شان سره سم سلوک کیږي او له مهاراجا سره به په ټولو سفرونو کي ملګری وي.

۳: شاه به د خپل ځان، خپل اولاد او د سدوزیو د ټولي قبیلې له خوا ژمنه کوي، چي په ټولو هغو ځمکو به نه دعوه کوي او نه به د هیڅ ډول حقوقو غوښتنه کوي، چي مهاراجا او د هغه خپلوانو لاندي کړي او اوس یې تر کنټرول لاندي دي، لکه: د پېښور ښار او د هغه مربوطات او مالیات کوهاټ، هشتنغر، یوسفزي، خیبر، کشمیر، مُلتان، مانسیره، کالاباغ، سرای، هغه ځمکي چي د بهاولپور نواب یې کري، د سوتلیج په شمال کي د کاچي دواړي سیمي، ټانک، سنګر، ګیرنګ، د رولین قلا، ګادره، درهند، تور بېله او د پرېده خان د هستوګي ځایونه.

۴: له آسونو سره د مهاراجا شوق او علاقه مشهوره ده او شاه به هر کال هغه ته (۱۰۲) بهترین آسونه لیږي، پنځه ویشت ایراني یابوګان، یوولس ایراني توري او دوه سوه منه مېوي، لکه انګور او نور. د دې تر څنګ به یو شمېر ایراني ورېښمیني چپني او نور شیان لیږي. د دې شیانو نیمایي به په نوروز او نیمایي به د کال په منځ کي ورته را استوي.

۵: شاه باید سمدستي د دریو لکو روپیو په ارزښت جواهرات ور کړي، چي د لښکر خرځ، خوراک په برابر سي.

۶: هر وخت چي د مهاراجا پوځونو ته ضرورت سي، نو شاه باید خپل پوځیان له خپل یوه زوی سره ورته را ولیږي.

۷: د دواړو خواوو دوستان به د هر یوه دوست او دښمنان به د هر یوه دښمن ګڼل کیږي.

۸: هر کله چي د مهاراجا سړي د مېوو یا آسونو د رانیولو له پاره کابل ته ځي، نو له هغوی سره باید ښه سلوک وسي او په وطن کي یې سلامتي تضمین سي.

۹: که د مهاراجا په غوښتنه او اجازه کوم اروپایي له ایران څخه د مهاراجا خاوري ته راځي او یا د لودیانې څخه پر هغه لور روانېږي، نو شاه باید د هغه د سر د سلامتی ذمه ووهي.

۱۰: په کابل او د هغه ښار په شاوخوا او د شاه په پوځ کي باید هیڅوک غوایي حلال نه کړي او

په دې برخه کې باید یو عام اعلان خپور سي.

۱۱: کله چې شاه د کابل پر تخت کښېناست، نو د سومنات د معبد هغه د صندل دروازه چې غزني ته وړله سوې ده، باید چې مهاراجا ته وسپارله سي.

۱۲: په کابل، پېښور او جلال آباد کې چې د بارکزیو څخه هر څه پیسې، جواهرات او توپونه ولجه کیږي، باید چې د شاه او مهاراجا تر منځ په مساوي توګه ووېشل سي.

۱۳: که د شاه پوځیان له دغو یادو سویو مادو له هري یوې څخه سرغړونه کوي، نو مهاراجا کولای سي، چې هغه پر لار کړي.

۱۴: او شاه ته به د کشمیر او مُلتان له تولیداتو څخه داسي سوغاتونه، چې هغه ته د منلو وړ وي، ولېږل سي.

۱۵: که بارکزي په کابل کې د مهاراجا په دربار کې حاضرېږي، نو شاه باید د هغوی له شان سره سم د هغوی غمخوري وکړي.

## د شاه‌شجاع له خوا د استازي قاضي محمدحسین یادداښت

د مهاراجا رنجیت سینګهـ استازی لالا کشن چند شاه‌شجاع ته راغی او د مهاراجا پېشنهادونه یې ورته را وړل. شاه‌شجاع لومړی د مهاراجا د روغتیا پوښتنه وکړه او کله چې یې اطمینان حاصل سو، نو ډېر خوشاله سو. وروسته یې نو پېشنهادونو ته غوږ ونیوی او ځان یې ښه پوه کړ. ځیني یې د منلو وړ دي او ځیني یې جواب ته ضرورت نه لري. هغه چې د منلو وړ دي؛ د دوستۍ د تړون له تر لاسه کېدلو څخه وروسته باید سمدستي عملي سي. هغه چې د منلو وړ نه دي، نو په ثبتولو هم نه ارزي.

کله چې دا فیصله سي، چې دواړه خواوي د دوستۍ د ټینګولو په تکل کې دي، نو د خبرو او غونډي له پاره د ځای ټاکل چنداني مهمه خبره نه ده او د نوري نړۍ د اطلاع او خبرولو له پاره به دا لازمه وي، چې دریمګړی هم د تړون د لاسلیک کېدلو په وخت کې حاضر وي. دا به بهتره وي چې یو بل څوک منځګړیتوب وکړي او داسي تړون لاسلیک سي او د دوستۍ داسي مزی ټینګ سي، چې ژوند باقي وي هغه و نه شلېږي.

## د مهاراجا پېشنهادونو ته د شاه‌شجاع‌الملک جوابونه

۱: د خبرو کولو او کتلو په باره کي به درته ووایم، چي زه دلته د بریتانیې د حکومت مېلمه یم. هغوی زما سره په ډېره مهرباني سلوک کوي، نازوي مي او خیال مي ساتي. نو دا به لازمه وي چي زموږ تر منځ د کتلو موضوع له هغوی سره مطرح سي او په دې برخه کي د هغوی رضایت تر لاسه سي.

زه وایم مهاراجا دي هم د هغوی سره په دې باره کي خبري وکړي او د هغوی رضایت دي تر لاسه کړي او کله چي د هغوی خوښه سي، نو بیا به د دوی په سلا او خوښه کارونه مخته وړو. اوس نو راغلو د تړون تصدیقولو او په قرآن سوګند یادولو ته. زه باید ووایم چي د تړون د لاسلیک کولو په وخت کي دا یوه عادي او معمولي خبره ده. د جلالتماب له پوځونو سره د خیانت د موضوع په باره کي باید ووایم، چي کله یو ځل د دوستی تړون لاسلیک سي، بیا نو د خیانت کولو سوال بېخي منځ ته نه راځي.

۲: پاته سوه د هغو ځمکو او سیمو څخه زما او د سدوزیو د قبیلې د لاس اخیستلو مسئله؛ نو دا خو هغه وخت حلېږي، چي موږ خبرو ته سره کښېنو او د دغو سیمو پولي وټاکلي سي.

۴: د آسونو او نورو شیانو په باره کي به درته ووایم، چي زه له هغه لیست سره موافقه لرم او پر خپل وخت به یې در رسوم.

۵: د پوځونو د خرڅ، خوراک له پاره دي د جواهراتو د خرڅلاو په بیه د دریو لکو روپیو غوښتنه کړې وه. د دوستانو مال سره شریک دی، دا هیڅ ستونزه نه ده. کله چي نیژدې اتحاد موجود وي نو دا مسایل حلېدلای سي.

۶: تا لیکلي ول چي ته هر ځای ته سفر کوې، نو زما یو زوی به د پوځي قوې سره درته حاضرېږي. زه د دې شرط عملي کولو ته تیار یم.

۷: تا لیکلي ول چي د یوه دوست د بل دوست او د یوه دښمن د بل دښمن دی. دا باید پر دواړو خواوو فرض وي او همداسي باید وي.

۸: زما په قلمرو کي دي د خپلو رعایاوو سره د ښه سلوک د کېدلو شرط ایښی وو. زه دا منم چي ستاسي د رعایاوو سره به مناسب سلوک کېږي.

۹: تا لیکلي ول چې ستاسې له خوا د بلل سویو اروپایي مېلمنو سره به زما په قلمرو کې ښه سلوک کیږي. زه له دې شرط منلو ته هم تیار یم.

۱۰: تا لیکلي ول چې زما په لیکونو کې به د مهاراجا حیثیت او اعتبار په نظر کې نیول کیږي. زه دا شرط هم منم.

۱۱: د ښکارپر په مقابل کې د ګډو عملیاتو څخه د لاس ته راغلي غنیمت د مساوي وېشلو په برخه کې دې راته لیکلي ول. زه دا در سره منم او هغه غنمیت به مساوي وېشل کیږي.

۱۲: د غوایانو د حلالولو د منع کېدلو خبره دې کړې وه. تاسې مهاراجا له انګلیسیانو سره هم دوستانه اړیکې لرئ؛ مګر د هغوی په قلمرو او په عسکري قشلو کې غوایي حلالیږي. نو دا ستاسې خبره به یوازې د کابل او پېښور په برخه کې وي؟

۱۳: له بارکزیو څخه د تر لاسه کړي غنیمت د مساوي وېشلو خبره دې کړې وه. زه وایم دا پر ځای خبره ده او مساوي به یې سره وېشو.

۱۴: تاسې لیکلي ول چې که زما پوځیانو د موافقتنامې له مقرراتو څخه سرغړونه وکړه، نو تاسې به هغه پر لار کوئ. زه وایم کله چې د دوو خواوو تر منځ ریښتونی اتحاد موجود وي؛ دغه راز پېښې منځ ته نه راځي او که چیرې څوک سرغړونه وکړي، نو بیا هغه د سزا مستحق دی.

۱۵: تاسې لیکلي ول چې د کشمیر او مُلتان تولیدات به ما ته په سوغات کې را لیږئ. یقیناً د دوستانو تر منځ باید د سوغاتونو تبادله موجوده وي.

۱٦: د بارکزیو په باره کې مو راته لیکلي ول. زه وایم دا به د خبرو تر وخته پورې پرېږدو.

۱۷: له غزني څخه مو د سومنات د صندل د دروازې د وړلو غوښتنه کړې وه. زه وایم یو ریښتونی دوست باید د خپل دوست بدنامي و نه غواړي. که مهاراجا زما دوست وي، نو هغه به څرنګه زما آبدي بې‌آبی ته زړه ښه کړي؟ عقل دا نه مني، چې یو دوست دې د بل دوست د بې حیثیته کېدلو آرزو ولري. دوهم داچې د سیکهانو په ټولو طبقاتو کې دا خبره عامه ده، چې وایي سیکهان به د صندل د دروازو د راوړلو له پاره غزني ته ولاړ سي، مګر کله چې هلته ورسیږي، د دوی خپله پاچهي به نسکوره سي. زه ستاسې د یوه دوست په حیث، ستاسې د پاچهي تباه کېدل نه غواړم. زه نه غواړم داسې پېښه سي. زه د مهاراجا د قلمرو دایمي ژوند او دوام غواړم. Correspondence pp ۳۲۹-۳۳۳

**شاه‌شجاع، له دې څخه ‌لږ وروسته د خپل استازي قاضي محمدحسین په لاس ګورنرجنرال لارډ ویلیم بینټینک ته یو لیک واستاوه او له هغه څخه یې د شخصي مرستي او د افغانستان پر لور د لښکرکښی او قدرت نیولو په لاره کې د مرستي غوښتنه وکړه. شاه‌شجاع هغه ته ولیکل:**

عالي جنابه! زه ستاسي څخه پنځه غوښتني لرم:

لومړی دا چي عباس میرزا (د ایران د پاچا فتح‌علي‌شاه قاجار مشر زوی او ولیعهد [جهاني]) هرات ته رسېدلی دی. که د بریتانیې حکومت زما سره مرسته وکړي، زه به د هغه ښار پر لور وخوځېږم او له خراسانه د اوزبکو تر هیواده او د سمندر تر څنډو پوري ټول ښارونه به زما لاس ته راسي او دا به ټول د بریتانیې دوستان وي.

۲: کله چي زه لودیانې ته را ورسېدم؛ په هغه وخت کي مي یو زوی او دوې لوڼي درلودلې او د بریتانیې حکومت ما ته د میاشتي څلور زره روپۍ را کولې. اوس زه پنځلس زامن او څوارلس لوڼي لرم او ټول د بلوغ سن ته رسېدلي دي. دوی باید اوس خپل کورونه ولري. نو څلور زره روپۍ ایله د دوی بس سي او زه باید د خپل خرڅ، خوراک له پاره خپل جواهرات خرڅ کړم. اوس چي زه غواړم خپل وطن بیرته ونیسم او د خپل هیواد پر لور حرکت وکړم نو د بریتانیې حکومت باید هغه پیسې چي ما ته یې را کولې، زما عیال ته ور کړي، ځکه چي دوی د ژوند کولو له پاره بله هیڅ منبع نه لري.

۳: زه اوس خپل هیواد ته حرکت کوم. هلته چي ولاړ سم نو پوځ به پیسې را څخه غواړي او نور لګښتونه به هم را پسې وي او دا د بریتانیې د حکومت له مرستي پرته نه کیږي. زه هیله لرم چي تاسي یو استازی را ولېږئ، چي هغه ما ته پېشکي پیسې را کړي، تر څو زه په دغو پیسو په خپل هیواد کي امنیت او ثبات قایم کړم او کله چي مي د لومړي کال مالیات ټول کړل، نو ستاسي استازي ته به ټولي پیسې په یوه وار ور کړم. زه دغه راز هیله لرم چي تاسي به د دریو پوځي څانګو؛ توپچي، سپاره او پیاده قواوو له پاره درې افسران را ولېږئ، چي زما پوځونو ته د عملیاتو په وخت کي لارښوونه وکړي.

۴: ما څو کاله مخکي له ښکاپر څخه یو لک روپۍ را سره را وړې وې. له هغو پیسو څخه مي څلورشپېته زره روپۍ په لودیانه کي هندو سوداګرو ته ور کړې دي. ما له هغوی څخه څو ځلي د خپلو پیسو غوښتنه کړې ده، مګر دوی هر وخت پلمې راته کوي او زه خپلې پیسې ور څخه

اخیستلای نه سم. زه هیله لرم چي تاسي کپتان ویډ ته امر وکړئ، چي دغه کسان بندیان کړي او زما پیسې ور څخه حصول کړي. د مځکو خاوندان پر هغه مځکه چي اوس زما په لاس کي ده، ډېره زیاته مالیه حواله کوي، که تاسي مهرباني وکړئ، دغو کسانو ته ووایاست چي زما څخه تر هغه اندازې چي د بریتانیې د حکومت مقررات او اصول یې ایجابوي، زیاته مالیه وا نه خلي.

۵: زما کور زما د کورنی له پاره ډېر وړوکی دی. زه هیله لرم چي تاسي عالي جناب به کوم چا ته وظیفه ور کړئ، چي زما کور وګوري او که هغه هم زما خبره تایید کړه، نو بیا زه هیله کوم چي یو لوی کور را کړئ، څو زما کورنی پکښي ځای سي.

## لارډ بینټینک ته د شاه‌شجاع دوهم لیک

څه موده مخکي ما ته اطلاع ورسېده چي عباس میرزا د روسیې په لمسون خراسان ته را ځي. ما سمدستي د احوال د معلومولو له پاره، خپل سړي هرات ته واستول. هغوی بیرته را غلل او دا خبرونه یې تایید کړل.

څرنګه چي د هرات واکمن شهزاده کامران زما دوست دی او زه هغه ته د خپل اولاد په سترګه ګورم، نو ما هغه ته خپله آرزو بیان کړه. لومړی دا خبره وه، چي که عباس میرزا خراسان ته رسېږي، نو دی یې باید مخه ونیسي. دی باید زما مرستي ته انتظار وباسي او زما د پوځونو تر رسېدلو پوري ځان تیار کړي.

عالي جناب! ما له بېلو بېلو سرچینو څخه رپوټونه اخیستي دي. ټول به حقیقت نه لري، مګر دا چي عباس میرزا خراسان ته را روان دی او د هرات د نیولو خیال لري، دا بالکل حقیقت لري. دا به تاسي عالي جناب ته معلومه وي، چي که څه هم چي عباس میرزا به سمدستي د هرات په نیولو بریالی نه سي، مګر هغه دونه قوت لري چي بالآخره به په خپل کار کي بریالی سي. د هرات د واکمن سره دونه قوت نه سته. که څه هم چي هغه به د هرات څخه د دفاع له پاره خپل ټول وس تمام کړي، مګر که مرسته ورته و نه رسېږي، نو مقاومت نه سي کولای.

دراني، غلجي او نور خلک د بارکزیو د ظلم، زور له لاسه په عذاب دي. دوی ټول دعا کوي چي ګوندي یو څوک به راسي او د هغه هیواد حکومت به په خپل لاس کي واخلي او دوی به د دغه اوسني ظلم او ستم څخه وژغوري.

دوی د هرات د واکمن له ویري سره غونډېدلای نه سي. دوی ماته پر له پسې لیکونه را لېږي او

راته وايي چي که د دوی د ژغورني او د حکومت د اخيستلو له پاره ور نه سم، نو هيواد به د اوزبکو او نورو قبايلو لاس ته ولوېږي. زه هر وخت دوی ته وايم، چي تاسي فکر مه خرابوئ، زه به ژر در ورسېږم.

اوس عباس ميرزا په خراسان کي دی. که زه ور و نه رسېږم، نو هغه سيمه به لاندي کړي او هغه خلک به چي زما د ور تللو انتظار کوي، عباس ميرزا ته تسليم سي. بارکزي له هغه سره د مقابلې کولو توان نه لري. دوی به ټول د رنجيت سينگهـ خاوري ته وتښتي او د هغه په قلمرو کي به پناه واخلي.

اوس ډېر ښه فرصت دی او زه هيله لرم، چي زما دوستان (د بريټانيې حکومت) به زما سره مرسته وکړي او زه به وکړای سم، چي هغه هيواد ته د تللو په لاره کي خپل پلانونه او نقشې عملي کړم.

ان‌شاءالله چي درانيان، غلجي او نور قومونه به زما سره مرستي کولو ته تيار وي او له خراسانه تر سيستان او ترکستان پوري ټول هيواد به د بريټانيې د حکومت دوستانو ته په لاس ور سي. مگر څرنگه چي هغه هيواد ډېر نېستمن دی، نو د ثبات او کرارۍ تر راتللو پوري به په لومړيو څو مياشتو کي چنداني حاصلات او پيسې ور څخه تر لاسه نه سي. دغه فکر ما ناآرامه کوي، ځکه چي پوځ ته پيسې و نه رسېږي، نو هغه ښورښ کوي او ناراض به وي او که چيري پر خلکو باندي د نېستۍ په حالت کي بې‌وخته ماليات حواله سي، نو هغوی تباه کيږي. زه هيله لرم چي زما دوستان (د بريټانيې حکومت) به دغه خبره په نظر کي ولري.

زما بله غوښتنه دا ده چي که زه حکومت ونيسم زه به دې ته اړتيا ولرم، چي د بريټانيې يو استازی به د تل له پاره را سره ملگری وي. دغه راز به دريو بريټانوي افسرانو ته ضرورت ولرم، چي ما ته توپچي، سپاره او پياده عسکر را وروځي. په دې وسيله به هغوی د بريټانيې د حکومت د دوستانو او زما د ټينگېدلو وسيله سي.

## شاه‌شجاع ته د لارډ بينټينک ليک

د (۱۸۳۲م.) کال د اکتوبر شلمه، سيمله

**له القابو وروسته!**

افتخار کوم چي ستاسي اعليحضرت دوه ليکونه مي تر لاسه کړل. له دې ليکونو سره ستاسي پنځه غوښتني هم ملگري وې او دا ليکونه ستاسي استازي قاضي محمدحسين را ورسول.

زه ستاسي اعليحضرت ډېر مننداوی يم، چي د شهزاده عباس ميرزا د حرکاتو په باب مو راته ليکلي ول. ما ته په دې باره کي تر اوسه پوري دقيق اطلاعات نه دي رسېدلي. د خراسان د وضع او په هغه سيمه کي د ايرانيانو د پوځي حرکاتو په باب، خلک د يوه بل مخالف رپوټونه خپروي، نو تاسي اعليحضرت به هم په دې قانع سوي ياست، چي په دې برخه کي سړی پر هيڅ رپوټ باندي سم باور نه سي کولای. دا رپوټونه زياتره د مختلفو سرچينو څخه آوازې وي، چي ښايي ستاسي اطلاعات هم له هغو سرچينو څخه راغلي وي.

تاسي ته لومړی رسېدلی رپوټ وايي چي عباس ميرزا هرات ته رسېدلی دی او که د بريتانيې له حکومت څخه مرسته تر لاسه کړئ، نو هغې سيمي ته به حرکت وکړئ. زما دوسته! ستاسي د دې غوښتني په جواب کي به درته ووايم، چي دا زما وظيفه ده چي تاسي ته په مشخصه توګه دا خبره روښانه کړم، چي د بريتانيې حکومت ته خپل مذهبي اصول اجازه نه ور کوي، چي د ګاونډيو هيوادونو په چارو کي مداخله وکړي او چي تر څو پوري ممکنه وي، له دغه راز مداخلو څخه ځان ژغوري. (دا هغه اصل دی، چي د بريتانيې حکومت په خپل ټول تاريخ کي نه دی رعايت کړی او چي وس يې رسېدلی دی، د بېرنيو کمزورو هيوادونو په چارو کي يې له ښکاره مداخلو او د خلکو له قتل عامونو څخه ځان نه دی ژغورلی. له دې ليک څخه فقط څو کاله وروسته يې هم د افغانستان، هم د پنجاب او هم د ايران په چارو کي ښکاره مداخلې وکړې. [جهاني]) تاسي اعليحضرت البته د خپلو اعمالو اختيار لرئ، مګر دا چي په دې مسئله کي زموږ څخه مرستي غواړئ، نو زه بايد درته ووايم چي دا کار په دغه راز مواردو کي زموږ د حکومت د بې‌طرفی له اصولو سره برابر نه دی.

ستاسي د دوهمي غوښتني په جواب کي به درته ووايم، چي ستاسي کورنی به هيڅ وخت پر ميدان پاته نه سي او تاسي هر وخت د بريتانيې د هيواد پر سخاوت باندي حساب کولای سی.

په دې حساب نو ستاسي د دريمي غوښتني په جواب کي درته ويلای سم، چي د بريتانيې د حکومت پر پوځي او مالي مرستو باندي حساب نه سئ کولای.

ستاسي د څلورمي غوښتني په جواب کي به درته ووايم، چي زه به کپتان ويډ ته وظيفه ور کړم، چي له پوروړو څخه ستاسي څلورشپېته زره روپی درته حصول کړي.

زه به دغه راز کپتان ويډ ته وظيفه ور کړم، چي ستاسي له حويلي سره اضافه وداني درته جوړې کړي، البته خرځ به يې له هغو پيسو څخه حواله کيږي، چي د بريتانيې حکومت يې تاسي او ستاسي

د کورنۍ نورو غړو ته ور کوي. (هغه مأخذ، ص: ۳۳۷- ۳۴۰)

شاه‌شجاع ته د بریتانیې د گورنرجنرال لارډ بینټینک سوړ جواب مایوسوونکی وو او هغه بیرته د رنجیټ سینگهـ خوا ته مخ واړاوه. له رنجیټ سینگهـ سره یې له سره تماسونه ټینگ کړل او د (۱۸۳۳م.) کال د مارچ پر دوولسمه یو تړون لاسلیک کړ، چې تر ډېره ځایه پوري په وروسته کي د گندمک او ډیورنډ د بد مرغه تړونونو پیلامه سوه. له رنجیټ سینگهـ سره په دې تړون کي شاه‌شجاع د تېر په څېر د رنجیټ سینگهـ ټول شرایط ومنل او د پېښور، کوهاټ او دېره‌جاتو په شمول یې د ډېرو زیاتو مځکو قواله رنجیټ سینگهـ ته ور کړه. امیر دوست‌محمد خان تر پایه پوري د دې مځکو او یا ځینو مهمو برخو د بیرته تر لاسه کولو له تلاښ څخه لاس وا نه خیست. له رنجیټ سینگهـ سره، چې د انگلیسیانو دوست وو، د امیر دښمني او د دې مځکو د ملکیت پر سر د هغه ټینگار له انگلیسیانو سره د امیر د دښمنی او د قدرت د لاسه ور کولو یو مهم عامل سو.

## د شاه‌شجاع او رنجیټ سینگهـ د (۱۸۳۳م.) کال د مارچ د دوولسمي تړون، متن

د مهاراجا رنجیټ سینگهـ او شاه‌شجاع‌الملک تر منځ د دوستۍ اړیکي په کلکه ټینگي سوي دي او د هغوی د گټو تر منځ هیڅ ډول تضاد او اختلاف نه په اوس کي موجود او نه به په آینده کي منځ ته راسي. دوی موافقه لري چې پر راتلونکو موادو باندي د ښه نیت او دوستۍ په اساس چې دوی دواړو منځ ته راوړی دی، توافق وکړي.

۱: شاه‌شجاع‌الملک له خپله طرفه د خپلو اولادونو، له ده څخه وروسته د راتلونکو واکمنانو او ټولو سدوزیو له خوا د اباسین پر دواړو غاړو باندي له ټولو هغو مځکو څخه، چې همدا اوس د مهاراجا په ملکیت کي دي، لاس پر سر کیږي، لکه: کشمیر او د هغه په ختیځ، لوېدیځ او شمال کي ټولي سیمي د اټک د قلا، چچ، خبل، اوب او د اباسین پر کیڼ اړخ باندي له ټولو سیمو څخه؛ پر ښي اړخ باندي له پېښور، د یوسفزیو علاقه، د ختکو سیمو، هشتنغر، میهني، کوهاټ او د خیبر تر درې پوري په پېښور پوري ټولي مربوطي علاقې، بونیر، د وزیرو علاقه، دَوړ، ټانک، گوراک، کالاباغ او خوشحالگهړ، د هغه له ټولو مربوطاتو سره. ډېره اسماعیل خان د هغه له مربوطاتو سره چې په هغه کي ډېره غازي خان، کوټ میټون او مربوطات یې سنگر، هیرین، داجیل، حاجي پور، رجنپوری او درې کڅې او مینکوره د هغې له مربوطاتو سره او د اباسین پر کیڼ اړخ باندي مُلتان.

دغه مځکې او ځایونه به د مهاراجا ملکیتونه ګڼل کیږي او شاه به له هغوی سره هیڅ ډول غرض نه لري. دا مځکې نسل پر نسل په مهاراجا او د هغه په اولاد پورې اړه لري.

۲: د خیبر پر هغه بله غاړه باندي به خلک په دې خوا کې له غلا، تېریو او ګډوډیو له ایجادولو څخه منع کیږي. که له هري خوا څخه څوک په مالیاتو کې غبن وکړي او هغې بلې خوا ته واوړي، نو دواړه خواوې وظیفه لري چې مقصر یوه بل ته وسپاري.

۳: لکه د مهاراجا او د بریتانیې د حکومت تر منځ د لاسلیک سوي تړون په اساس، چې هیڅوک حق نه لري، د مهاراجا له پاسپورټه پرته، د سوتلیج د سیند له کیڼ اړخ څخه ښي اړخ ته واوړي؛ همدغه اصول به له اباسین څخه، چې اوبه یې له سوتلیج سره ګډیږي، د تېرېدلو په برخه کې هم رعایت کیږي. هیڅا ته باید اجازه ور نه کړه سي، چې د مهاراجا له پاسپورټه پرته له اباسین څخه تېر سي.

۴: د شکارپور او د سیند په برخه کې، چې د اباسین پر ښي اړخ پراته دي، شاه به ټول هغه شرایط رعایت کوي، چې د دوستۍ د هغه نېکمرغه تړون په اساس ایښودل سوي دي، چې د کپټان وېډ په واسطه د مهاراجا او د بریتانیې د حکومت تر منځ ټینګ سوی دي.

۵: کله چې شاه په کابل او کندهار کې خپل واک ټینګ کړي، نو هر کال به مهاراجا ته لاندني شیان لېږي؛ پنځه پنځوس اعلی آسونه، چې ښه رفتار به کوي. یوولس ایراني توري، اووه ایراني خنجرونه، پنځه ویشت ښه یابوګان، راز راز وچې او تازه مېوې، مزه داره خواږه سرده خټکي. دا به ټول کال د کابل د سیند او پېښور له لاري لېږل کیږي. انګور، انار، مڼې، بهې، بادام، کشمش، پسته او دا به ټول په ښه زیات مقدار را استول کیږي. د دې تر څنګ به هر رنګ ټوکران، له پوست څخه جوړې خولۍ، د کیمخاب ټوکران، چې طلا او سپین زر به پکښې کار سوي وي، یو سل او یو ایراني قالیني. شاه به دا ټول شیان مهاراجا ته هر کال لېږي.

۶: دواړه خواوې به یوه بل ته په مساوي القابو خطاب کوي.

۷: د افغانستان سوداګر به، چې په لاهور، امرتسر او د مهاراجا د قلمرو په هره برخه کې تجارت کوي، نه زورول کیږي، بلکې مسؤلو مقاماتو ته ټینګ هدایت ور کړه سي، چې د هغوی له پاره اسانتیاوې برابرې کړي. دغه راز باید له هغو سوداګرو سره چې افغانستان ته ځي، همدغه راز سلوک وسي.

۸: مهاراجا به هر کال شاه ته د دوستی له مخي پنځه پنځوس شالونه، پنځه ویشت ټوټې ښځینه ټوکران، یوولس لوی پوړني، پنځه ټوټې کیمخاب، پنځه واړه پوړني، پنځه بګړۍ او پنځه پنځوس باره پیښوری وریجي.

۹: د مهاراجا هر مامور چي افغانستان ته د آسونو د اخیستلو یا نورو کارونو له پاره لېږل کیږي او دغه راز د شاه مامورین چي پنجاب ته تر یوولس زرو روپیو سودا اخیستلو له پاره راځي، باید چي دواړه خواوي د هغه په کارونو کي د اسانتیاوو برابرولو کوښښ وکړي.

۱۰: هر وخت چي د دواړو خواوو پوځونه په کوم ځای کي را غونډېږي، نو د غوایانو حلالولو ته باید اجازه ور نه کړه سي.

۱۱: که شاه له باکرزیو سره د جنګ له پاره، له مهاراجا څخه عسکر واخیستل. د فتحي په صورت کي باید له بارکزیو څخه غنیمت سوي شیان، جواهرات، آسونه، سپکي او درنې وسلې باید د دواړو تر منځ په مساوي شکل وویشل سي. که چیري شاه د مهاراجا له مرستي پرته، له هغوی څخه مالونه غنیمت کړل، نو شاه موافقه کوي چي یوه برخه به یې مهاراجا ته، د دوستی د نخښي په توګه لېږي.

۱۲: دواړي خواوي باید پرله پسې یو بل ته لیکونه او سوغاتونه واستوي.

۱۳: که چیري مهاراجا له شاه څخه د پوځي مرستي غوښتنه وکړي، نو شاه باید یوه قوه د خپل مهم افسر تر قوماندې لاندي ورته واستوي. دغه راز که شاه له مهاراجا څخه پوځي مرسته وغواړي، نو هغه به هم پوځي قوه ورته لېږي، چي هغه به مسلمانان وي او د ده یو مهم افسر به یې قومانده پر غاړه لري او تر کابل پوري به ور ځي. هر کله چي مهاراجا پېښور ته ځي، نو شاه باید یو شهزاده د هغه د هرکلي له پاره ورته را واستوي او مهاراجا به هم د هغه له مقام سره سم، د هغه هرکلی کوي او په ښه توګه به یې رخصتوي.

۱۴: د هر یوه دوست د هغه بل دوست او دښمن یې د یوه بل دښمن دی.

۱۵: دواړه خواوي له دې تړون سره موافقه لري او د هغه له موادو څخه باید هیڅ ډول سرغړونه و نه سي. دغه اوسنی تړون د تل له پاره نافذ دی. (ص: ۳۶۹- ۳۷۱)

مخکي مو دې خبري ته اشاره وکړه، چي شاه‌شجاع د کابل د تخت د نیولو له پاره، چي بل یې هیڅ پلان او نقشه نه درلوده، هر ډول شرایطو منلو ته حاضر وو. له دغه پورتني تړون څخه ښکاري، چي دا د دوو هیوادونو د مشرانو تر منځ تړون نه، بلکي د یوه مغرور فاتح او یوه عاجز او مجبور

فریزر، چي تازه ټاکل سوی وو، له خپلو مخبرانو څخه اطلاع تر لاسه کړه، چي افغانان په بازارون
کي ګرځي او ډېري زیاتي وسلې او مهمات اخلي. دا معلومه نه وه چي د وسلو دغه رانیول قانوني ا
که غیرقانوني دي او هدف يې څه دی. فریزر د وسلو د رانیونکو د بندي کولو امر ور کړ او
ګورنرجنرال لارډ بینټینک له دفتر څخه يې هدایت وغوښت. په دې لیک کي راغلي ول چي
وسلو رانیونکي وايي دوی د شاه‌شجاع استازي دي. په داسي حال کي چي ګورنرجنرال له یوې خو
دوست‌محمد خان ته لیکونه لېږل او هغه ته يې د دوستی وعدې ور کولې، د هغه خاص سکرټ
ویلیم مکناټن فریزر ته هدایت ور کړ، چي نه یوازي د شاه‌شجاع سړي له بنده خوشي کړي، بلک
په ډهلي کي د هغوی د وسلو او مهماتو پر خریداري باندي ټول مالیات ورته معاف کړي. (دا
ریمپل، ص: ۶۲-۶۳)

ګورنرجنرال لارډ بینټینک چي څه موده مخکي يې شاه‌شجاع ته لیکلي ول چي د دوی مذهب
قوانین دوی ته د ګاونډیانو په چارو کي د مداخلې حق نه ور کوي؛ اوس يې فراري شاه‌شجاع ته اجا
ور کوله چي د ده په قلمرو کي د افغانستان د پاچا د پرزولو په مقصد وسلې او مهمات واخلي او لا ي
د دې ورانکارو فعالیتونو له پاره شاه‌شجاع ته شپږ میاشتي پېشکي تنخوا هم ور کړې وه.

شاه‌شجاع د (۱۸۳۳م.) کال د فبروري په میاشت کي له لودهیانې څخه روان سو. ده په د
وخت کي دوه سوه زره روپۍ ور سره لرلې او درې زره وسله وال عسکر يې درلودل. د مې
میاشت کي له اباسین څخه تېر سو او شکارپور ته په ننوتلو کي له مقاومت سره مخامخ نه سو. ه
سندیانو چي مقاومت وکړ، هغوی ته يې له شکارپور سره سخته ماته ور کړه او د سیند میران په د
راضي سول، چي شاه‌شجاع ته پنځه سوه زره روپۍ په دې شرط ور کړي، چي که يې د کابل تخ
تر لاسه کړ، نو سند ته به بشپړه خپلواکي ور کوي. (کنینګهم، ص: ۱۸۰)

له سند څخه تر تېرېدلو وروسته د شاه‌شجاع لښکر دوه ویشتو زرو تنو ته رسېدی. په دې کي ه
غښتلی او منظم پیاده پوځ شامل وو، چي د سکاټلېنډ اوسېدونکي لایق منصبدار کیمپل روزلی و
شاه‌شجاع پر کندهار باندي د حملې له پاره د بولان له درې څخه تېر سو او د کوږک په کوتل کي
کهندل خان له مقاومت سره مخامخ سو. کهندل خان ډېر ژر ماته وکړه او کندهار ته پر شا سو.

کهندل خان د کوږک پر لور له حرکت کولو څخه مخکي دوست‌محمد خان ته پرله پس
پیغامونه لېږلي او د مرستي غوښتنه يې ور څخه کړې وه. دوست‌محمد خان د یوه هوښیار مشر
حیث د پوځي عملیاتو له پیل کولو څخه مخکي په لودهیانه کي د بریتانیې له سیاسي استازي کلا

وېل: ښه پوښتنه کړې وه، چې له شاه‌شجاع سره د بریتانیې د حکومت ملاتړ ور سره دی، که یا؟ کپتان وېل: ورته لیکلي ول چې له هغه سره د بریتانیې د حکومت هیڅ ملاتړ نه سته، البته خواخوږي یې ور سره سته. کله چې دوست‌محمد خان په دې باور سو، چې له شاه‌شجاع سره بریتانوي عسکر ملګري نه دي، نو د خپلو ورونو سره د مرستي له پاره یې د کندهار پر لور حرکت وکړ. (سایکس، ص: ۳۹۶)

د کندهار سردارانو ښار قلابند کړ. شاه‌شجاع ښار محاصره کړ او د محاصرې د ماتولو په حملو کي یې ډېر سخت تلفات ور کړل. کله چې د جولای د میاشتي په سر کي د دوست‌محمدخان پوځونه د جنګ میدان ته را ورسېدل، نو شاه‌شجاع خپل پوځونه د زاړه ښار خوا ته پر شا کړي او له ښار سره نیژدې یې قوي سنګرونه پرې ایښي ول. که څه هم چې د جګړې په پیل کي د دوست محمد خان د پوځونو یوې برخي ماته وکړه، خو د ورځي په پای کي بری د هغه په برخه سو. شاه شجاع وتښتېدی، توپونه، توپکونه، مهمات او خزانې یې پر میدان پاته سولې.

دوست‌محمد خان ته د شاه‌شجاع د دې ماتي په نتیجه کي دوولس توپونه، آسونه، اوښان او ډېر نور شیان په لاس ورغلل او کابل ته یې له ځان سره ښاغلی کیمپل، جریرالدین خان رساله دار، فتح خان، جسیم خان او هالي بخش، چې ژوندي یې نیولي ول، ور سره بوتلل. کیمپل له دوست‌محمد خان سره پاته سو او هغه د توپچي د یوه کنډک او شپږو توپونو قوماندانې ور وسپارله. دوست‌محمد خان نورو نیول سویو افسرانو ته هم پېشنهاد وکړ، چې که له ده سره خدمت کوي، نو پاتېدلای سي خو هغوی د ده پېشنهاد نه و نه مانه او ورته و یې ویل، چې غواړي بیرته له شاه‌شجاع سره یو ځای سي. (کوریس پانډېنس، ص: ۳۷۹)

که څه هم چې تقریباً ټول مؤرخین په دې عقیده دي، چې شاه‌شجاع په دې جنګ کي هم بې کمالي او هم بې‌زړه‌توب وښود او د دې پر ځای چې د جنګ تر پایه پوري یې مقاومت کړی وای، میدان یې پرېښود او وتښتېدی، خو شاه‌شجاع خپله دغه ماته د قسمت لوبه بولي او وایي چې زموږ پوځیان ډېر ښه وجنګېدل او له مقابل لوري څخه یې ځلور توپونه ونیول او د پوځې مشرانو او خانانو سرونه یې را وړل. دوست‌محمد خان د پوځ په منځ کي قرآن په لاس ګرځېدی او خپل پوځیان یې مقاومت ته را بلل، چې یو ناڅاپه زموږ په لښکرو ماته ګډه سوه، نو ما هم له سلو سپرو سره د هیلمند پر لور حرکت وکړ... (شاه‌شجاع، ص: ۹۷-۹۸)

شاه‌شجاع په لومړي سر کي غوښتل چي خپل ځان په هرات کي شهزاده کامران ته ورسوي، خو په لاره کي یې نیت واوښت او د بلوچستان خوا ته یې مخه کړه. سردار رحمدل خان له کندهار څخه تعقیباوه او شاه‌شجاع یې په هیڅ ځای کي پر کراره نه پرېښود. د قلات واکمن محراب خان خپل سپاره ور واستول او د رحمدل خان او شاه‌شجاع تر منځ یې واچول. شاه‌شجاع یې صحیح، سالم کلات ته ورساوه. کله چي رحمدل خان له محراب خان څخه د شاه‌شجاع د ورسپارل کېدلوغوښتنه وکړه، نو محراب خان ورته وویل چي هغه د ده مېلمه دی او په هیڅ توګه به یې ور تسلیم نه کړي. خو محراب خان چي په اصل کي د شاه‌شجاع په نیت خبر هم وو، له رحمدل خان سره دا شرط قبول کړ، چي هغه به په کلات کي نه پاتېږي. رحمدل خان بیرته کندهار ته حرکت وکړ او شاه‌شجاع څو ورځي وروسته د محراب خان د څو سپرو په بدرګه، شکارپور ته نیژدې، چچ ګنداوه ته ورسېدی او له هغه ځایه څخه یې د لودیانې پر لور حرکت وکړ. (کوریس پانډینس، ص: ۳۸۱-۳۸۲)

شاه‌شجاع له څو میاشتو خواریو او دربدریو او په غرونو او دښتونو کي له سفرونو کولو څخه وروسته لودیانې ته ستون سو او بیرته د انګرېزانو خیرات ته کښېنستی.

دوست‌محمدخان ته د جنګ په میدان کي د نورو زیاتو غنیمتونو تر څنګ د لیکونو یو ډک صندوق په لاس ورغی، چي په هغه کي د خانانو او قومي مشرانو په نوم د کپتان ویډ خطونه ول، چي هغوی یې د شاه‌شجاع سره مرستي ته را بللي ول. دوست‌محمد خان په دې پوه سو، چي له شاه شجاع سره یوازي د بریټانوي هند د حکومت ملاتړ ملګری نه دی، بلکي د هغه په خپل پوځ او دربار کي خانان او مشران د ده له دښمنانو سره لاس لري.

د دوست‌محمد خان مشر ورور نواب جبارخان او نورو ناراضي خانانو او مشرانو له شاه‌شجاع سره تماسونه ټینګ کړي ول او شاه‌شجاع له نواب جبارخان سره ژمنه کړې وه، چي د غزني علاقه به ده ته سپاري، جلال آباد به نواب زمان خان او بالاباغ به عثمان خان ته ور کړي. دوی له شاه شجاع سره موافقه کړې وه، چي هر کله دوست‌محمد خان په کندهار کي د شاه‌شجاع کمپ ته نیژدې سي، نو دوی به د شاه‌شجاع له کمپ سره یو ځای سي. نواب جبارخان په دې عقیده وو، چي له شاه‌شجاع سره د انګلیسیانو ملاتړ ملګری دی او خپل نور ملګري یې هم په دغه عقیده کړي ول. نواب جبارخان د خپلو دسیسو د عملي کولو له پاره امیر دوست‌محمدخان ته په غزني کي پېشنهاد وکړ، چي ده ته اجازه ور کړي، چي د هغه له پوځ څخه مخکي ځان شاه‌شجاع ته ورسوي او له هغه

سره د امیر له پاره خبري وکړي. ځکه چي دی باور لري چي بری به د شجاع په برخه وي او دی به د امیر له پاره خبري په ښو شرایطو پای ته ورسوي. دوست‌محمدخان د خپل ورور په نیت پوهېدی او په دې هم پوهېدی، چي په پوځ کي ور سره ملګري مشران او د کندهار سرداران به ټول بالآخره له شاه‌شجاع سره ملګري سي او دی به پر میدان یوازي پرېږدي، نو نواب جبارخان ته یې وویل: "لالا! کله چي زه مات سم نو بیا به ته له شاه‌شجاع سره د خبرو له پاره ډېر وخت ولرې!" (موهن لا، ص: ۱۵۶-۱۵۷)

انګرېزي مؤرخین لیکي چي که چیري ګورنرجنرال د دغه جګړې منظوري نه وای ور کړې او شاه‌شجاع ته یې د هغه پېشکي تنخوا منظوره کړې نه وای، نو هم به په سند او افغانستان کي د وینو تویېدلو مخه نیوله سوې وای او هم به دوست‌محمد خان په دې نه باوري کېدلای، چي له شاه‌شجاع سره زموږ د حکومت ملاتړ ور سره دی. هغه یې زموږ پر حکومت بې‌اعتماده کړ او خونړي او غمناکي نتیجې مو ولیدلې. (سایکس، ص: ۳۹۶-۳۹۷)

## دوست‌محمدخان د امیر په حیث

د شاه‌شجاع له وروستي ماتي سره په افغانستان کي دننه او دباندي د سیاست صحنه او لوبه بدله سوه. د دې وروستي جنګ یوه نتیجه دا سوه، چي د سردارانو تر منځ یې پخوانۍ بې‌اعتمادي نوره هم زیاته کړه. کندهاري ورونو چي ښار او قدرت یې د دوست‌محمد خان د توري له برکته ژغورل سوی وو، د جنګ له ختمېدلو څخه وروسته هغه ته اجازه ور نه کړه، چي ښار ته ننوځي. له دوی سره دا وېره وه، چي هسي نه دوست‌محمد خان د کندهار واکمني ور څخه واخلي او له دوی سره دونه قوت موجود نه وو، چي هغه یې له ښار څخه وتلو ته مجبور کړی وای. د جنګ له ختمېدلو څخه وروسته دوست‌محمد خان ته داسي لیکونه لاس ته ورغلل، چي د هغه په دربار او پوځ کي یې له سردارانو، پوځي مشرانو، خانانو او حتی د ده له خپلو ورونو سره د انګرېزانو ارتباط ثابتاوه. امیر نه پوهېدی، چي اوس به په چا باور وکړي.

له بلي خوا دوست‌محمد خان مخکي فکر کاوه، چي په ختیځ کي یې تر ټولو لوی او قوي دښمن سیکهان دي، خو دې وروستي جنګ ورته وښودله، چي انګرېزان هم نه یوازي د ده دوستان

نه دي، بلکې د هغه له دښمن شاه‌شجاع سره دونه خواخوږي لري، چې د ده د نسکورولو له پاره، مالي او پوځي مرستي ور سره کوي. دوست‌محمد خان نه انګرېزانو ته تاوان رسولی او نه يې خطر ورته متوجه کړی وو؛ بلکې تر بل هر چا له هغوی سره د دوستۍ ټينګولو ته تيار وو. هغه تر مرګه په دې پوه نه سو چې انګرېزانو ولې د هغه د خاوري د نيولو، د ده د نسکورولو او قدرت ته د شاه‌شجاع د رسولو فيصله کړې وه.

له دې مهم جنګ څخه مخکې هر چا فکر کاوه، چې دا به د دوست‌محمد خان وروستۍ جګړه سي. دوست‌محمدخان به يا ډېره سخته ماته وخوري او يا به د جنګ په ميدان کې ووژل سي. د کابل پر لور د دوست‌محمد خان له حرکت کولو سره سم، رنجيت سينګهـ پېښور ونيوی او سلطان محمد خان يې جلال‌آباد ته په تللو مجبور کړ. سلطان‌محمد خان د جنګ نتيجې ته منتظر نه سو او د جلال‌آباد په شاوخوا کې يې خپل حاکمان مقرر کړل او ځينو نورو ته يې د لويو مقاماتو د سپارلو وعدې ور کړې. خبره لکه څرنګه چې رنجيت سينګهـ د دوست‌محمد خان ورونو او نورو قومي مشرانو فکر کړی وو، هغسي نه سوه. شاه‌شجاع په جنګ کې ماته کړې او په تېښته تللی وو او سلطان‌محمد خان له ډېر خجالت سره کابل ته ولاړ او دوست‌محمد خان ته يې د دې لويي فتحې مبارکي وويله.

دوست‌محمد خان له دونه زياتو او خطرناکو دښمنانو سره په يوازي سر مقابله نه سوای کولای او بايد چې د ځان له پاره يې په داخل او بهر کې دوست يا دوستان پيدا کړي وای. دوست‌محمد خان له ډېره وخته د کندهاري ورونو او د ايران د دربار په اړيکو خبر وو او په دې هم ښه پوهېدی، چې د ايران دربار په تېرو څه باندي شلو کالو کې د افغانستان په سياسي صحنه کې څومره فعال او خطرناک رول لوبولی او اوس حاضر د ده له دښمنانو سره د دوستۍ له لاري ده ته څونه خطر متوجه کولای سي. په پېښور کې د امير درې ورونه په تېره بيا سردار سلطان‌محمد خان طلايي له رنجيت سينګهـ سره په دسيسو کې لاس يو کړی او د ژوند تر ټولو لوی هدف يې د دوست‌محمد خان پرزول او له منځه وړل وه. دوست‌محمد خان په کابل کې هم داسي دوست او ملګری نه درلود، چې د هغه پر دوستي او قوت يې حساب کړی وای او وروستي جنګ وښودله، چې له هغه سره ملګري کسان يوازي د قدرت او دولت دوستان دي. دوست‌محمد خان فيصله وکړه چې تر هر څه مخکې بايد د ايران له ضرر څخه ځان وساتي او که يې دوست نه کړای سي، نو لږ تر لږه له ښکاره دښمنۍ څخه يې ځان وژغوري.

دوست‌محمد خان له ښه ډېر فکر کولو څخه وروسته د ایران د پاچا محمدشاه قاجار په عنوان داسي مکتوب ترتیب کړ، چي هم یې هغه ته تر یوې اندازې پوري خپل قوت وښود او هم یې محمدشاه قاجار د اسلام د یوه پاچا په حیث د دین د مشترک دښمن سیکهانو په مقابل کي د ګډ اقدام له دیني وجیبې سره مخامخ کړ.

امیر هغه ته ولیکل چي مخکي مي د حاجي ابراهیم په لاس ستاسي اعلیحضرت حضور ته یو پیغام در لېږلی او په هغه کي مي د هغو ستونزو یادونه درته کړې وه، چي زموږ ملت ور سره مخامخ دی. اعلیحضرته! زموږ لویه ستونزه دا ده چي موږ په خپله خاوره کي د دین د منفور دښمن سیکهانو له تېریو سره مخامخ یو. که څه هم چي زما سره د افغانانو څلوېښت زره کورنۍ او ګاونډي قبایل ولاړ دي او چي هر وخت ږغ ور باندي وکړم د جنګ میدان ته یې ایستلای سم، خو زما په پایتخت کابل کي زما د تکړه سپرو عسکرو شمېر شلو زرو او د پیاده عسکرو شمېر مي تر لسو زرو نه اوړي. امیر ولیکل چي زه له ډېره وخته د دې نجسو کفارو له سلو زرو سپرو او پیاده عسکرو او دریو سوو توپونو سره په مقابله لګیا یم، مګر د خدای په فضل یې تر اوسه غلبه نه ده را باندي کړې. ده ولیکل چي زه به نو تر څو پوري د دې کرکجنو کفارو سره جنګېږم او تر کله به د هغوی د یرغلونو مخه نیسم؟ زه باید تاسي اعلیحضرت ته ووایم چي که تاسي زما سره مرسته و نه کړئ، نو زه به مجبور سم چي له انګرېزانو څخه مرسته وغواړم او هغوی به د مرستي په بدل کي ټول افغانستان تر کنټرول لاندي کړي او دا لا معلومه نه ده، چي د هغوی د تېریو لمبې به تر کومو هیوادونو پوري رسېږي.

امیر ولیکل چي دا پر ما باندي فرض وه، چي تاسي اعلیحضرت ته د اسلام د یوه پاچا په حیث وضع بیان کړم. باقي تاسي پوهېږئ چي څه کوئ. نوري خبري به د لیک در وړونکی محمدحسین خان، چي یو باوري سړی دی، درته وکړي. (کوریس پانډینس، ص: ۲۷-۲۸)

د ایران پاچا چي هم په خپل قدرت مغرور وو او هم د افغانستان په دننه کي د مشرانو په بې اتفاقي او کمزوري خبر وو، د امیر دوست‌محمد خان په جواب کي داسي مکتوب ولیکی، چي د دوستۍ د څرګندولو تر څنګ یې هغه ته خپل زور او د افغانستان په باب خپل نیت څرګند کړ. محمدشاه قاجار د امیر د لیک په جواب کي ولیکل چي زه پوهېږم چي ته د اسلام مدافع او زړه‌ور جنګیالی یې او د اسلام له دښمنانو سره څکه جنګېږې، چي ته زموږ د ابد مدته دولت تابع یې او زموږ د پاچهی او مذهب له پاره جنګېږې او موږ د خپل شاهي سخاوت له امله دا خپل فرض ګڼو،

چي تا به له خپل سیوري څخه نه بې‌برخي کوو.

د ایران پاچا پر هرات باندي د راتلونکي حملې په باب ولیکل، چي موږ شل زره سپاره او پیاده عسکر او څلوېښت توپونه له ټولو مهماتو سره خراسان ته لېږلي دي او په پسرلي کي به پر هرات باندي حمله کوو.

وروسته یې ولیکل چي موږ خپل ایلچي قنبرعلي خان ته ستاسي جلالتماب له پاره په الماسو کي نیولی خنجر د سوغات په توګه در لېږلی دی. موږ قنبرعلي خان ته امر کړی دی، چي تاسي جلالتماب ته ټول بیان وکړي او تاسي به هم هغه ته د خپلو غوښتنو او نیتونو په باره کي تفصیل ور کړئ او هغه به موږ ته ووایي. (هغه کتاب، ص: ۲۸- ۲۹)

په همدغو شپو، ورځو کي د کندهار واکمن سردار کهندل خان هم د ایران د پاچا دربار ته یو لیک واستاوه او په هغه کي یې ورته ولیکل، چي زه ستاسي تابع او نوکر یم او چي تاسي خپل نوکر ته هر امر کوئ، هغه به پر سر او سترګو عملي کېږي. کهندل خان د ایران پاچا ته ولیکل چي ما خپل پیغام د محمدحسین خان په لاس در لېږلی دی. هغه هم یو شریف سړی او ستاسي له وفادارو نوکرانو څخه دی او چي هغه ته زما په برخه کي هر څه امر وکړئ، هغه به یې په ډېره امانتداري ما ته را ورسوي او ستاسي له غوښتني سره سم به عمل کوو. (هغه کتاب، ص: ۳۰)

وروسته یې د عزیزمحمد خان په لاس دغه ته ورته پیغام ور واستاوه او په هغه کي یې هم خپل ځان د ایران د پاچا نوکر بللی او ورته لیکلي یې وه، چي تاسي چي هر ډول تړون یا موافقتنامه غواړئ، هغه په داسي ټینګو الفاظو ولیکئ، چي بیا غور کولو او تعدیلولو ته هیڅ ضرورت پیدا نه سي. (هغه کتاب، ص: ۳۰- ۳۱)

د ایران پاچا محمدشاه قاجار د وروستي لیک په جواب کي ورته ولیکل چي عزیزمحمد خان زموږ دربار ته را ورسېدی او ستاسي لیک یې، چي ستاسي وفاداري ور څخه څرګنده وه، را ورساوه. تاسي جلالتماب چي کومه اعلامیه غوښتې وه، موږ هغه په خپل شاهي مهر او لاسلیک در ولېږله.

محمدشاه قاجار لیکلي وه چي د ایران دربار ته ستاسي جلالتماب تابعیت او اطاعت څه نوې خبره نه ده، ځکه چي تاسي له ډېري پخوا زماني څخه د ایران د مشهوري پاچهي په قبایلو پوري اړه لرئ او موږ به ستاسي د دغه تابعیت او وفادارۍ په بدل کي ډېر زیات احسانونه در سره وکړو.

محمدشاه زیاته کړې وه چي موږ که خدای کول، ډېر ژر د خراسان د سیمو او هرات پر لور

لښکرکښني کوو او دا ضروري ده چي تاسي جلالتماب به د خپلو پوځونو سره هلته حاضر یاست. زموږ د ښکمرغه پوځونو له رسېدلو سره به تاسي هم را سره یو ځای سئ او په عملیاتو کي به برخه را سره واخلئ.

د ایران پاچا د همدغو لیکونو په تعقیب، د یوه تړون مسوده ترتیب کړه او په پای کي په تهران کي د روسیې سفیر کونټ سیمونیچ د تضمین له پاره مهر او لاسلیک کړه. د روسیې سفیر ولیکل چي زه د ایران په دربار کي د روسیې د سفیر په حیث د ایران د پاچا اعلیحضرت محمدشاه او د کندهار د سردار کهندل خان تر منځ د دغه تړون د شرایطو د عملي کېدلو تضمین کوم.

۱: د ایران پاچا به پر تخت باندي د کښېنستلو راهیسي د کندهار د سردارانو د خدمتونو په بدل کي د هرات ولایت هغوی ته د انعام په توګه سپاري.

۲: هغه علاقې او قبایل چي اوس حاضر د کندهار د سردارانو تابع دي، هغه به د دوی په لاس کي وي او دوی ته به نه څوک تاوان رسوي او نه به حمله ور باندي کوي.

۳: د ایران حکومت به د سردارانو له لویو او وړو متبوعه قبایلو په چارو کي هیڅ ډول مداخله نه کوي او نه به دوی ته داسي خدمات سپاري، چي د دوی له چارو او ژوند سره اړه نه لري او د ایران حکومت به په افغانانو پوري تړولي مربوطي چاري د کندهار سردارانو ته سپاري.

۴: شهزاده کامران او د هغه وزیر یارمحمدخان به د ایران په شوراګانو کي له برخي اخیستلو څخه محروم وي.

۵: که شاه‌شجاع، انګرېزان او یا د کابل امیر د کندهار د سردارانو په مقابل کي هر ډول خصمانه عمل وکړي، نو د ایران شاه به د هغوی مرستي ته حاضرېږي.

۶: که چیري د کهندل خان زامن یا ورونه له مرستندویو پوځونو سره شاهي کمپ ته راسي، نو له هغوی سره به هیڅ ډول بد سلوکي نه کیږي او د دوی او د دوی د ملګرو شتمنیو ته به هیڅ ډول تاوان نه رسېږي. له دوی څخه به هیڅ یو نه بندي کیږي او نه به د یرغمل په توګه ساتل کیږي. پرته د کهندل خان له زوی څخه، چي هغه به د شاه په خدمت کي حاضر وي.

۷: د کندهار سرداران به دوولس زره پوځیان او دوولس توپونه د هرات د قشلې له پاره برابروي او پیسې او راشن به یې هم دوی ور کوي او له شاه سره به د ضرورت په وخت کي مرستي ته تیار وي.

۸: کله چي دا تړون کندهار ته ورسېږي او هلته لاسلیک سي، نو محمدعمر خان به سمدستي د

شاه حضور ته لېږل کېږي.

۹: کله چي دغه شهزاده د ایران د شاه دربار ته ورسېږي، نو بیا به د ایران حکومت د کندهار سردارانو ته لازمه اندازه پیسې، د آسونو سامانونه او توپونه ور کوي. سردار مهردل خان به له زرو آسونو سره د شاه کمپ ته استول کیږي. کله چي شهزاده د ایران دربار ته ولېږل سي او د سردارانو او د ایران د شاه تر منځ تړون لاسلیک سي، نور به له سردارانو څخه هیڅ غوښتنه نه کیږي او یوازي به پوځي خدمت ته حاضر وي.

که چیري محمدشاه د دغه تړون له موادو څخه د کومي مادې په عملي کولو کي پاته راغئ او یا یې له تړون څخه تېری وکړ، نو زه د روسیې د حکومت د استازي او مختار وزیر په حیث وظیفه لرم، چي د ایران پاچا به د تړون عملي کولو ته مجبوروم. (کوریس پانډېنس، ص: ۱۱۹- ۱۲۰)

دوست‌محمد خان په دې پوهېدی، چي که ایران، روسیه یا بل هر څوک له ده سره مرسته کوي، نو په عوض کي به یو څه یا ډېر څه ور څخه غواړي؛ ځکه چي هیڅوک له خپلو گټو پرته بل څه په نظر کي نه لري. هغه په دې پوهېدی چي له داخلي او خارجي غلیمانو سره د جگړې او مبارزې تر ټولو اساسي او مطمینه لار پر خپل بازو باندي تکیه او اعتماد دی. دوست‌محمد خان دومره خطرناک او غښتلي دښمنان درلودل او دومره بې‌دوستانو پاته وو، چي په چا یې د یوې عادي مشورې باور هم نه سو کولای. د هغه تر ټولو نیژدې دښمن سیکهان ول، چي تازه یې پېښور لاندي کړی او د هغي سیمي پښتانه یې په غوسه کړي او مذهبي جذبات یې پر ښور راغلي ول. سیکهانو له څه باندي دوو سوو کالو راهیسي له مسلمانانو سره د دښمنیو او جنگونو سابقه درلوده او د هغوی په مقابل کي د افغانانو لمسول او له ځان سره ملگري کول ډېره گرانه خبره نه وه. د سیکهانو په مقابل کي باید جهاد اعلان سوی وای او دې مذهبي جنگ فتوا ته ضرورت درلود.

امیر ملایانو ته مراجعه وکړه او هغوی ورته وویل چي هغه د جهاد د اعلانولو حق لري، خو دا حق یوازي د امیرالمؤمنین سره خوندي دی. امیر ته دا کار چنداني ستونزمن نه ایسېدی. له ملایانو څخه یې د امیرالمؤمنین په نوم فتوا واخیستله او ویل کیږي چي د احمدشاه بابا په څېر یې د غنمو وږي په لنگوټه کي ورته وټومبل او د امیر په نوم یې ونوماوه.

له سیکهانو سره جگړه د امیر شخصي مدعا او جنگ نه وو، بلکي د اسلام او افغانستان؛ په تېره بیا جلال‌آباد څخه، چي د رنجیت سینگهه د فتوحاتو ور پسې هدف وو، دفاع کول وه. امیر د دې جنگ له پاره د عسکرو او پوځیانو د برابرولو ستونزه نه درلوده او یوازني او لویه ستونزه یې د پیسو نه

لرل او تشه خزانه وه. هغه د کابل او شاوخوا شتمن خلک، سوداګر، صرافان او هندوان د پیسو ور کولو ته مجبور کړل او ویل کیږي، چې له ډېر زیات زور څخه یې کار واخیست. په پېښور کې یې له سلطان‌محمد خان سره تماس ونیوی او هغه ته یې اطمینان ور کړ، چې د رنجیټ سینګهـ د ماتولو په صورت کې به پېښور بیرته هغه ته سپاري. سلطان‌محمد خان د خپل ورور پیغام ته په ظاهره لبیک ووایه، خو که یې په زړه کې اعتماد نه وي ور باندي کړی، نو ځکه یې حق درلود چې بارکزیو ورونو په وروستیو څو کلونو کې له یوه بل سره ډېري زیاتي وعده خلافی کړي وې.

## له دوست‌محمد خان سره د سلطان‌محمد خان خیانت

دوست‌محمد خان له کابل څخه رنجیټ سینګهـ ته لیک واستاوه او هغه ته یې ولیکل چې پېښور او د هغه ښار شاوخوا علاقې پریږدي او که د ده غوښتنه نه مني، نو د مجاهدینو یو لوی لښکر به ور باندي راولي، چې پرته له شهادته بل څه نه غواړي او ستا د قلمرو په هره برخه کې به دې ګډوډي او ښورښونه درته جوړ کړم.

رنجیټ سینګهـ په جواب کې ورته ولیکل چې موږ د ډېرو یاغي مشرانو سرونه مات کړي او ډېر دښمنان مو د اوسپني په قفسونو کې بندیان کړي دي. که دوست د خپلي طمع او حرص په اساس جنګ غواړي، نو له خپل واړه پوځ سره دي راسي، موږ ورته تیار یو. (مکنتایر، ص: ۱۷۳)

دوست‌محمد خان له کابل څخه د خپل پوځ سره روان سو او په لاره کې هر ځای مجاهدین ور سره یو ځای کېدل او کله چې د خیبر له درې څخه ووت، نو د لښکر او غازیانو شمېر یې زیات او کم سلو زرو تنو ته ورسېدی.

رنجیټ سینګهـ ډېر مخکې دې حملې ته تیاری درلود او له خپل لښکر سره یې مخې ته را وتلی وو. هغه د جمرود په سیمه کې خپل پوځیان او توپونه د امیر پر لښکرو باندي د آس د نعل په څېر را وګرځول او له دریو خواوو یې لاري ورته بندي کړې. ضمناً یې خپل طبیب او تر ټولو نیژدې سلاکار فقیر عزیزالدین او امریکایي جنرال جوسیاهارلان ته له امیر سره د سولې د خبرو او په ضمن کې د هغه په کمپ کې د بې‌اتفاقی اچولو وظیفه ور کړه. هارلان چې څو کاله مخکې یې په کابل کې د شاه‌شجاع له پاره د فعالیت کولو په وخت کې له نواب جبار خان سره څه باندي یو کال تېر

کړی او له دوست‌محمد خان سره يې هم ليدلي ول او په فارسي يې رواني خبري کولې، د دې کار له پاره تر بل هر چا مساعد وو. هارلان د سلطان‌محمد خان کمپ ته ورغی. هغه پوهېدی چې سلطان‌محمد خان يو جاه طلبه سړی دی او له خپلو ورونو سره يې څو ځله مخکي خيانتونه کړي دي او د ده سره په دسيسه کي برخه اخيستلای سي. هارلان سلطان‌محمد خان ته وويل چې له دوست‌محمد خان سره په ملګرتوب کي به هيڅ شی تر لاسه نه کړي، ځکه چې هغه هر څه د خپل ځان له پاره غواړي او که له رنجيت سينګهـ سره ملګری سي، هغه به يې ونازوي او چې څه غواړي هغه به ور کړي. د هارلان خبرو پر هغه باندي سمدستي خپله اغېزه وکړه. په خپله هارلان ليکي:

"پېښور ته د دوست‌محمد خان د دغه سفر په وخت کي ما له رنجيت سينګهـ سره خدمت کاوه. زه هغه د امير د کمپ له پاره د سفير په حيث وټاکلم. ما د امير ورونه د هغه پر ضد ولمسول او د هغه له ورځ په ورځ زياتېدونکي قدرت څخه مي وبېرول. په دې توګه مي په هغوی کي د کورني اختلاف اور بل کړ. ځکه چې ما له دوی سره پېژندل او ټولي دښمنۍ او مخالفتونه يې راته معلوم ول. ما هغوی ته وويل چې له رنجيت سينګهـ سره د هغوی ملګرتوب ډېري مادي ګټي ورته لري. ما د امير ورور سلطان‌محمد خان ته وويل چې که د شپې د امير له کمپ څخه يو ناڅاپه بېل سي، نو لس زره روپۍ تنخوا به درته مقرره سي. سلطان محمدخان زما سره د رنجيت سينګهـ خېمې ته ولاړ اود ده ملګري غرونو ته پر شا سول. کله چې د امير له کمپ څخه دونه لويه قوه پرته له دې چې دی دې مخکي خبر وي، بېله سوه، نو د ده په قوه کي هم ګډوډي راغله. پرته له دې چې يا دې د شاته تللو له پاره نغاره ووهي او يا دې تروم ورته ووهي، عسکر يې په نيمه شپه کي سره تيت او پرک سول. د ورځي له پيل سره د امير هغه قوه چې شپږ ساعته مخکي يې شمېر پنځوس زره تنو ته رسېدی او لس زره آسونه ور سره ول، له منځه تللې وه. (هارلان، ص: ۱۲۴-۱۲۵)

کله چې دوست‌محمد خان خبر سو، چې هارلان د سلطان‌محمد خان کمپ ته ورغلی دی، نو پوه سو چې بيا يوه بله دسيسه روانه ده؛ خو په دغه ترڅ کي د سلطان‌محمد خان ليک ورته را ورسېدی، چې هارلان وژل سوی او شتمني يې لوټ سوې ده. د دوست‌محمد خان په پوځ کي خوشالي پيل سوې، خو سبا ته معلومه سوه چې هغه ژوندی دی او د امير کمپ ته روان دی. دا هم معلومه نه سوه، چې دا ليک سلطان‌محمد خان ليکلی او که جعلي وو.

بله ورځ په خپله هارلان د امير دوست‌محمد خان خېمې ته ورغی او امير ورته وويل چې له ده سره سل زره پوځيان او مجاهدين ملګري دي. هارلان ورته وويل چې که د پنجاب واکمن وغواړي،

چي ملېشه را ټول کړي، نو ستا لس چنده ملېشه برابرولای سي، مګر خبره د منظمو پوځيانو ده. ته بايد د پوځ په مقابل کي پوځ ولرې. ستا مجاهدين به د هغه د پوځونو په مقابل کي داسي تري تم سي، لکه لمر چي پر پرخه را وخيژي.

هارلان او فقير عزيزالدين څلور ورځي د امير او رنجيت سينګهـ تر منځ تګ راتګ وکړ او د امير په کمپ کي يې پيسې او طلاوي ووېشلې او هره ورځ يې يو نوی درز پيدا کړ. بالآخره هارلان او نواب جبارخان د امير په کمپ کي سره وليدل. امير نواب ته وظيفه ور کړې وه، چي له ده څخه د سلطان‌محمد خان د بېلېدلو مخه ونيسي او هغه ته ووايي، چي د باجوړ د ملېشو لس زره کسيزه قوه د ده له پوځ سره يو ځای کړي. هارلان او نواب دواړه د سلطان‌محمد خان کمپ ته ولاړل او دواړو مخالف هدفونه تعقيبول؛ خو د دوی پخوانۍ دوستۍ ته هيڅ تاوان نه رسېدی او اصلا څوک نه پوهېدی، چي څوک د چا له پاره کار کوي. هارلان په دې باوري وو چي نواب جبار خان له خپل ورور سره خيانت کولو ته تيار دی.

په داسي حال کي چي د دواړو خواوو پوځيان جنګ ته لېواله ول، امير دوست‌محمد خان ته خبر ورسېدی، چي د رنجيت سينګهـ پوځونو د هغه پوځ محاصره کړی دی او شاوخوا يې خپل درانه توپونه ورته ځای پر ځای کړي دي. امير دوست‌محمد خان خپل پوځي سلاکاران ور وبلل او هغوی ځينو ورته ووېل، چي بايد بېرته پر شا سو او ځينو ويل چي بايد وجنګېږو، هر څه چي پېښېږي، هغه به پېښ سي. مګر دوست‌محمد خان پوهېدی چي جنګ يې له وخته بايللی دی. له هغه سره دا فکر پيدا سو، چي له رنجيت سينګهـ سره يوه جنګي حيله وکړي او د ده ګران طبيب او سلاکار فقيرعزيزالدين، چي رنجيت سينګهـ له هغه پرته ژوند نه سي کولای، ونيسي او له رنجيت سينګهـ څخه امتيازات واخلي. ده غوښتل چي هم خپل کار وکړي او هم د استازو د نيول کېدلو بدنامي سلطان‌محمد خان ته ورسېږي. هغه يې خېمې ته را وغوښت او په قرآن يې قسم ور سره وکړ چي چا ته به حال نه وايي او د رنجيت سينګهـ دواړه استازي به ور سره واخلي او د کابل پر لور به حرکت وکړي. سلطان‌محمد خان په ظاهره ور سره ومنله، خو په زړه کي پوهېدی، چي دا کار يې له هري خوا په تاوان دی.

هارلان سلطان‌محمد خان ته ووېل چي په شپه کي له خپلو لسو زرو پوځيانو سره له امير څخه بېل سي او هغه يې هم په قول وکړه او له هارلان او فقير سره د رنجيت سينګهـ کمپ ته روان سو.

امیر په شپه کې د کابل پر لور حرکت وکړ. د کمپ ډېره برخه يې چور سوه. دی په زړه کې خوشاله وو، چې له رنجيټ سينگهـ سره يې چل کړی دی. کله چې يې د سلطان‌محمد خان او د هارلان په باره کې پوښتنه وکړه، نو پوځيانو يې ورته ووېل چې هغه ډېر د وخته له رنجيټ سينگهـ سره يو ځای سوی دی. (مکنټاير، ص: ۱۷۳- ۱۸۰)

## د جمرود جنگ

د امير دوست‌محمد خان د وروستۍ ماتې زخم هيڅ جوړ نه سو. هغه ماته منلای نه سوای. د (۱۸۳۷م.) کال په پيل کې امير له خپلو سلاکارانو او مشرانو سره غونډه وکړه او له هغوی سره يې دا خبره را منځ ته کړه، چې د رنجيټ سينگهـ جنرال هري سينگهـ د جمرود قلا نيولې ده او دا خبره افغانانو ته د منلو نه ده. هغه يو ځل بيا له سيکهانو سره د مخامخ جگړې فيصله وکړه. هغه دا ځل په خپله جنگ ته روان نه سو، بلکې خپل پنځه زامن؛ سردار محمدافضل خان، سردار محمداکبر خان، سردار محمداعظم خان، سردار غلام‌حيدر خان او سردار محمداکرم خان يې واستول او ميرزا عبدالسميع خان يې د ټولو د سلاکار او د کارونو د څارونکي په حيث ور سره واستاوه. د امير پوځيانو په خيبر کې قواوې جمع کړې او د جمرود پر قلا يې، چې سيکهانو نيولې وه، حمله وکړه. جگړې څو ورځې دوام وکړ او محاصره سويو سيکهانو له هري سينگهـ څخه، چې په پېښور کې له پوځي قواوو سره پروت وو، د مرستې غوښتنه وکړه. هري سينگهـ له لسو زرو عسکرو او شلو توپونو سره ميدان ته ورسېدی. ميرزا سميع خان او د امير زامنو د خيبر پر لور مارش وکړ. کله چې يې وليدل چې هري سينگهـ نه سته، نو د جمرود پر قلا يې د توپونو د گوليو باران جوړ. په دوو دريو ورځو کې يې د قلا تقريباً ټول دفاعي ځايونه تخريب کړل او نيژدې وو چې قلا فتح کړي، چې د اپرېل پر دېرشمه سهار وختي هري سينگهـ د جنگ ميدان ته ورسېدی.

د نايب امير اخندزاده، ملا مومن خان او زرين خان مورچلونه يو په بل پسې مات سول او مشران يې ډېر سخت ټپيان سول. هغه قوتونه چې حمله نه وه ور باندې سوې، سره وپاشل سول او د امير زامن او نواب جبار خان يې له څو تنو ملگرو سره پر ميدان پرېښودل. مېسن ليکي چې محمدحيدر خان په دغه وخت کې تنکی هلک وو او په ژوند کې يې د جنگ ميدان نه وو ليدلی، په مورچل کې پټ سو او ژړل يې. محمدافضل خان له خپلو دوو زرو سپرو سره په ميدان کې ودرېدی او خپل

مورچلونه یې ټینګ وساتل. هري سینګهـ د هغه خوا ته توجه وکړه؛ خو څرنګه چې د هغه مقاومت یې ماتولای نه سو، نو ناڅاپه یې پر هغو ورو غونډیو باندي چې پر میدان یې ګولی اورولې، هجوم ور ووړ. سیکهانو ته د افغانانو څوارلس توپونه په لاس ورغلل او داسي ښکارېدله، چې میدان سیکهانو وګاټه. سیکهانو د افغانانو مات سوي عسکر تعقیبول، چې په دغه وخت کي د شمس الدین خان له قواوو سره، چې تازه د جنګ میدان ته داخل سوی وو، مخامخ سول. ډېر زیات هغه عسکر چې له جنګه پرته تښتېدلي ول، له شمس الدین خان سره ملګري سول او د سیکهانو ورځ بده سوه.

په دغه وخت کي د سیکهانو یوه وړه ډله هغي غونډۍ ته پورته سول، چې اکبرخان مورچل پکښې نیولی وو. د دواړو خواوو تر منځ جګړه ونښته او د اکبرخان ورور سردار محمداکرم خان، چې د جنګ نارې واورېدلې، له هغي ګوښې ځخه چې هیڅوک نه پوهېدل، هغه به هلته پټ وي، د سردار اکبرخان مرستي ته ورغی. د دواړو کسانو د قوي شمېر سلو تنو ته رسېدی او د سیکهانو یرغلګره قوه یې پر شا کړه. په دغه وخت کي چې د سیکهانو قوې یوې او بلې خوا ته ځغستل او هري سینګهـ کنټرولولای نه سوای، په خپله مرګاني ټپي سو او خپلو عسکرو د جنګ له میدانه یووړ. اکبرخان پر خپلو عسکرو ږغ وکړ، چې مخ د پېښور پر خوا یرغل وکړي. په دغه وخت کي میرزا سمیع خان راغی او اکبر خان ته یې ژړل او زارۍ یې کولې، چې دا ټول بری د هغه د دعاوو برکت وو. نور مخته مه ځه.

مېسن وایي: میرزا سمیع خان د جنګ له پیل کېدلو سره سم په یو غار ننوتلی وو. له وېري یې ساندي ویلې، سینه یې په څپېړو وهله، ږیره یې شکوله او سر یې له مځکي واهه. د جنګ له ختمېدلو وروسته یې ویل، چې ده دعاوي کولې، خدای ته یې زارۍ کولې او د افغانانو دغه بری د ده د دعاوو برکت وو. افغانانو د هغو څوارلسو توپونو له جملې څخه، چې سیکهانو ور څخه غنمیت کړي ول، یوولس توپونه بیرته تر لاسه کړل او د سیکهانو څخه یې نور درې توپونه هم واخیستل. له سیکهانو څخه په اولجه کړیو توپونو کي هغه لوی توپ هم شامل وو، چې جوړه یې په غزني کي وه او زبرزنګ نومېدی. افغانانو بری تر لاسه کړی وو. سیکهانو به لا خپله ماته نه منله، خو د هري سینګهـ په څېر جنرال یې له لاسه ور کړی وو. هري سینګهـ په هغه ورځ مړ سو او په هغه ماښام یې وسوځاوه. هري سینګهـ رنجیټ سینګهـ ته ډېر ګران وو. هغه یې د وړوکوالي ملګری وو او په لویوالي کي یې تر ټولو اعتمادي او زړهور قوماندان وو. رنجیټ سینګهـ د هغه مرګ ډېر سخت خپه کړ.



د جمرود کلا

په هغه ورځ د اکبرخان او د هغه د اکا نواب جبار خان تر منځ پر پېښور باندې د حملې کولو پر سر ډېر سخت جنجال منځ ته راغی. خو اکبرخان لا د پېښور د نیولو په باب خپله فیصله نه وه صادره کړې، چې سیکهانو ته یوه ډېره لویه تقویتي قوه را ورسېده او افغانان مجبور سول، چې د کابل پر لور حرکت وکړي. (مېسن، دریم جلد، ص: ۳۸۴-۳۸۶)

د هري سینگهـ د وژل کېدلو په باب راز راز ریپورټونه موجود دي. عمومي عقیده پر دې ده، چې هري‌سینگهـ د اکبرخان په توره قتل سوی دی. اروپایي مؤرخین تش د هغه د قتلېدلو خبره کوي او د چا نوم نه یادوي. موهن لال خو د اکبرخان سره د خپل مخالفت له امله، په دې جنگ کې د اکبرخان د تېښتې او د افضل خان د توري خبرې کوي. خو اکبرخان هم د انگرېزانو په مقابل کې او هم په داخل کې خپل زړه‌ورتوب ثابت کړی او د دښمنانو په مخالفت او تبلیغ څه نه ور څخه کمېږي.

حاجي خان کاکړ چې امیر دوست‌محمد خان د پښتنو سیمو؛ په تېره بیا له باجوړ څخه د عسکرو د راغونډولو له پاره لېږلی وو، پنځه، شپږ زره کسان چې د باجوړ میرعلم خان، د مومندو مشر سعادت خان او د کونړ د پښت د سیمې سید بابا جان پکښې شامل ول، را غونډ کړل. په هغه سیمه کې سیکهانو په یوه کوچنۍ قلا کې مرکز نیولی وو، چې د لهناسینگهـ تر قوماندې لاندې زرو سپرو یې ساتنه کوله. حاجي خان پر دغه قلا باندې نه د حملې کولو او نه پر هغه لاره باندې د تېرېدلو جرأت کاوه او په غونډېو کې پټ روان وو. سردار لهناسینگهـ احوال ورته وکړ، چې که نر یې میدان

ته را ووځه، په غونډيو کې پټ پټ ولې تېرېږې. له بلې خوا اکبرخان څو څو ځله د مرستې غوښتنه ور څخه وکړه، ځکه چې هغه غوښتل چې د سیکهانو قواوې تعقیب کړې او پېښور ور څخه ونیسي. خو حاجي خان په یوه او بله پلمه ځان وځنډاوه او ورته و یې لیکل چې که زه ستا پر لور در روان سم، په لاره کې به مې ټول سړي تباه سي او یوازې دښمن ته به یې گټه ورسېږي. په دغه وخت کې سردار سلطان‌محمد خان او سردار پیرمحمد خان دواړه په لاهور کې د رنجیټ سینگهـ په دربار کې ناست ول او حاجي خان او د هغه ملگري میرعلم خان ته یې ټولې هغه تحفې، چې له رنجیټ سینگهـ څخه یې تر لاسه کړې وې، ور ولېږلې او یوه آوازه خو لا وایي، چې حاجي خان له لهناسینگهـ څخه هم پیسې اخیستې وې.

په هر صورت د حاجي خان قوه د ضرورت په وخت کې اکبرخان ته و نه رسېده او یوازې هغه وخت یې ځان جمرود ته ورساوه، چې سیکهانو ته کافي زیاته مرستندویه قوه رسېدلې وه او اکبرخان مجبور وو، چې بیرته جلال‌آباد ته پر شا سي.

په دې جنگ کې یوازې حاجي خان نه بلکې د امیر یوه ایراني پوځي سلاکار او منصبدار عبدالصمد هم خیانت وکړ او د جنگ په ټوله جریان کې پټ وو. ضمناً ویل کیږي چې د نواب صمدخان زوی سردار محمدعثمان خان خپلې قواوې د یوې تپې شا ته غلې کړې وې او د مېسن په قول یې خپلو افسرانو ته ویلي ول، چې هر څوک چې په دې جنگ کې برخه اخلي، هغه به زن طلاق وي. (هغه کتاب، ۳۸۹- ۳۹۱)

امیر دوست‌محمد خان عبدالصمد له کابله وایستی. هغه بخارا ته ولاړ او امیر د هغه او د هغه د ملگرو ټوله شتمني او غیرمنقول جایداد غصب کړ. وروسته حاجي خان کاکړ هم کابل ته ورسېدی. امیر ته یې ډېرې زارۍ وکړې او حتی خپله بگړۍ یې د هغه په پښو کې واچوله، خو امیر هغه و نه باخښنه او حاجي خان مجبور سو، چې د توبې سیمې ته ولاړ سي او کورنۍ او عیال یې وروسته ور پسې ورغلل. (هغه کتاب، ص: ۳۹۷)

هارلان ادعا کوي چې په دې جنگ کې یې په خپله برخه درلودلې ده، خو نور متون؛ په تېره بیا افغاني متون، د هغه چنداني نوم نه یادوي. په دې جنگ کې تقریباً دوه زره سیکهان او زر تنه افغانان ووژل سول. په دې جنگ کې هر چا د برې ادعا کړې ده. حتی میرزا سمیع خان چې د مېسن او هارلان په قول، په یو غار کې پټ وو او زارۍ یې کولې او ژړل یې، هم ادعا کوله چې دا ټول برې

د ده د ژړا او دعا برکت وو. اکبرخان باید د ټولي فتحي افتخار څان ته اخیستی وي، چي د افغاني قواوو قومانده يې پر غاړه وه. خو تر ټولو د هارلان آواز جګ وو او هغه ویل چي رنجيټ سينګهـ ‌به اوس له قهره تاوېږي او وايي به چي دا ټول د هارلان کار دی او هغه زما څخه خپل کسات واخيست. (مکنتاير، ص: ۱۹۳- ۱۹۴)

سیدقاسم ریشتیا (ص: ۶۵) او سراج التواریخ (جلد اول، ص: ۱۲۶) له سیکهانو سره دا جنګونه په سر چپه ډول راوړي او دواړه وايي چي هري سينګهـ د (۱۸۳۵م.) کال په جنګ کي ووژل سو او د (۱۸۳۷م.) کال په جنګ کي چي سراج التواریخ يې لا په (۱۸۳۸م.) کي بولي، چي اصلاً کوم جنګ سوی نه دی، دوست‌محمد خان له جمرود څخه زړه‌ماتی کابل ته ستون سو. په داسي حال کي چي د ټولو تاریخونو په حواله په (۱۸۳۵م.) کال کي د دواړو خواوو تر منځ له سره جنګ سوی نه دی او د (۱۸۳۷م.) کال په جنګ کي په خپله هارلان وايي چي د افغانانو په ګټه يې برخه درلوده. هغه به څرنګه دوست‌محمد خان غولاوه او په دې جنګ کي دوست‌محمد خان د سره برخه نه درلوده او د پوځي قواوو ټول مشرتوب د اکبرخان په لاس کي وو. مهمه خو لا دا ده چي مرحوم کهزاد د جمرود وروستي جنګ ته، چي هري سينګهـ پکښي ووژل سو، ښځي اشاره نه کوي. مرحوم غبار د نورو تاریخي متونو په خلاف، چي وايي اصلي جنګ له سهاره تر ماپښين پوري دوام وکړ، وايي چي دې جنګ دوولس ورځي دوام وکړ او بالآخره هري سينګهـ د اکبرخان په توره ووژل سو او د سیکهانو پوځ تر پېښور پوري په تېښته ولاړ.

مرحوم غبار د خپل معمول سره سم ادعا کوي، چي افغاني قواوو غوښتل چي پر لواړګي او د پېښور پر ښار باندي حمله وکړي او د سیکهانو پوځونه له پېښور څخه د وتلو په تکل کي ول، چي نواب جبار خان د خلکو پر احساساتو باندي سړې اوبه تويي کړې او هغوی يې له پرمختګ څخه منع کړل او امیر ته يې وليکل او له هغه څخه يې د پېښور پر لور د پرمختګ په باب هدايت وغوښت. امیر هم په تلوار فیصله وکړه او د افغانانو فاتح پوځ ته يې د بیرته ستنېدلو امر وکړ او د افغانانو ويني هسي بې‌ځايه تويي سوې. (غبار، ص: ۵۱۹)

مرحوم غبار ته په ټول درناوي، که په هغه وخت کي د امیر داخلي ستونزي، له هغه سره د انګرېزانو د حملي وېره، له هغه سره د کندهاري سردارانو رقابت او مخالفت او له هغه سره د پېښور د سردارانو خیانتونه او دښمني او د ده د خپل پوځي او مالي قوت له سیکهانو سره مقايسه کړو، نو بیا یو څه بهتر قضاوت کولای سو. له بلي خوا امیر ته له جمرود څخه د نواب جبار خان د ليک لېږل او د

امیر له خوا بیرته جواب اخیستل، لږ تر لږه څلور ورځي وخت نیسي. په داسي حال کي چي ټول تاریخي متون وايي چي سیکهانو د هري سینګهـ د وژل کېدلو په سبا، پېښور ته ډېره زیاته قوه ولېږله او که د افغانانو قواوو د کابل پر لور حرکت نه وای کړی، ښايي ډېر سخت تلفات یې ور کړي او ماته یې هم په برخه سوې وای.

الیکزانډر برنس، چي په ۱۸۳۲ کال کي له هند څخه بخارا ته د سفر په لاره کي په پنجاب او کابل کي تم سوی دی، نو د دواړو ملکونو پوځي او مالي قوت ته یې یوه اشاره کړې ده او د کابل په باب لیکي، چي د امیر دوست‌محمد خان کلنی عاید څه کم دوه میلیونه روپۍ یا اتلس لکه روپۍ دی. امیر نهه زره ښه تکړه سپاره عسکر او دوه زره پیاده پوځیان او دوولس توپونه لري. (برنس، بخارا، دوهم جلد، ص: ۳۳۰)

د پنجاب په باره کي لیکي چي د رنجیټ سینګهـ پوځ تقریباً (۷۵) زره تنه دی. له دې څخه یې (۲۵) زره منظم پیاده عسکر دي، چي پر اروپایي طرز روزل سوي او په بشپړه توګه د هند له پوځ سره سیالي کولای سي. منظم سپاره عسکر یې (۵۰۰۰) تنه دي او (۱۵۰) توپونه لري او غیرمنظم سپاره یې څه کم پنځوس زره (۵۰۰۰۰) تنه دي. دغه سپاره ګورچورا یا آس سوار بلل کیږي، چي د جنګ په وخت کي خدمت ته حاضرېږي او په نغدو پیسو او یا د مځکي په بدل کي خدمت کوي. دا ډېر تکړه سپاره دي او د خدمت په وخت کي ډېر ښه کار ور څخه اخیستل کیږي.... برنس لیکي چي د پنجاب د طبیعي پیداوارو او د هغې سیمي د اوسېدونکو له مخي ویلای سو، چي دا سیمه په مستقله توګه ژوند ته دوام ور کولای سي. د پنجاب خالص کلنی عاید پنځه ویشت میلیونه روپۍ دی. په دې کي یوازي یودېرش لکه روپۍ له کشمیر څخه لاس ته راځي، چي په دې کي هغه لس لکه روپۍ شاملي نه دي، چي د کشمیر دفاعي لګښتونو ته تخصیص سوي دي. مګر هغه ایالت په خپله یوه پاچهي ده او د دغه مقدار دوه چنده عاید ور څخه تر لاسه کېدلای سي. برنس لیکي چي یوه ګورنر په دې وروستیو وختونو کي درې کاله له کشمیر څخه یودیرش لکه روپۍ مرکز ته واستولې؛ مګر له هغه ایالت څخه یې تر دېرش لکه زیاتي روپۍ او مالونه اختلاس کړي او ایستلي ول. رنجیټ سینګهـ د هغه ټول مالونه ور څخه غصب کړل. مګر د هغه پر ځای ټاکل سوي کشمیري پنډت تر پخواني ګورنر زیاتي پیسې اختلاس کړې. (هغه کتاب، ص: ۲۸۶- ۲۸۸)

د رنجیټ سینګهـ په پوځ کي ډېره مهمه برخه د هغه توپخانه وه، چي ورځ تر بلي یې بهتره کوله.

رنجیت سینګهـ لیدلي ول، چې د بریټانیې توپخانه په جنګ کې څومره اغېزمنه ده، نو د خپل پوځ د توپچي برخي غښتلي کولو ته یې ملا وتړله. په هغه پوځي مانورو کې چې د بریټانیې د ګورنرجنرال پوځي سکرتر ډبلیو جي اوزبورن هم پکښې حاضر وو، رنجیت سینګهـ خپل نهه پونډه توپونه وآزمېیل او کله چې یې د هغوی نښان ویشتل او مؤثریت ولیدل، نو یو ناڅاپه یې له خوښۍ ناره وکړه، چې کشکي دوست‌محمد حاضر وای او دا توپونه یې لیدلي وای. رنجیت سینګهـ په خپلو کارخانو کې هم توپونه تولیدول او یوه امریکایي صاحب منصب الیکزانډر ګارډنر یې توپچي عسکر ورته روزل. (والر، ص: ۱۲۵)

اوس نو چې له دې مالي او پوځي قوت سره د انګرېزانو څرګند ملاتړ هم ملګری سي او دا هم ور سره زیاته کړو، چې رنجیت سینګهـ په دغه وخت کې هیڅ ډول داخلي مشکلات نه درلودل او لږ تر لږه پنځو لایقو اروپایي جنرالانو او د ټیټو رتبو اروپایي صاحب منصبانو یې لا هم په پوځ کې خدمت کاوه، بیا نو ګورو چې دوست‌محمد خان ډېر پر ځای فیصله کړې ده. په فتح قانع سوی او خپل پوځ یې له تباهۍ ژغورلی دی.

الیکزانډر برنس په هغه لیک کې چې د (۱۸۳۷م.) کال د اکتوبر پر پنځمه یې له کابل څخه مکناټن ته لېږلی دی، لیکي چې امیر زما سره په خبرو کې د سیکهانو پر قوت باندي اعتراف وکړ او د پنجاب په باب زما د پرله پسې پوښتنو په جواب کې یې راته وویل چې په دې کې هیڅ شک نه سته، چې دی پر هغه باندي د حملې کولو توان نه لري. امیر وویل چې زما زامن او خلک به د خپل وروستي بري په باب ډېري مبالغې او لاپې وکړي، مګر دا خبره تر لمر روښانه ده، چې زموږ قوت د پنجاب په لسمه هم نه دی او د دې پر ځای چې له سیکهانو سره له سره جګړه پیل کړم، زه به له بریټانیې څخه مننه وکړم، چې که ما ته په دې برخه کې مشوره را کړي، چې له هغوی سره څه لاره غوره کړم. (کوریس پانډینس، ص: ۴۰۷)

## الیکزانډر برنس - Alexander Burnes

الیکزانډر برنس په شپاړس کلنی کې له پوځ سره یو ځای سو او په (۱۸۳۰) کال کې ایله د پنځه ویشتو کالو وو چې د بمبیي ګورنر سرجان مالکم هغه ته، چې لا ضابط وو، وظیفه ور کړه چې هغه آسونه د لاهور واکمن رنجیت سینګهـ ته ورسوي، چې له لندن څخه هغه ته په سوغات کې را لېږل

سوي دي. سرجان مالکم هغه ته ضمناً وظیفه ور کړه، چي په لاره کي د اباسین د جغرافیې په باب هم مفصل معلومات تر لاسه کړي. الیکزانډر برنس د سیند د میرانو په سیمه کي تېر سو او کله چي یې اباسین ته کښتۍ ور خوشي کړه، نو یوه سید، چي د سیند پر غاړه ولاړ وو، لاسونه پورته کړه او په زوره یې ناره کړه، چي سند له لاسه ووت، ځکه چي انګرېز اباسین ولیدی او هغه د سند د فتح کولو لاره ده.

په (۱۸۳۲م.) کال کي ګورنرجنرال لارډ ویلیم بیټینک، برنس د ډاکټر جیرارډ، موهن لال کشمیري او یوه ځوان نقشه‌کښ یا سروې کوونکي محمدعلي په ملګرتوب، د منځنۍ اسیا په سفر واستاوه. برنس د پنجاب، پېښور او جلال‌آباد له لاري کابل ته ورسېدی او هلته یې د امیر دوست محمد خان سره وکتل.

برنس د خپل سفر په پیل کي لاهور ته ولاړ او د لاهور له واکمن رنجیت سینګه سره یې د یوه قدرمن مېلمه په حیث یوه میاشت تېره کړه. برنس له هغې خوا د سوتلیج په سیند کي تېر سو. لودهیانې ته ولاړ او هلته یې له شاه‌زمان او شاه‌شجاع سره ولیدل. شاه‌شجاع ورته ویلي ول، چي که زه بیرته پاچا سوم ځونه به خوشاله یم، چي په کابل کي انګرېزان ووینم او د اروپا او هند تر منځ یو سړک پرانیزم. برنس د هغه په باره کي لیکلي ول، چي هغه تبعید سوی واکمن نه د قدرت د بیرته نیولو قوت او نه یې د ساتلو هوښیاري لري.

برنس د کابل پر لور د حرکت کولو څخه مخکي د پنجاب په باره کي نسبتاً مفصل او هر اړخیز ریپورټ ولیکی. هغه په خپل ریپورټ کي ولیکل چي د پنجاب واکمن پر یوه آباده او سمسوره سیمه باندي، چي پنځه لوی سیندونه پکښې بهېږي، حکومت کوي. د پنجاب واکمن له خپل قلمرو څخه پنځه ویشت میلیونه روپۍ خالص عاید لري او (۷۵) زره پوځ لري، چي پنځه ویشت زره یې پیاده دي. دا عسکر داسي ښه روزل سوي دي، چي بالکل په هند کي پر اروپایي سیستم د روزل سویو عسکرو په څېر دي. پنځه زره یې منظم سپاره او توپچي عسکر دي، چي په (۱۵۰) توپونو سمبال دي. د پنجاب واکمن رنجیت سینګه پر دې برسېره پنځوس زره غیرمنظم سپاره عسکر لري، چي هر وخت خدمت ته تیار ولاړ دي. د ده د پوځ قوت په دې کي دی، چي سپاره عسکر یې ډېر ژر راغونډېږي او په هغه سرعت منظم کیږي. هغه خپل پوځ ته دونه پر وخت تنخواوي رسوي، چي حتی په هند کي د انګلیسیانو کمپنۍ هم سیالي نه سي ور سره کولای. (برنس، بخارا، ص: ۲۸۶-۲۸۷)



الیکزانډر برنس Alexander Burnes

الیکزانډر برنس وروسته پېښور ته ولاړ او د (۱۸۳۲م.) کال د مې میاشت یې په هغه ښار کې تېره کړه. د پېښور له سردارانو سره یې وکتل او د هغوی د بې‌نظمي او کمزوري ادارې په باره کې یې په یوه لنډ ریپورټ کې تقریباً هر څه بیان کړل. دی لیکي:

"د پېښور او کابل مشران سره ورونه، مگر سره دښمنان دي. د کابل قوت تر پېښور ډېر زیات او مستحکم دی، خو د پېښور له سردارانو سره د کندهار سرداران ملگري دي او هغوی نه پر پېښور او نه پر خپل قلمرو باندې د چا یرغل مني. د کندهار او پېښور سردارانو لره موده مخکې د کابل د نیولو تلاښ وکړ. مگر احتمال لري چې یو وخت د کابل واکمن د دواړو سیمو د سردارانو قلمرو تهدید کړي. په هغه صورت کې به د پېښور سرداران له لاهور څخه مرسته غواړي. سیکهـ واکمن ښایي د پېښور له سردارانو سره مرسته وکړي، ځکه چې دوست‌محمد خان هیڅ وخت دا نه خوښوي، چې د پېښور سردار سلطان‌محمد خان دې رنجیت سینگهـ ته کلنی باج ور کړي. سردار سلطان‌محمد خان امید لري چې د خپلې واکمنۍ د زوال په صورت کې به د انگلیسیانو له حکومت څخه مرسته تر

لاسه کړي. دی فکر کوي چي که د خپل قلمرو یوه برخه انګلیسیانو ته ور تسلیم کړي، نو هغه پاته برخه به یې په دغه وسیله وساتي. د کابل په پاچهي کي هیڅ سردار د بریتانیې حکومت ته د سلطان محمد خان په اندازه درناوی نه لري. هر وخت چي د ده قلمرو ته اروپایان ورغلي دي، نو ده هغوی ته د احترام په ښودلو سره خپل اخلاص ثابت کړی دی. که پر ده باندي کومه بدبختي راسي، نو په هغه صورت کي به یا ګټور او یا خطرناک ملګری ور څخه جوړ سي. که څه هم چي شاه‌شجاع الملک د ده له کورنۍ سره جوړ نه دی، خو دی ښایي د هغه د داعیې طرفداري هم وکړي. د سلطان محمد خان ورور پیرمحمد خان به په هره پېښه کي د ده ملاتړ وکړي، مګر هغه نه چنداني فعال سړی او نه د کومي نقشې او پلان سړی دی. د بارکزیو ټوله کورنۍ هم له شاه‌شجاع او هم د هرات له کامران څخه په وهم کي دي، ځکه چي که له شاه‌شجاع سره انګلیسیان لاس یو کړي، نو ښایي واک ور څخه تر لاسه کړي او که له کامران سره د ایران مرسته ملګرې سي، نو ښایي هغه د خپلو نیکونو پاچهي بیرته ونیسي. سلطان‌محمد خان یو څه ښه شهرت لري، مګر حکومت یې ډېر ظالم او آزاري دی. د ده مامورین او استازي د خلکو په لوټلو او شکولو کي له هیڅ کار څخه مخ نه اړوي. پر تجارتي مالونو باندي دونه مالیات اخلي، چي د مال تر خپل ارزښت ډېر لوړ وي او رایجه سکه هر وخت بدلوي او ارزښت یې کموي. پر ژرندو باندي ډېر زیات مالیات حواله دي او خوارانو او غریب عالم ته یې ډېر زیات تاوان رسولی دی. سردار په خپله د پنځه دېرشو کالو په شاوخوا کي عمر لري. دی جاه طلبه سړی دی او یو وخت یې د کابل حکومت هم په لاس کي وو. ډېر رسېدلی او بااستعداده سړی دی او ډېر ښه مجلس کوي. مطالعه کوي، لیکنه کوي او خپل د کاروبار مسایل په خپله مخ ته وړي . د خلکو تر منځ د دعوو او جنجالونو د حلولو هنر یې نه دی زده. په دربار کي یې داسي ګډوډي او غالمغال وي، چي بیانول یې د منلو نه وي. هر ځای ته په هر وخت کي خلک عریضې ور وړي او په ډېره آزادي خپل شکایتونه بیانوي. مګر هیڅ دعوه به و نه وینې، چي حل سوې دي وي او خلک قلباً خوابدي دي. د پېښور سردار او د هغه نور خپلوان د عادي افغانانو په څېر د ورځي ګټه د شپې خوري. دوی ته چي څه په لاس ور ځي، هغه په ډېر سخاوت وېشي او هیڅ شتمني نه لري. ما ته وویل سوه چي که دوی دغسي و نه کړي، نو خپل حکومت ساتلای نه سي. د پېښور سردار د دراني قام مشهور مشران پر ځان را ګرځولي دي او پر سترخوان یې ناست وي. د شاه‌شجاع د دوو وزیرانو مختارالدوله او اکرم خان زامن او د میر واعظ زوی هم په دغو کسانو کي شامل دي. د میر واعظ یو زوی د سردار په افسرانو کي دی. د فتح خان یوازنی زوی هم د

سلطان محمدخان سره ډېره دی. (هغه کتاب، ص: ۳۲۱-۳۲۴)

برنس د (۱۸۳۲م.) کال د جون په میاشت کې کابل ته ورسېدی او د هغه ښار او ادارې په باره کې یې یو عمومي خو ډېر مهم او هر اړخیز ریپورټ ولیکی. دی وایي: "د کابل د حکومت عایدات اتلس لکه روپۍ کېږي. پوځي قوه یې په افغانانو کې تر بل هر چا زیاته ده. د کابل د حکومت مشر نهه زره ښه تکړه سپاره او دوه زره پیاده عسکر لري. پر دې برسېره کلیوالي عسکر او احتیاط عسکر هم لري او څوارلس توپونه لري، چې د یوه ځایي حکومت له پاره ښه کفایت کوي.

څوک چې کابل ته سفر کوي، نو دې ښار ته له رسېدلو څخه ډېر مخکې د دوست‌محمد خان له شهرت څخه خبرېږي او هیڅوک تر هغه ښه شخصیت او اخلاق نه لري. دی خپلو وظیفو ته همېشه متوجه وي او هره ورځ په محکمه کې حاضرېږي او قاضي او ملایان ور سره وي او هره قضیه او دعوه د شریعت سره سمه فیصله کوي. خلک هم د قرآن له حکامو سره سم په فیصلو خوشاله دي، ځکه چې په هغه کتاب کې د فیصلو کړښې او حدود روښانه دي او واکمن نه سي کولای، چې څه یې زړه وغواړي هغسې فیصله او حکم وکړي. هغه تجارت ته ډېره زیاته توجه کړې ده. ده له تجارت څخه په خپله هم ښه ګټه اخیستې ده، ځکه چې د تجارت له زیاتېدلو سره د ګمرک عایدات پنځوس زره روپۍ زیات سوي دي او اوس له دغه درکه په کال کې دوه لکه روپۍ تر لاسه کوي. د ده په قلمرو کې پر مالونو باندې یوازې یو ځل دوه نیم فیصده مالیه اخیستله کېږي او سوداګر کولای سي، چې د ده په قلمرو کې له محافظه پرته له یوه سره تر بل سر پورې، په بې‌غمه زړه سفر وکړي. دا داسې وضع ده چې د پاچاهانو د قدرت په سیمو کې نه لیده کېږي. د کابل واکمن په دغه ښار کې د شریعت له حکم سره سم، شراب منع کړي دي. دغه امر یهودان او ارمنیان د ده له قلمرو څخه وتلو ته مجبور کړي دي، ځکه چې هغوی د شرابو له جوړولو او خرڅولو پرته بله خواري نه درلوده. د دوست‌محمد خان په قلمرو کې که چا شکایت درلود، نو هغه به یې له دغې ناحیې څخه وو، په داسې حال کې چې یو ښه مسلمان باید له دغه امله شکایت و نه کړي. دوست محمد خان د ځینو نورو افغانانو په څېر په ځواني په خپله هم شراب څښل؛ مګر کله چې قدرت ته ورسېدی، نو ده او د ده درباریانو تر هر چا مخکې له دې عمل څخه لاس واخیست. د دوست محمد خان عدالت د ده په قلمرو کې هر څوک په خپل حال کې خوشاله کړي دي. بزګران ځکه خوشاله دي چې استبداد او ستم نهویني. د ښار خلک ځکه خوشاله دي، چې کورونه یې ساتلي او په بازار کې وزنونه او نرخونه په ډېره ښه طریقه کنټرولېږي. سوداګر ځکه خوشاله دي چې مال یې

خوندي دی او عسکر څکه خوشاله دي، چې تنخواوې یې پر وخت ورته رسېږي. هیڅ واکمن به خپل خلک په دغه اندازه و نه ستایي. کله چې سړی خبرې ور سره کوي، نو د ده عقل، پوهې او د خبرو په وخت کې توجه، سوالونو او د سوال کولو اخلاق او نزاکت ته حیرانېږي. په دې کې هیڅ شک نه سته، چې دی په افغانستان کې تر ټولو قوي واکمن دی او ښایي په خپل هیواد کې د خپل لیاقت او اهلیت په زور نور هم لوړ او غښتلی سي.

د دوست‌محمد خان او د هغه د ورونیو تر منځ موجود اختلاف د ټولو قوت کمزوری کوي او که څوک یرغل ور باندې وکړي، نو د دسیسو کولو له پاره به لاره ورته پرانیستې وي. د بارکزیو کورنۍ په افغانستان کې دننه له چا څخه څکه نه وېرېږي، چې دا قبیله په شمېر او قوت کې تر بلې هرې قبیلې غښتلې ده. د پېښور او کندهار واکمنان دواړه د ده د پرزولو آرزو لري، مګر دا هیله پوره کولای نه سي. د دواړو سیمو واکمنانو کابل لیدلی او د دوست‌محمدخان نېکمرغي او شتمني یې کتلې او خولو یې اوبه ورته کړې دي. دواړې خواوې د ده په دربار کې استازي لري او هغوی غواړي، چې د ده په قلمرو کې وضع خرابه کړي او دواړه دوست‌محمد خان ته د غاصب په سترګه ګوري او غواړي چې له منځه یې یوسي. د دوی له پاره به دا ډېره ګرانه وي، څکه چې هغه په خپل قلمرو کې داسې عدالت ټینګ کړی دی، چې پر خلکو ګران دی او دفاع یې کوي او له بلې خوا د ښار د جوانشېر په جنګیالۍ طایفه کې، چې ټول شیعه ګان دي، ډېر زیات ملګري او ملاتړي لري. ده له دې طایفې سره ښه اړیکې ساتلي او له ملاتړ څخه یې ګټه اخلي. (برنس، بخارا، ص: ۳۳۰-۳۳۳)

برنس د دوست‌محمد خان په باره کې ویل چې هغه عادي سړی نه دی. هغه یو منضبط او حاکم مغز لري. د سم قضاوت کولو توان او درک لري او خپل مسؤلیتونه او وظایف پېژني. هغه داسې یو سړی دی، چې د اروپا تر واکمنانو په هیڅ صورت پاته نه دی او د امیر دوست‌محمد خان په باب یې خپل دغه مثبت نظر ته هیڅ وخت تغیر ور نه کړ.

له کابل څخه یې د هندوکش لاره ونیوله. دوې میاشتې یې په بخارا کې تېرې کړې، ایران ته ولاړ. مشهد، تهران، اصفهان او شیراز یې وکتل. له ولیعهد عباس میرزا او د ایران له واکمن فتح‌علي‌شاه قاجار سره یې لیدنې کتنې وکړې او بیرته کلکتې ته ستون سو. لارډ بینتینک ته یې خپل د سفر رپوټ ور کړ. هغه فوق العاده ونازاوه او ورته و یې ویل چې دی باید خپل ریپورټ په لندن کې

مقاماتو ته وړاندي کړي.

برنس د خپل دغه سفر خاطرات د کتاب په شکل چاپ کړل او دا کتاب د لندن په محفلو کي لاس پر لاس گرځېدی او له دغه وخته څخه یې حتی نړیوال شهرت پیدا کړ. (کې، Kaye, pp ۱۷۰-۱۷۳)

دا یوازي برنس نه وو چي د امیر دوست‌محمد خان د شخصیت او اداري صفت یې کاوه، بلکي هر چا او په تېره هر خارجي او اروپایي چي هغه لیدلی دی، نو په خپلو یادداښتونو کي یې د هغه د اداري، شخصیت او مړاني صفت کړی دی. لرغون‌پېژندونکی چارلزمېسن چي د برنس له دغه لومړني سفر څخه لږ مخکي د افغانستان په بېلو بېلو سیمو کي گرځېدلی وو، په کابل کي د دوست محمد خان د حکومت سیستم لیدلی دی او لیکي: "د دوست‌محمد خان لاس ته چي د کابل د چار واگي لوېدلي دي، نو د دغه ښار د سمسورتیا او آرامی سبب سوی دی. عمومي عقیده دا ده، چي هغه به د افغانستان په چارو کي نور هم بهتر رول ولوبوي. هغه په دې ښار کي د ټولو طبقاتو پر خلکو باندي گران دی. کله چي دی پر آس باندي سپور گرځي، نو هندوان په پوره زړه ور خي او خپل شکایتونه ورته کوي او یقین لري، چي هغه یې په داد رسېږي. په عدالت کي د هیڅا مراعت نه کوي او په اداره کي یې په خپل کمال دا ثابته کړې ده، چي سرکښه افغانان کنټرولېدلای سي. د خپل پوځ چارو ته ډېره جدي توجه کوي او په دې پوهېږي، چي باید د پوځ د بېلو بېلو برخو ترکیب ته خاصه توجه وسي. د ده مالي ستونزي او لږ عایدات دا اجازه نه ور کوي، چي پوځ ته خپلي تنخواوي پر وخت ورسوي، خو بیا یې هم هغوی ته ښودلې ده، چي دی نه پیسې ذخیره کوي او نه د هغوی تنخواوي په بې‌ځایه لگښتونو مصرفوي.

دوست‌محمد خان په ډېرو ځایونو کي خپل زړه‌ورتوب ښودلی دی او دا یې ثابته کړې ده، چي هغه یو لایق قوماندان دی، خو د دې تر څنگ د ژبي او خبرو ښه مهارت لري او تر څو چي د یوې مسئلې د حلولو له پاره نوري ټولي لاري بندي سوي نه وي، له توري څخه کار نه اخلي. بې‌اندازې ساده جامې اغوندي او چي سړی یې په دربار کي پر خپل ځای باندي ناست و نهویني، نو له نورو کسانو څخه یې توپیر نه سي کولای. کله چي سړی د ده ساده سپین کاليویني او بیا یې د نورو سردارانو له ځلېدونکو لباسونو؛ په تېره بیا سردار حبیب‌الله خان سره، چي په غمیانو او طلاوو کي زنگېږي، مقایسه کوي نو ورته حیران سي. ما چي لومړی ځل په غزني کي ور سره وکتل او د ده ساده لباس مي ولیدی، نو فکر مي نه کاوه چي د ده به چنداني خبري هم زده وي، مگر د ده له

لیدلو څخه لومړی عمومي انتباه او د حکومت په چارو کې د ده لیاقت او استعداد ډېر توپیر درلود او د هغه هر گام په جلا ستایلو ارزېدی. یو خارجي باید د دې دراني سردار په باب په قضاوت کولو کې احتیاط وکړي؛ ځکه ما چې په خپله په لومړي ځل ولیدی، ما فکر نه کاوه چې دا به هم د تورو د میدان پهلوان او هم به د سیاست په میدان کې دونه هوښیار وي. د دوست‌محمد خان د شخصي عقایدو او پلانونو په باره کې معلومات تر لاسه کول، ډېر گران کار دی، ځکه چې هغه په خپلو خبرو کې د ډېر زیات احتیاط څخه کار اخلي، خو کله چې سړی د ده د ورونو کارونو ته گوري، چې په هیواد کې هیڅ ډول محبوبیت نه لري، نو سړی ویلای سي چې دوست‌محمد خان به یوه ورځ د ټول افغانستان پاچا وي" (مېسن، لومړی ټوک، ص: ۲۵۱- ۲۵۳)

## د کندهار سرداران

د کندهار سردارانو؛ شېردل خان، پردل خان، کهندل خان، مهردل خان او رحمدل خان، په (۱۸۱۸م.) کال کې په کابل او کندهار کې د سدوزیو د سلطنت د سقوط څخه وروسته بیا تر (۱۸۵۴م.) کال پورې پر کندهار باندې حکومت وکړ. په دې پنځو سکه ورونو کې تر ټولو مشر شېردل خان وو، چې په (۱۸۲۹م.) کال کې وفات سو او څو میاشتې وروسته پردل خان هم ور پسې وفات سو، نور نو د دې ورونو د گډ حکومت واک هر وخت د کهندل خان په لاس کې وو. کله چې کهندل خان په (۱۸۵۴م.) کال کې وفات سو نو د ورونو او د کاکا د زامنو تر منځ داخلي جنگ پیل سو او په نتیجه کې امیر دوست‌محمد خان کندهار ته ولاړ. هغه ښار یې د کندهاري ورونو څخه واخیست او د کابل له مرکزي حکومت سره یې ونښلاوه.

د الکیزانډر برنس منشي موهن لال چې د (۱۸۳۲م.) کال د اگسټ پر شپږویشتمه کندهار ته رسېدلی او د اکتوبر تر شلمي پورې، یعني څه کم دوې میاشتې هلته پاته سوی دی، په خپلو یادداښتونو کې وایي چې د کندهار دریو سردارانو د دغه ښار او شاوخوا سیمو عایدات سره وېشلي ول او دې وېش ښایي د سردارانو د ژوند تر ختمېدلو پورې دوام کړی وي. دی وایي: د کندهار ختیځه خوا پر پنځو ناحیو؛ هوتک، توخي، اندړ، ناصر او جلالزیو باندې وېشل سوې ده. د دې علاقې عایدات له کاله پنځه لکه روپۍ کیږي، خو دا سیمې هر وخت یاغي وي او سردارانو ته

مالیات نه ور کوي.

لوېدیځه خوا یې په شپېته میله فاصله کي پنجاب، کشک نخود، گرمسېل، نوزاد، نادعلي او زمین داور په بر کي نیسي. دغه علاقه د سردار کهندل خان په واک کي ده او کلنی عاید یې څلور سوه زره روپۍ کیږي.

رحمدل خان د شمال لوري ته تر تیزین پوري، چي اتیا میله فاصله کیږي، حکومت کوي. په دې علاقه کي باغران، جغری، غارک، دالک، وامبیش، دهراود، چارجوی، بغنی او جرلی شامل دي. د دې سیمي عایدات پنځه سوه زره روپۍ کیږي.

مهردل خان د جنوب لوري ته پر مستنگ، شوراوک، ساوي، رابت، رېگ، معروف، بادین‌زی قلعه‌چه باندي حکومت کوي او عایدات یې درې سوه زره روپۍ کیږي.

دی وایي: کله چي د دوی مشر ورور سردار شېردل خان په کابل کي له خپل وراره حبیب الله څخه ټول جواهرات او شتمني واخیستله، نو هغه یې خپل ورور رحمدل خان ته په میراث پرېښودل او هغه اوس شپه ژوند او دوه زره سواره عسکر لري.

چارلزمېسن چي باید په (۱۸۲۹م.) کال کي کندهار ته تللی وي، ځکه چي سردار شېردل خان وفات سوی او پردل خان واکمن دی. دی وایي اوس حاضر سردارانو تخت نیولی دی او د هغوی مشر ورور پردل خان له بهرنیو هیوادونو سره په مکتوبونو کي ځان پادشاه بولي او خپله دغه ادعا یې د توري په زور په خلکو منلې ده.

دی وایي: کله چي زه په کندهار کي وم، سردار خپل پوځ تصفیه کړ او ټول نالایقه افسران یې پسي واخیستل. سردار بې‌حده ظالم سړی دی او له خلکو څخه تر هغه ځایه چي امکان یې موجود وي او تر هغه حده چي نور نو د خلکو حوصله ختمېږي، پیسې اخلي او لوړ مالیات ور باندي حواله کوي. دی وایي: د ده وراره د تېمورقلي خان زوی یوه ورځ ما ته د سردارانو د حکومت له استبداد څخه شکایت وکړ. مېسن وایي: کله چي زه کندهار ته را ورسېدم، نو سرداران سره مخالف ول او په ښار کي دوه درباره ول، چي یو د پردل خان وو او بل یې د دریو ورونو وو، چي کهندل خان یې مشر وو. بالآخره د دوی ماما خدای‌نظر خان هغوی سره پخلا کړل او تر منځ یې جوړه وکړه. دوی هغه په کندهار کي د مختار یا د چارو عمومي آمر مقرر کړ. هغه په کندهار کي په ماما مشهور دی او له لومړنیو اقداماتو څخه یې خلک ډېر خوشاله ول، خو وروسته یې خلک دونه په عذاب کړل،

چي د ښار خلکو شیطان باله.

چارلز مېسن په تېره بیا پر هندوانو باندي د ظلمونو بیان کوي او وایي چي زما کور د کهندل خان له کوره سره نیژدې وو او ما به هره ورځ لیدل، چي له پنځوسو څخه تر سلو تنو هندوانو پوري به، چي زیاتره به یې د آب خلک معلومېدل، عسکرو تر دربار پوري په کشولو را وستل. له هغوی څخه یې پیسې په زور اخیستلې او خوشي کول به یې او دا نو د هري ورځي کیسه وه.

مېسن وایي: ما ته د کندهار د عایداتو په باره کي ډېر معلومات و نه سول، خو داسي مي اورېدل چي عایدات یې دوولس لکو روپیو ته رسېږي. دی وایي: دا پیسې د کندهار د ښار له پاره کفایت کوي، خو سړی بیا هم گوري چي هري خوا ته خرابي او گډوډي ده. دی وایي: د عایداتو ډېره برخه پردل خان اخلي، چي د خپل ورور شېردل خان ډېري زیاتي پیسې ور پاته سوې او پرته له دې چي د هغه وارثانو ته یې ور کړي، ټولي یې غصب کړې. (مېسن، لومړی ټوک، ص: ۲۸۴- ۲۸۸)

موهن لال چي پر کندهار باندي د سردارانو د حکومت په وخت کي هغه ښار ته تللی دی، لیکي چي کهندل خان پنځه ښځي او درې مینځیاني یا ثریتي او ډېر زیات زامن لري. مهردل خان چي د دوی کشر ورور دی، څلور یا پنځه ښځي لري. په عیش او ارامي کي ژوند کوي. خپل زیاتره وخت په مطالعه تېروي او ډېر ښه شاعر دی. دی د خپلو نورو ورونو په خلاف هیڅ ډول مذهبي تعصب نه لري. که څه هم چي د دغو سردارانو حکومت د سدوزیو تر حکومت بهتر دی، خو چنداني محبوبیت نه لري. (موهن لال، سفرنامه، ص: ۱۹۰- ۹۱)

له هغي قصیدې څخه چي د سردارانو معاصر شاعر حاجي جمعه بارکزي د هغه وخت د حالاتو په باب لیکلې ده او د احمدشاه بابا او تېمورشاه د وخت عدالت او نظام ته یې اشاره پکښي کړې او له روان حالت څخه یې سر ټکولی دی، ښکاري چي د چارلز مېسن او نورو هغو اروپایانو چي په هغه وخت کي یې کندهار لیدلی دی، خبري ډېري بې ځایه نه دي.

| | |
|---|---|
| اوس نوبـت د کنـدل خـان دی | سره وې نغښـت کنـدهار |
| ودانـی یـې کـړې خـرابي | عـالمونې کـړه ناتـار |
| درست وطن یې په حصه کړ | سرې واخیست چار برار |
| در بـدره یـې مخلـوق کـړ | مال و ملک یې کړ سرکار |
| په وطن کي یې پرې نه ښود | یـو درم و یـو دینـار |

| | |
|---|---|
| سر و بـــر يـــې سره وخـوړ | لا دوی وړي دي نهـــار |
| کـه بانـه يې سـوه در پـوري | نـور پرېـږده ملـک و مـزار |
| سرتـور سر، يـبلي پښـې دورمـه | گــوره مــه ليــل و نهــار |
| که دي خپل سر ځني خلاص کړ | شــکر کــاږه پــه بــار بــار |
| يــو خيـرات هــم پــر ځــان وکــړه | کــه پــه پــور وي کــه پــه دار |
| نـــه اثــر لــري پــه زړو کــي | نــه لــه خدايــه ځخــه ډار |

انګرېز صاحب منصب ارتر کانلي چي په (۱۸۳۲م.) کال کي له هرات ځخه کندهار ته تللی وو او د کندهار وضع يې په سترګو ليدلې ده، هم د کندهار له سردارانو او په ښار کي د خلکو د ژوند ځخه ډېره بده خاطره لري. کانلي د خپلو خاطراتو په ترڅ کي ليکي: "شېردل خان او پردل خان مړه دي او د کندهار ولايت اوس د هغوی د دريو کشرانو ورونو؛ کهندل، مهردل او رحمدل په لاس کي دی. دوی يوازي په بدو اعمالو مشهور دي او چي څه يې زړه غواړي، هغه کوي. دوی د آينده په غم کي نه دي او زاړه مامورين او خانان يې برطرفه کړي او د هغوی پر ځايونو باندي يې ډېر سپک او ناولي خلک مقرر کړي دي. هغوی چي له خلکو سره هر څه بد سلوک کوي، دوی سترګي ور باندي پټوي؛ ښايي مشترکي ګټي به لري. دوی خپل ځانونه په خپلو پوځيانو ساتي او په چا کي ری نه وهي. دوی شپږ زره ښه تکړه سپاره عسکر لري، چي ټول غلجي دي. دوی په درانيو چنداني اعتماد نه لري، ځکه چي هغوی له خلکو سره نرم سلوک کوي. موږ ته چا په يقيني ډول وويل چي دوی د خپلو پوځيانو د لګښتونو د سپکولو له پاره په پسرلي کي له خپلو عسکرو سره د خپل ولايت مختلفو سيمو ته ځي او خپل عسکر خوشي کوي، چي ځانونه د کليوالو په ډوډۍ ماړه کړي او که چيري کليوال ډېر نېستمن ول، نو دوی خپل عسکر بلي سيمي ته ور سره بيايي. دوی له خلکو ځخه ډېر زيات ماليات اخلي او له دغه امله يې سوداګري تباه کړې ده. له خلکو سره هر ډول ناروا کوي او اوس خلک د يوه تغير خواستونه کوي او وايي ګوندي شهزاده کامران يې په داد ورسېږي او دوی وژغوري. (کانلي، ص: ۵)

کانلي ليکي په کندهار کي تقريباً شپېته زره کسان اوسېږي، دی وايي: موږ د مځکو او حاصلاتو په باب ډېر زيات معلومات تر لاسه نه کړ، خو ما ته وويل سوه چي سردارانو ټولي مځکي د ځان کړي دي او خلکو ته يې په اجاره ور کړي دي. دوی له خلکو د اجارې، مالياتو او زور له لاري له کاله پنځه زره پونډه يا پنځوس زره روپۍ تر لاسه کوي. کانلي وايي د کندهار په شاوخوا کي

بهترینې مېوې او سبزیجات تولیدېږي او انار یې خصوصاً ډېر مشهور دي. که دې ښار یو عادل حکومت لرلای، نو زراعت به یې ډېره ښه وده کړې وای. ډېره ښه خاوره لري، اوبه یې پرېمانه دي او سره له هغه چې سرداران پر خلکو باندې ظلم کوي، د غلې دانې او مېوو له ارزانی څخه معلومېږي، چې په دې ښار کې کښت او کروندې بیا هم وده کړې ده. د سردارانو د بدې ادارې او ظلم تر ټولو ښه ثبوت دا دی، چې خلکو د کامران آرزو کوله. په دې کې هیڅ شک نه سته، چې کامران هم انوشېروان نه وو، مګر بیا هم کله چې د کامران د بیرته را تللو خبره کیږي، نو هر څوک وایي چې خدای دې هغه ته برې ور کړي، چې دوی د دغو ظالمانو له لاسه خلاص کړي. (کانلي، ص: ۲۳)

کانلي لیکي چې د کندهار سرداران نه هیڅ اصولو ته پابند دي او نه کوم خاص استعداد او لیاقت لري. یو ناڅاپه داسې قدرت په لاس ورغی، چې دوی یې تصور نه سوای کولای. اوس دوی په دې پوهېږي چې دا قدرت به په مشکله ساتي، نو ځکه هره ورځ خپلو سمدستي ګټو ته ګوري او جېبونه ډکوي. دوی ټول هغه کسان برطرفه کړل او له ځانونو څخه یې لیرې کړل، چې له پخوانی شاهي کورنی سره یې اړه یا علاقه درلوده. (هغه کتاب، ص: ۲۵)

کانلي لیکي چې دوست‌محمد خان له دوی سره څرګند توپیر لري. هغه اوس په دوی کې تر ټولو قوي دی او د کابل واکمن دی. سره له هغه چې پخوا یې ډېر ښه شخصیت نه درلود، اوس د خپل ښه حکومت چلولو له امله ښه شهرت لري او د کابل اوسېدونکې به، چې اکثریت تاجک دي، د ده په له منځه تللو ډېر خپه سي. ویل کیږي چې دی اتلس زره منظم سپاره عسکر او دوولس توپونه لري. دوست‌محمد خان ډېره آزاده پالیسي را اخیستې ده او کوښښ کوي، چې د خلکو ټول قشرونه او طبقات خوشاله وساتي. ده دراني پر ځان را ټول کړي او غلجي یې تر کنټرول لاندې کړي دي.

په خپل قلمرو کې په ټینګه د سني مذهب فقه چلوي، خو د کابل له شیعه‌ګانو سره ډېر نرم سلوک کوي. په دې وروستیو وختونو کې یې لا د ولایت او بزرګی دعوه هم کړې ده او وایي چې رحماني خوبونهویني. دی وایي: یوه شپه یې په خپله حضرت رسول صلی الله علیه وسلم په خوب ولیدی او هغه امر ورته وکړ، چې بدو خلکو ته هدایت وکړي. ده هم په ښار کې د فحشا مخه ونیوله او ښار ته یې د شرابو او نشه‌يي موادو واردېدل بند کړل... " (کانلي، ص: ۵)

## شاه‌محمود، کامران او یارمحمد خان

په (۱۸۱۸م.) کال کې د بارکزي ورونو په مقابل کې د شاه‌محمود او کامران له ماتې او هرات ته له تښتېدلو څخه وروسته، په افغانستان کې عمومي شورشونه پیل سول. که څه هم چې په هره سیمه او ښار کې خانانو او قبیلوي مشرانو خپل ځانونه مستقل پاچاهان بلل، خو په عمومي صورت د قدرت څلور مرکزونه؛ پېښور، کابل، کندهار او هرات منځ ته را غلل.

شاه‌محمود او کامران د دوست‌محمد خان په مقابل کې د وروستۍ ماتې څخه وروسته په ډېرو خواریو ځانونه ایله هرات ته ورسول. په هرات کې یې له حاجي فیروزالدین سره ډېر وخت په اتفاق تېر نه کړ او هغه ډېر لږ وخت وروسته د خپل وراره له وېرې مشهد ته وتښتېدی. پلار او زوی څکه له حاجي فیروزالدین سره مخالف سول، چې یو خو یې له وروستیو پېښو راهیسې د اړیکو چنداني مزه نه وه او حتی د دوی په امر بندي سوی وو. له بلې خوا یې د شاهي کورنۍ د یوه غړي په حیث، چې طبعاً به یې د خپلې کورنۍ د نورو شهزاده‌گانو او مشرانو په څېر ډېرې مېرمنې او اولادونه هم لرل، زیات شاهانه لګښت ته اړتیا درلوده او د دوی له پاره دا یو اضافه او بې‌ضرورته بار وو. دغه راز حاجي فیروزالدین په هرات کې د خپل حکومت په دوران کې خلک ډېر راضي او آرام ساتلي ول او دوی په خلکو کې د هغه له محبوبیت څخه وېرېدل.

حاجي فیروزالدین چې تر ډېره ځایه سوله خوښوونکی سړی وو، په مشهد کې د سردار قلیچ خان تایمني په تحریک پر هرات باندې په داسې حال کې حمله وکړه، چې کامران له ښار څخه ډېر لیرې کُهسان ته د ښکار له پاره تللی وو. کامران په ډېره چټکۍ له شاوخوا کلیو څخه پوځ برابر کړ او پر فیروزالدین او قلیچ خان یې حمله وکړه. په همدغه وخت کې د هغه وزیر عطامحمدخان الکوزی د هرات له ښار څخه دباندې را ووت او د فیروزالدین پوځ د دوو خواوو را ګیر سو. قلیچ خان په جنګ کې ووژل سو او فیروزالدین یې بندي هرات ته بوت. عطامحمدخان الکوزی ډېر ژر وفات سو او پر ځای باندې یې د هغه وراره یارمحمدخان الکوزی، چې له هره اړخه د خپل بادار شهزاده کامران سره یو شان او حتی تر هغه هم ظالم سړی وو، د هغه وزیر سو.

د کامران او د پلار اړیکې له لویه سره ښې نه وې او د هرات له نیولو څخه وروسته نور هم خراب سول. کامران یو جاه طلبه سړی وو او د شهزاده د موقف په درلودلو نه قانع کېدی؛ حتی هغه هرات هم د خپل ځان له پاره وړوکی باله او د ټول افغانستان د تخت د نیولو هوا یې په سر کې وه. له پلار

څخه یې، چي پرته د شرابو له چښلو یې بل کار نه درلود، ورو ورو قدرت واخیست او بالآخره یې باغشاه ته واستاوه او تر (۱۸۲۹م.) کال پوري، چي ویل کیږي د هیزه په مرض وفات سو، په هغه باغ کي نظربند وو.

کامران هم غښتلی، هم زړه‌ور او هم د خپلي کورنۍ تر ټولو جاه‌طلبه شهزاده وو، چي له لومړۍ ځوانۍ څخه د جنګونو په میدانونو کي روزل سوی وو. خو د دې تر څنګ ډېر سخت ظالم، عیاش او دومره بې‌باکه سړی وو، چي هیڅ پرنسیپ ته یې عقیده نه درلوده. هغه په هیچا باور نه درلود او د خپل قدرت او عیش دښمنان یې یو په بل پسي وځپل او د ده په فکر یې داسي څوک پرې نه ښودل، چي د ده قدرت ته خطر پېښ کړي. خو ظلم او عیاشي هم په ټولنه کي د واکمن محبوبیت کموي، هم دښمنان ورته ډېروي او هم ډېر ژر د انسان فزیکي قدرت کمزوری کوي. تاریخي تجربو ښودلې ده، چي د مخدره موادو استعمال ډېر زیات پاچاهان او شهزاده‌ګان په ځواني کي له منځه وړي دي.

د کامران وزیر یارمحمدخان الکوزی دې ټکو ته ښه متوجه وو او په ډېر لږ وخت کي یې په پوځ او حتی د کامران د قصر په دننه او شاوخوا کي خپل سړي وګومارل او تر څو چي کامران به خپل حالت ته متوجه کېدلای، هر څه یې له لاسه تللي ول. کامران هم په خپله زوړ سوی او اراده یې کمزوره سوې او هم یې په هرات کي محبوبیت له لاسه ور کړی وو او هر چا یې د مرګ خواست کاوه یا یې لږ تر لږه په مرګ نه خواشیني کېدل.

هرات د افغانستان داسي ښار دی، چي هم یې ستراتیژیک اهمیت تر ټولو نورو ښارونو زیات وو؛ هم روسانو او هم انګرېزانو د هند دروازه بلله او هم یې ایران دغه اهمیت ته ښه متوجه وو، هم په خراسان او منځنۍ اسیا کي د ښو او پرېمانو حاصلاتو له امله د ګودام په نوم مشهور وو او هم یې په خپل اوږده تاریخ کي له لوی سکندر څخه نیولې تر شلمي پېړۍ پوري د افغانستان تر ټولو ښارونو زیاتي محاصرې لیدلي او مقاومتونه یې کړي دي او هم یې داسي ظلمونه او قتل عامونه لیدلي دي، چي په اسیا کي به لږو ښارونو لیدلي وي. د هرات په تاریخ کي د کامران او یارمحمدخان الکوزي د حکومت تقریباً دېرش کلنه دوره ښایي د هغه ښار د تر ټولو تاریکو کلونو څخه وي. هغو کسانو چي په هغه وخت کي یې هرات لیدلی دی او خپل خاطرات یې لیکلي دي، ښیي چي د هرات خلک په دغو کلونو کي څومره کړاوونه ویني او لا بیا هم د اوږدو محاصرو د

زغم توان له لاسه نه ور کوي.

د ایران قاجاري پاچاهانو فتحعلي‌شاه، د هغه زوی او ولیعهد شهزاده عباس میرزا، محمدشاه قاجار او ناصرالدین شاه قاجار هر یوه په خپل نوبت پر هرات باندي حملې وکړې او ټولو غوښتل چي دا ښار د ایران په خاوره پوري وتړي. د (۱۸۳۲م.) کال په سر کي فتحعلي‌شاه قاجار خپل زوی شهزاده عباس په دغه نیت د هرات خوا ته واستاوه. عباس میرزا له کامران څخه وغوښتل چي یارمحمدخان د هغه دربار ته واستوي. کامران هم یارمحمدخان ور واستاوه، خو هغه ته ډېر ژر معلومه سوه، چي دا استازیتوب او سفارت نه، بلکي د شهزاده عباس په دام کي لوېدل دي. یارمحمدخان د هرات په برخه کي د عباس میرزا هیڅ غوښتني ته تسلیم نه سو او هغه یې دوه غاښونه ور وایستل. عباس میرزا غوښتل چي نوري شکنجې هم ور کړي او حتی و یې وژني، خو درباریانو ورته وویل چي دا کار به د قاجاري سلطنت حیثیت ته صدمه ورسوي. په دغه وخت کي د کامران د دربار عطرباشي د عباس میرزا دربار ته ورغی او له هغه څخه یې وغوښتل، چي د یارمحمدخان په عوض کي دی ونیسي. خو وزیر هغه پیسې چي د خوشي کېدلو په بدل کي یې منلي وې، شهزاده عباس ته و نه لیږلې او په دغه وخت کي په خپله شهزاده عباس هم وفات سو اوعطرباشي خپل ځان په زر پونډه خلاص کړ. پر هرات باندي د حملې کولو پلان وځنډېدی او یارمحمدخان د ښار پر شاوخوا باندي د قلا د ټینګولو په کارونو لګیا سو. (فیریه، ص: ۱۷۵-۱۷۶)

یارمحمدخان د کامران د قلمرو په لیري او نیژدې ځایونو کي واړه او لوی ښورښونه وځپل او ضمناً د خپل قدرت پر له پسې زیاتولو ته متوجه وو. کامران هم د هغه حرکاتو ته متوجه وو او خپل یوه دوست میرصادق ته یې، چي په هرات کي یې ډېر زیات پیروان درلودل او یو ځل مخکي یې هم د کامران سره د قدرت په نیولو کي مرسته کړې وه، وظیفه ور کړه، چي د یارمحمدخان په مقابل کي ښورښ وکړي او په دواړو به یې له منځه یوسي. یارمحمدخان چي په خپله په دربار کي یې خپل سړي درلودل، په دې دسیسه ډېر ژر خبر سو او میرصادق خان یې په ډېره اساني ونیوی او اعدام یې کړ. کامران له خپل وزیر څخه دونه وېرېدی او دونه د هغه تر تاثیر لاندي وو، چي یوه ورځ یې په خپله په نشه کي ورته ویلي ول، چي میرصادق خان ستا د له منځه وړلو خیال لري. وزیر یارمحمدخان چي هر حرکت او دسیسې ته جلا جلا متوجه وو، د سترګو په رپ کي خپل حریف له منځه یووړ. کامران په دغه توګه دوه، درې ځله نور هم د یارمحمدخان د وژلو له پاره دسیسې، چي حتی د ده خپلو زامنو به برخه پکښي درلوده، یارمحمدخان ته رسوا کړې. یارمحمدخان به ټول هغه

کسان چې په دسیسه کې به یې لاس درلود، په یوه حمله له منځه یووړل. (هغه کتاب، ص: ۱۷۸)

د هرات د هغه وخت د عمومي وضع په باره کې د معاصرو افغان مؤرخینو څخه چنداني لیکلي څه را پاته نه دي؛ خو کوم اروپایان چې په هغه وخت کې هرات ته تللي دي او هر څه یې په سترګو لیدلي دي، داسي څه وایي چې د منلو نه دي. انګلیس مؤرخ سر ویلیم کې د هینري پوټینجر له قوله، چې د ایران له خوا د هرات د محاصرې په وخت کې په هغه ښار کې وو، لیکي: "... د شاه کامران د حکومت یوازي نوم پاته وو. هغه یو زوړ او کمزوری انسان وو او اخلاقي فساد غوټې مات کړی وو او خپل د حکومت ټولي چاري یې خپل وزیر ته پرېښي وې. دی به ښایي د شاهي کورنۍ تر ټولو بد شهزاده او د هغې قبیلې تر ټولو بد سړی وو. داسي جنایت نه وو چې ده په ځواني کې کړی نه وو او دا چې اوس یې چنداني بد کارونه نه کول، علت یې دا وو چې نور له کاره لوېدلی وو. یو وخت یې له ځان څخه ډاکو جوړ کړی وو. غله به ور سره ملګري ول؛ د خلکو کورونه او مالونه به یې لوټ کړل او په کور کې اوسېدونکي کسان به یې ټول قتل کړل. یو وخت چې ځوان وو، نو بد اخلاقۍ یې سرحد نه درلود؛ هره ښځه او نجلۍ چې به یې خوښه سوه، هغه یې کور ته بېول او چې هر وخت به یې زړه سو، بیرته به یې وشړله. نه یې له دوستانو سره وفا درلوده او نه یې پر دښمنانو باندي رحم. د هیچا د ښو احسان یې نه مانه او ظلم او بې‌رحمي یې په خټه کې اخښل سوې وه. ډېر سخت زړه‌ور وو او چې زلمی وو، داسي کار نه وو چې ده کولای نه سو.

که د شاه کامران شخصیت له یوه اړخه یو لږ قدر هم د احترام وړ او یا یې قیافې یو څه جذابیت درلود، نو وزیر یې دغه لږه اندازه هم نه درلوده. یارمحمدخان هډور، چاغ او میانه‌قده سړی وو. په ظاهره ډېر مهذب وو. هیڅ وخت یې اعصاب نه خرابول او ځان یې تل په کنټرول کې وو. آزادي او ښې خبري یې کولې او ډېري ښې کیسې یې زده وې او ویل کېدله چې ښه دیني مطالعه لري. پر لمانځه او روژې باندي ډېر ټینګ وو. په زړه‌ورتیا کې یې هیڅ شک نه وو. لیاقت یې هم د زړه‌ورتیا په اندازه وو او له دواړو څخه یې تر وروستي حده د بدو اعمالو له پاره کار اخیست. د مرکزي اسیا د تر ټولو بدو شخصیتونو بد سړی وو او هیڅ ډول اخلاقي اصول یې نه رعایتول. د ده حرص او جاه طلبۍ سرحد نه درلود او چې د ده په مخ کې به څوک خنډ سو له منځه یې ووړ. له زړه سوي څخه بالکل خلاص وو او د هیچا په غم او کړاو کې یې ری نه واهه. ښځه، نارینه، زوړ او ځوان یې ټول په خپله وهل او خپل تر لاس لاندي کسان یې ظلم او تېري ته تشویقول. په هغه اندازه چې ظالم وو، په هغه اندازه پیمان‌شکن وو. داسي پوله نه وه چې دی تر اوښتی نه وو او داسي پیمان نه وو، چې ده

مات کړی نه وي. که په مرکزي اسیا کې بل داسي څوک وي چي تر ده تکړه او لایق او تر ده هم بد سړی وي، نو زه معلومات نه لرم" (کې، ص: ۲۰۶- ۲۰۹)

فیریه چي په دغه وخت کې په هرات کې وو، لیکي چي په کندهار او کابل کې شراب جوړول، چېنل او خرڅول ډېر سخت منع دي، مگر په هرات کې یارمحمدخان د شرابو جوړول انحصار کړی دي او له دې درکه ډېري زیاتي پیسې گټي. شراب چېنل به منع وي، خو دی په خپله په ښار کې تر ټولو لوی شرابي دی. (فیریه، ص: ۳۱۹)

موهن لال چي په (۱۸۳۲م.) کال کې هرات ته تللی وو، د کامران په باره کې لیکي چي هغه د شرابو، بنگ او تاریاکو ډېر شوقي دی. د دې پر ځای چي د خپلو خلکو او د عدالت غم وخوري، هره ورځ ښایسته لباسونه اغوندي. هم په هرات کې په بدو عملونو مشهور دی او هم چي په کندهار کې واکمن وو. کامران چي هر ځای حکومت کړی دی، هلته یې ډېر بد نوم پرې ایښی دی. ډېره لویه خزانه او بې‌حسابه جواهرات لري. په یوه اوسپنیز صندوق کې یې اچولي او په مځکه کې یې صندوق ښخ کړی دی. کوتوال ته یې امر کړی دی، چي هره ورځ له خلکو څخه سل روپۍ ټولي کړي او خزانې ته یې، چي دی په ژوند کې لاس نه ور وړي، تحویل کړي. که چیري جنگ جوړېږي او پیسو ته ضرورت پیدا کیږي، نو هغه پیسې هم له خلکو څخه په زور اخلي. د خپل وزیر او د الکوزیو له کورنۍ څخه ډېر سخت وېرېږي او خپل آس ته د هغوی بې‌اجازې اوربشي نه سي اچولای. ډېر سخت زړه لري او د افغانستان تر ټولو ظالم سړی دی. په ډېره لږه گناه یې د ډېرو کسانو نسونه څیرلي دي.

موهن لال وایي: د کامران زوی شهزاده جهانگیر د دوه دېرشو کالو دی او د خپل پلار لاره یې اخیستې ده. د ده د ظلمونو یوه کیسه د ده خپل میرزا راته وکړه، چي زه یې له شرمه لیکلای نه سم. سترگي یې هره ورځ د بنگ په نشه کې سرې وي. خپله مېرمن یې طلاقه کړې ده او له یوې بد اخلاقي ډمي سره یې واده کړی دی. دی اوس د فراه حاکم دی.

موهن لال وایي: یارمحمدخان یې وزیر یا صدراعظم دی. دی پر خلکو ظالم او پر دوستانو مهربان دی. بې‌شمېره خلک یې خرڅ کړي او غلامان کړي دي او د ډېرو زیاتو تاجرانو شتمني یې ور څخه غصب کړې دي. دی په لومړي سر کې د ایران د ولیعد شهزاده عباس میرزا دربار ته ورغی او هغه ته یې وویل چي کامران لیري کړي او دی یې پر ځای کښېنوي، خو هغه اعتماد په و نه کړ او بندي یې کړ. یارمحمدخان یوازي یو زوی او یوه ښځه لري او د ده ټوله شتمني هغه ورته ساتي.

موهن لال وايي: د يارمحمدخان کشر ورور شيرمحمدخان نومېږي. هغه د غوريان حاکم دی. د غلامانو په تجارت لګيا وي. ډېر زيات شراب چښي او ډېر زيات کاروانونه يې وهلي دي. دی ډېره زياته شتمني لري او هر وخت پاچا ته ياغي وي. شيرمحمدخان وايي په غوريان کې دونه لوړه قلا لري، چې دېوالونه يې اسمان ته رسېږي. (موهن لال، سفرنامه، ص: ۱۶۲-۱۶۳)

انګليسي ليکوال جورج هينتي چې خپل کتاب يې د تاريخي ناول په شکل ليکلی دی، د هرات او په هغه ښار او شاوخوا کې د کامران او يارمحمدخان د ظالمانه حکومت او د هغه ښار د عمومي وضع په باره کې ليکي:

"... هغه اوس هم يو مهم تجارتي مرکز وو او د هند او روسيې تر منځ پر لويې لارې باندې پروت وو. په ډېرو ښايستو قالينو او اعلی تورو جوړولو مشهور وو. تجارت يې زياتره د هندوانو په لاس کې وو، چې شمېر يې تر زرو کسانو لږ نه وو. ځيني يې په تجارت لګيا ول او ځينو نورو يې هغه کسبونه کول چې په هند کې ور سره بلد ول. په هرات کې د ارمنيانو او يهودو کورنۍ هم اوسېدلې.

دا ښار له کلونو راهيسې د شاه کامران د ظلمونو له لاسه کړېدلی دی. دی اوس زوړ دی او حکومت يې د وزير يارمحمدخان په لاس کې دی. د دې دوو کسانو له لاسه نه ژوند او نه مال په امن کې وو. نارينه او ښځې په ډېره وړه ګناه، چې چنداني به چا ثابته کړې هم نه وه، نيول کېدل او د غلامانو په بازار کې خرڅېدل يا نورو سيمو ته لېږل کېدل. وسلهوال غله د خلکو کورونو ته ور ننوتل، چې څه به يې خوښ ول، هغه به يې وړل او د مظلومو خلکو ژوند يې ناکراره کړی وو. (هينتي، ص: ۳۰)

"شاه کامران زوړ دی او تمامه ورځ نشه وي. د ښار اداره يې د وزير يارمحمدخان په لاس کې ده، چې تر هغه نو ظالم، حريص او بېضميره سړی نه سته. موږ ډېر ظالمان ليدلي دي، خو داسې ظالم مو نه دی ليدلی. زه په اطمينان سره ويلای سم، چې که ايرانيان دا ښار فتح کړي، نو پرته له څو کسانو به ټول خلک جشنونه وکړي" (هغه کتاب، ص: ۳۲)

"په هرات کې د بېقانونيو په باب کيسې د منلو نه دي او هر سړی ورته حيرانېږي. په ښار کې يوه ځوانه ښځه په بېغمه زړه ګرځېدلای نه سي، ځکه چې که چيري کامران ته ريپورټ ورغی، چې يوه ښايسته ښځه بازار ته را وتلې ده، نو هغه يې نيسي او دې ته نه ګوري، چې پېغله ده که مېرمنې او په سپينه ورځ يې نيسي او خپل حرم ته يې ننه باسي. هيڅ باعزته ښځه به جرأت و نه کړي، چې له وسلهوالو ساتونکو پرته له کور څخه دباندې ووځي. (هغه کتاب، ص: ۳۴)



اکبرخان د جګړې پر مهال، د ریچرډ اوون انځورګري، (۲۲/ اپریل/ ۱۸۴۱ع.)

## سیداحمد بریلوي

که څه هم چي د سیداحمد بریلوي تحریک به زموږ له موضوع سره ډېره اړه و نه لري؛ خو څرنګه چي په نولسمه پېړۍ کي په همدغه سیمه کي سیداحمد او د هغه پیروانو د افغانستان د خلکو د آزادۍ او کرارۍ مشترکو دښمنانو؛ سیکهانو او انګرېزانو ته تر نیمه پېړۍ زیاتي ستونزي جوړي کړي وې، نو په مختصره یادونه ارزي.

د سیداحمد بریلوي د تحریک په باب زموږ مؤرخینو یا لیکني نه دي کړي او یا که یې څه لنډه اشاره ورته کړې ده، نو د هغه په حق کي یې عدالت نه دی کړی. مرحوم کهزاد د هغه په باره کي لیکي: "په دغو پرله پسې پچلو شرایطو کي د انګلیس د نظام یو تعلیم یافته د مولوي سیداحمد بریله په نوم، چي د مهدي لقب یې غوره کړی وو، په مرموزه توګه له هند څخه ووت او د عربستان له لاري په کابل او پېښور کي را څرګند سو او پرته له دې چي د هغه هویت او ریښتوني نیت دي چا ته څرګند سي، په کابل کي له سردار دوست‌محمد خان، په پېښور کي له سردار یارمحمدخان او سردار سلطان‌محمدخان او د رنجیت سینګهـ له استازو سره تماسونه ونیول. په داسي حال کي چي له ټولو سره یار وو، له ټولو سره وجنګېدی او د هغه له متضادو فعالیتونو څخه په لومړۍ مرحله کي رنجیت

سینګهـ او د پردې شا ته د انګلیسانو استعماري دستګاه ګټه واخیستله. " (کهزاد، ص: ۴۲۸)

لومړی خو هغه د انګلیسیانو د نظام تعلیم یافته نه، بلکې د لنډ وخت له پاره عادي عسکر وو، څکه چې په کوچنيوالي کې یتیم سوی او د ټولي کورنۍ ساتنه او د ډوډۍ پیدا کول یې تر غاړې وه. مذهبي علوم یې لوستي وه. له هنده هم په مرموزه توګه وتلی نه دی، بلکې د حج د ادا کولو له پاره له یوې لویې ډلې پیروانو سره، عربستان ته ولاړ. نه یوازې یې هویت څرګند وو، بلکې د روحاني کورنۍ ټوله شجره یې معلومه وه او نیت خو یې څکه پټ نه وو، چې د خپلو عقایدو په باب یې د صراط مستقیم په نوم (۳۱۲) مخه کتاب لیکلی او په مختلفو ژبو؛ عربي، فارسي او اُردو یې خلکو ته رسولی وو. له عربستان څخه افغانستان ته نه، بلکې بیرته هندوستان ته ولاړ. هلته یې دوه کاله په بېلو بېلو ښارونو کې د جهاد او د هند له خاوري څخه د مهاجرت په باب تبلیغات وکړل او له هند څخه بیا هم د خپلو پیروانو له یوې لویې ډلې سره سند، کندهار، کابل او پېښور ته ولاړ. له سردارانو سره یې تماسونه ونیول. هغوی مرسته ور سره و نه کړه، بلکې د پېښور سردارانو لا جنګ او خیانت هم ور سره وکړ. له رنجیت سینګهـ سره یې هیڅ تماس نه دی نیولی، بلکې له هغه سره یې جهاد کاوه او له هغه سره د بالاکوټ په جنګ کې د خپل تحریک له مشرانو؛ مولوي شاه اسمعیل، مولوي عبدالحي او مولوي یوسف په شمول له دیارلس سوه ملګرو سره په سنګر کې شهید سو. (جهاني، ص: ۲۷۱)

د سیداحمد سره نه د سند میرانو ملا وتړله او نه د شکارپور حکمران سیدمحمدکاظم شاه د مرستي وعده ور سره وکړه. سیداحمد وروسته کندهار ته ولاړ، خو نه د کندهار سردارانو له هغه سره ملا وتړله او نه د کندهار علماوو د سیداحمد خبرې واورېدلې او ټول وخت یې د هغه د عقایدو او نظریاتو او د سیکهانو په مقابل کې د جهاد د امکاناتو په باره کې په بحثونو تېر کړ. سید بالآخره کابل ته ولاړ. که څه هم چې د کابل خلکو د هغه ډېر تود هرکلی وکړ، خو سرداران په خپلو کې په داسې شخړو لګیا ول، چې د سیداحمد د مذهبي اصلاحاتو او د جهاد خبرو ته یې د توجه کولو وخت نه درلود. سیداحمد په کابل کې له پنځه څلوېښتو ورځو تېرولو څخه وروسته د پېښور پر لور روان سو او په هر ځای کې یې د سیکهانو پر ضد تبلیغ کاوه. په پېښور کې له لږ تم کېدلو څخه ورسته په هشنغر کې دېره سو. (هغه کتاب، ص: ۲۶۰- ۲۶۱)

سیداحمد برېلوي په نولسمه پېړۍ کې په هند کې له لویو مذهبي او سیاسي مشرانو څخه ګڼل کېږي، چې له بده مرغه زموږ لږ منورین او لیکوالان یې له عقایدو او فعالیتونو سره اشنا دي. هغه خپل ټول عمر په اسلام کې د خُرافي عقایدو او ناوړو عاداتو او رواجونو پر ضد مبارزې او فعالیت ته ور کړ. د خپلو مبارزو او جهاد له پاره یې څکه د پښتنو علاقه غوره کړه، چې دا سیمه د سیکهانو

تر مستقیم کنټرول لاندې وه او پر مسلمانانو باندې د هغوی د راز راز ظلمونو رپوټونه خپرېدل. د پېښور سردارانو؛ په تېره بیا سردار یارمحمد خان، چې سیداحمد برېلوي د یاروسینګهـ لقب ور کړی وو، د سیکهانو ملا وتړله او یارمحمدخان له سیداحمد سره په جنګ کې ووژل سو. د سوات اخوند صاحب چې سید احمد یې پر ملاتړ باندې حساب کړی وو، نه یوازې د ده ملاتړ و نه کړ، بلکې د وهابي په نوم یې تبلیغ ور پسې وکړ او په پښتنو کې یې د ده نفوذ ته ډېره سخته صدمه ورسوله. سیداحمد برېلوي د (۱۸۳۱م.) کال د مې د میاشتې پر پنځمه د سیکهانو سره د بالاکوټ په جنګ کې ووژل سو.

د دونه زیاتو کسانو او مشرانو وژل کېدل، د سیداحمد برېلوي تحریک ته یو مرګاني ګوزار وو؛ خو دې تحریک د انګرېزانو پر ضد خپلې وسلهوالې او تبلیغاتي مبارزې ته زیات و کم پنځوس کاله نور هم دوام ور کړ. هم یې د سوات په غرونو کې په زرهاوو کسان ووژل سول او هم یې د انګرېزي استعمار د کالاپاني یا تورو اوبو په بد نامه بندیخانه کې په سلهاوو مشران او ملګري د تل له پاره تري تم سول.

## لارډ آکلینډ او افغانستان

د (۱۸۳۵م.) کال په مني کې لارډ آکلینډ د هند ګورنرجنرال وټاکل سو. په هند او شاوخوا کې نسبتاً آرامي وه؛ که څه هم چې له ګورنرجنرال سره د ایران او روسیې د دسیسو په برخه کې اندېښنې موجودې وې؛ مګر هغه رپوټونه چې په ایران کې د بریټانیې سفیر جان مکنایل د ایران د دربار په باره کې را لېږل، د هند حکومت چنداني په علاقه نه لوستل او پر کابل باندې د بریټانوي هند د حملې په باره کې خو چا فکر هم نه سو کولای. دا بیا هم لازمه وه، چې د هند د پولې او د روسیې د امپراطورۍ د ختیځو سیمو تر منځ پرتو هیوادونو په باره کې اطلاعات را غونډ سي. له دې اطلاعاتو څخه داسې نتیجه تر لاسه سوه، چې سره له هغه چې روسیه ښایي د هند پر لور د پرمختګ خیال و نه لري، خو ایران به د ختیځ پر لور حرکت کولو ته تشویق کړي.

د (۱۸۳٦م.) کال د مې د میاشتې پر یودېرشمه دوست‌محمدخان لارډ اکلینډ ته د مبارکۍ یو پیغام واستاوه او په هغه کې یې ورته ولیکل، چې هیله لري امیر او د هغه هیواد خپل وګڼي. هغه ولیکل چې تاسې ته بهتره معلومه ده، چې بې‌پروا او ګمراهو سیکهانو دلته ډېر بد سلوک را اخیستی او له تړونونو څخه یې سرغړونه کړې ده، نو زما هیله دا ده چې ما ته په دې باره کې مشوره را کړئ، چې

ستاسي په فکر کومه لاره غوره ده.

ګورنرجنرال د هماغه کال د اګسټ د میاشتي پر دوه ویشتمه امیر ته ولیکل، چي په ډېره خواشیني يې دا خبر تر لاسه کړی دی، چي ستاسي او د مهاراجا رنجیټ سینګهـ تر منځ اختلافات موجود دي. زما دوسته! تاسي خبر یاست چي د بریټانیې د حکومت پالیسي دا نه ده، چي د خپلواکو هیوادونو په چارو کي لاس‌وهنه وکړي او ما ته دا نه را معلومېږي، چي زما د حکومت مداخله به څرنګه ستا په ګټه تمامه سي. که ته ما ته ولیکې چي زه په دې برخه کي څه کولای سم، نو زه به خوشاله سم او ضمناً هیله لرم چي تاسي به له سیکهانو سره په یوه ډول روغي جوړي ته ورسېږئ. (کوریس پانډیسن، ص: ۳۹۵- ۳۹۷)

د (۱۸۳۶م.) کال د نومبر د میاشتي په وروستیو شپو ورځو کي د هند نوي ګورنرجنرال لارډ آکلینډ الیکزانډر برنس ته وظیفه ور کړه، چي کابل ته ولاړ سي او په اباسین کي د تجارتي تګ راتګ امکانات او دغه راز د هغه سیند پر دواړو غاړو باندي په پرتو ملکونو کي د داسي اړیکو د ټینګولو په لټه کي سي، چي د بریټانوي هند د حکومت له آرزوګانو او اهدافو سره برابر وي. برنس د هغه کال د ډیسمبر پر شپږمه د دریو نورو انګرېزي صاحب‌منصبانو په ملاتړ حرکت وکړ.

دا وخت هم د افغانستان، هم د شاوخوا سیاسي شرایط بدل سوي او هم د سیمي او په تېره بیا افغانستان په برخه کي د بریټانیې د حکومت پالیسی تغیر کړی وو. برنس د (۱۸۳۷م.) کال د سیپټمبر پر شلمه کابل ته ورسېد او د امیر دوست‌محمد خان زوی سردار محمداکبر خان يې ډېر شانداره هرکلی وکړ. پر خپل فیل باندي يې سپور کړ او د خپل پلار دربار ته يې بوت، چي هلته يې هم ډېر تود هرکلی وسو. دوی ته يې په بالاحصار کي دننه یو لوی کور ور کړی وو، چي ډېر ښکلی او لوی باغ يې درلود. د سیپټمبر پر یوویشتمه يې په خپله له امیر دوست‌محمد خان سره وکتل او ډېر اوږد او دوستانه مجلس يې ور سره وکړ.

برنس وایي: کله چي ښار ته ووتلو، نو خلکو نارې راته وهلې چي کابل ښه وساتئ او کابل مه تباه کوئ! دی وایي: امیر او د هغه ورور نواب جبارخان ډېر ژر زموږ کور ته را غلل. برنس لیکي چي قدرت معمولاً سړی خرابوي، مګر دوست‌محمد نه د قدرت زیاتېدلو او نه د امیر نوي لقب له سده ایستلی دی. حتی تر هغه چي ما مخکي لیدلی وو، تر هغه لا اوس خپلو کارونو او وظایفو ته ډېره توجه کوي. دی تر پخوا ډېر متوجه وو او په هره فیصله کي يې له عقل څخه کار اخیستی.

برنس وايي: کله چي ما پوښتنه ور څخه وکړه، چي خلک وايي افغانان بني‌اسراييل دي؟! ده په جواب کي راته وويل: دا چي د خپل ورور کونده ځان ته کښېنوو او ښځو ته په ميراث کي حق نه ور کوو، نو بني اسرايیل نه يو څوک يو؟ (برنس، کابل، ص: ۱۰۷- ۱۰۹)

اليکزانډر برنس په ختيځ کي په ډېره لوړی ځواني کي ډېر مهم ډيپلوماتيک سفرونه وکړل او د ډېرو قوي او لويو واکمنانو سره يې له نيژدې وليدل، مگر داسي ښکاري چي د دوست‌محمد خان په اندازه به د هيڅ مشر تر اغېزې لاندي نه وي راغلی. سړی په جرأت سره ويلای سي چي که په افغانستان کي د برنس دوهم ډيپلوماتيک ماموريت په بريالی توگه بشپړ سوی او د ده له نظر او قضاوت سره سم عمل سوی وای، وروستيو تاريخي پېښو به بالکل بل رنگ درلودلای. نه به د افغانستان کلي او ښارونه تباه کېدلای، نه به د افغانستان مظلومو اولسونو ته د سر او مال تاوانونه رسېدلای او نه به هم د بريټانيې پوځي او سياسي حيثيت ته دونه صدمه رسېدلای.



د کابل د بالاحصار دروازه چي انگرېزانو په توپ والوزول سوه.
کابل، کال (۱۸۷۹م.) عکاس: جان بورک

برنس د امير د داخلي پاليسيو په باره کي ليکي: امير د کندهار په جبهه او په پېښور کي د سيکهانو په مقابل کي د بري په تر لاسه کولو سره ډېر زيات محبوبيت تر لاسه کړی دی. د ايران او بخارا پاچاهانو ده ته مبارکي وويله او ښايي د زړه له کومي مبارکي يې ورته ويلې وي. مگر جنگ پيسې غواړي او پيسې د مالياتو او گمرکي محصول له اضافه کولو پرته نه کيږي. امير ځيني د وقف ځمکي، چي مالک او وارث يې معلوم نه وو، دولتي کړې. د حاجي خان او نورو هغو خانانو او

مشرانو چې له ده څخه تللي ول، مالونه يې غصب کړل. هغه کسان چې د حکومت پوروړي ول، له هغو څخه يې پيسې واخيستلې او ځيني کسان يې جريمه کړل او د ډېرو کسانو معاشونه يې کم کړل، تر څو د خپل پوځ، چې دغه ګړی هم د افغانستان له پاره لوی وو، لګښتونه پوره کړي. د پېښور او کندهار جنګونه ده ته ډېر ګران تمام سول مګر که په دې جنګونو کې ناکام سوی وای، نو د ده هم کمبله ټوله وه.

د حکومت او ادارې هرې برخې ته د ده توجه د ستايني وړ ده. د ده يوازنی هدف د پيسو جمع کول دي او په دې لاره کې له ټولو وسايلو څخه کار اخلي. څه پيسې چې ورته راځي، هغه ټولې لګوي او په دې سلسله کې يې د خپلې ټولې کورنۍ د مياشتي خرڅ يوازې پنځو زرو روپيو ته ټيټ کړی دی. دوست‌محمد موضوع ډېره ژر درک کوي. ډېر پوه سړی دی او څوک يې ډېر غولولای نه سي. دی د هر چا شکايت ته غوږ نيسي او په ډېره حوصله او عدالت عمل کوي. د ډېرو وړو موضوعاتو له پاره شورا ته مراجعه کوي. د ده له اجراآتو څخه شتمن خلک او ځيني نور کسان ناراض دي، مګر عمومي نارضايت موجود نه دی. د ده په شاوخوا کې به هيڅوک و نه کړای سي، چې د ده په څېر په لږ توان او طاقت او لږو مادي امکاناتو دومره ښه اداره وکړي. دوست‌محمد خپل کارونه په ډېره حوصله سر ته رسوي، ځکه پوهيږي چې يوه وړه اشتباه ښايي حياتي تاوان ورته ورسوي. په کارونو کې بې‌اندازې محتاط دی او ډېر ژر شکمن کيږي او کله کله خو دونه قار ور سي، چې وجود يې ريږدي، مګر ډېر ژر پر ځان کنټرول راولي. له ختيځو ګاونډيانو سره په سوله کې ژوند کول به د امير د قدرت عمر اوږد کړي او ده ته به دا فرصت ور کړي، چې خپل پوځي قوت او لګښتونه کم کړي. مګر څرنګه چې شهرت يې تر قدرت زيات دی، نو د خپلو لوېديځو ګاونډيانو تر دوستي يې د هغوی د مځکو لاندې کولو ته ډېره توجه کړې ده. که يې په ختيځ کې له سيکهانو سره اړيکي ښې وای، نو ده به د خپل قدرت لا مستحکمولو ته ښه توجه کړې وای. دا چې دی له هغوی سره يوازې د ټينګي مذهبي عقيدې او جذبې په اساس جنګيږي او جوړه نه ور سره کوي او که د جاه‌طلبی مسئله ده؛ دا به وروسته معلوميږي. (هغه کتاب، ص: ۲۹۷-۲۹۸)

"امير د مځکنی شاهي کورنۍ مقامات او نازولي ځان ته نه نيژدې کوي، مګر د هغه قوم ډېر زيات خلک بيا هم د ده د ادارې او حکومت صفت کوي. د ده د عايداتو لږوالي د ده د محبوبيت مخه نيولې ده. مګر سره له هغه هم داسي څوک چنداني نه سته، چې د امير له دربار څخه دباندي د هغه نوم په بې‌احترامي ياد کړي." (هغه کتاب، ص: ۳۰۱)

افغانستان ته د برنس د لېږل کېدلو ظاهري هدف زياتره تجارتي وو او لارډ اکلينډ هم د امير د

تبریکیه مکتوب په جواب کې لیکلي ول چې له کابل سره د تجارتي اړیکو د ټینګولو او پراخولو له پاره به هغه ته یو هیأت واستوي. مګر لارډ اکلینډ برنس ته ویلي ول چې د اباسین پر دواړو خواوو باندې له پرتو ملکونو سره د داسې اړیکو د ټینګولو په لټه کې سي، چې د بریټانیې له آرزوګانو سره برابر وي. د دې معنا په خپله تر یو ځایه پورې د هیأت د سفر سیاسي ماموریت افاده کاوه.

برنس هم له دوست‌محمد خان سره په خپلو لومړنیو مجلسونو کې سیاسي بحثونه وکړل او کلکتې ته یې هم د خپلو سیاسي خبرو په باب رپوټونه ور کړل. خو د ده رپوټونه په لودهیانه کې د سیاسي کمېشنر کپټان کلاډ ویډ او په کلکته کې د ګورنرجنرال د سیاسي سلاکار مکناټن تر لاسونو تېرېدل او دا دواړه کسان په سیمه کې د سیاسي چارو د کنټرولولو مسؤلین ول. هغوی له یوې خوا په خپله ساحه کې د ځوان افسر برنس، چې په وروستیو شپو ورځو کې یې نړۍوال شهرت هم تر لاسه کړی وو، مداخله نه سوای زغملای او له بلې خوا کلاډ ویډ د شاه‌شجاع د ټولو کمزوریو او پرله پسې شکستونو د لیدلو سره سره دومره د هغه تر اغېزې لاندې وو، چې هغه ته یې د انګرېز حکومت د ګټو د یوازني مدافع په سترګه کتل. په دې نظر کې له هغه سره ویلیم مکناټن هم شریک وو او دواړو د ګورنرجنرال پر ذهنیت باندې، چې په خپله یې د سیمې؛ په تېره بیا د افغانستان په باب هېڅ ډ ول اطلاع او معلومات نه درلودل، بشپړ حاکمیت درلود.

په اصل کې کلاډ وېډ او مکناټن دواړو له برنس سره، چې په ډېره ځواني کې یې نړۍوال شهرت ګټلی وو، حسادت درلود او کلاډ وېډ خو دا خپل حق باله، چې د برنس په عوض کې د افغانستان ټولې چارې باید ده ته وسپارلې سي. کله چې د افغان او انګلیس لومړۍ جنګ پای ته ورسېدی او د جنګ د حالاتو دوړې یو څه کېنښستلې، نو د ګورنرجنرال د دفتر او په مختلفو ځایونو کې د هغه د استازو تر منځ تبادله سوي لیکونه چاپ سول، نو معلومه سوه چې د هغو لیکونو څخه چې برنس د ګورنرجنرال په عنوان لېږلي ول، هغه بشپړ پراګرافونه لیرې سوي دي، چې د ګورنر جنرال د نظر په خلاف یې د دوست‌محمد خان سره د مرستې کولو او بریټانیې ته د نیژدې کولو په طرفداري لیکلي ول. (هینتي، ص: ۹۰)

برنس او په ایران کې د بریټانیې سفیر جان مکنایل، چې د ایران له خوا یې د هرات د محاصرې، د ایران او روسیې د ګډو دسیسو او همکاریو او په کابل کې د امیر دوست‌محمد خان د بې‌حده ستونزو په وخت کې په سیمه کې ژوند کاوه، د واقعیتونو پر اساس د خپل هیواد د ګټو څخه د دفاع له پاره رپوټونه لیکل؛ خو کپټان کلاډ وېډ او مکناټن، چې دواړه له سیمې څخه لیرې پراته ول، د

خپلو ذهني تحلیلونو په اساس قضاوتونه کول. نه یوازې یې د دوی ډېرې مشورې نه منلې، بلکې د برنس ریپورټونه یې یا سانسورول او یا یې ګورنرجنرال ته نه رسول. برنس او مکنایل دواړه له دوست محمد خان څخه د بریتانیې د ملاتړ او د قوي او واحد افغانستان طرفداران ول؛ خو کپتان ویډ او مکناټن د شاه‌شجاع د حمایه کولو او د افغانستان د تجزیه کېدلو طرفداري کوله.

ځوان صاحب منصب آرتر کانلي، چې په (۱۸۳۱م.) کال کې یې په سیمه کې سفرونه کړي دي، د ستري لوبې د یوه ننداره کوونکي په حیث وایي چې روسیه له دوو لارو پر هند باندې حمله کولای سي. لومړی لاره یې له هندوکش څخه تېرېږي، چې د هر پوځي قدرت له پاره یوه له ستونزو ډکه لاره ده. دوهمه لاره یې له هرات څخه تېرېږي. که چېرې هرات د روسیې په لاس کې وي، نو په اسانۍ سره په هند کې د بریتانیې قدرت ته تاوان رسولای سي. کانلي وایي: که روسان د هندوکش له لارې او که د هرات له لارې هند ته ځي، نو په دواړو صورتونو کې باید له افغانستان څخه تېر سي او دا په خپله یوه له تر ټولو لویو ستونزو څخه ده. که افغانستان د قبایلو او مشرانو تر منځ وېشل سوی وي، نو بیا یې اېلول اسانه کار دی، ځکه چې یوه مشر ته به د بل مشر په مقابل کې پیسې ور کوې او هغه به د ځان ملګری کوې او دغه راز لا د هند د غنیمتونو په وعدو هم د یوه او بل رقیب خانان او مشران د ځان کېدلای سي. خو که چېرې په افغانستان کې یو قوي حکومت موجود وي او ټول هیواد د یوه مشر تر لاس لاندې وي، نو په هغه صورت کې له دې هیواد څخه تېرېدل او ځان هند ته رسول غیرممکن کار دی. کانلي وایي: بهتره به دا وي چې د روسانو په مقابل کې یو موټی او غښتلی افغانستان موجود وي. (هوپکیرک، ص: ۱۳۰- ۱۳۱)

الیکزانډر برنس هم د مکناټن او کلاډ ویډ، چې د افغانستان د تجزیې غوښتنه یې کوله، مخالف نظر درلود او د افغانستان د امپراطورۍ د ټینګولو طرفداري یې کوله. ده ولیکل چې اوسنیو شرایطو ته په کتلو سره، تر ټولو بهتره او غوره پالیسي دا ده، چې د کابل په تقویه کولو کې خپل ټول وس تمام کړو، نه دا چې هغه کمزوری کړو او سره و یې وېشو. برنس زیاته کړه چې افغانستان له وخته وېشل سوی دی. یو وخت سند او کشمیر کابل ته مالیه ور کوله. هغه اوس د کابل له لاسه وتلي دي. څه چې موږ کولای سو، هغه به دا وي چې د اباسین پر ختیځه غاړه رنجیت سینګه تقویه کړو او لوېدیځه غاړه یې افغان قوت ته وسپارو، په دې توګه به د څو واکمنانو د یوې ډلې پر ځای یو له یوه پاچا سره اړیکې ولرو. برنس ولیکل، چې: "تفرقه واچوه او حکومت وکړه " داسې یوه پالیسي ده، چې یوازې په خاصو شرایطو کې د یو څه وخت له پاره کار ور کوي او که چېرې افغانان یو موټی

وي، نو موږ او دوی کولای سو چي د ایران په مقابل کي ګډ دریځ غوره کړو او مقابله ور سره وکړو. برنس وایي: د دې پر ځای چي موږ له هر مشر سره جلا جلا او له لیري روابط ساتو، له یوه متحد قدرت سره په روابطو کي به مو هر څه تر سترګو لاندي وي. (کې – Kaye، ص: ۳۴۱)

کله چي په تهران کي د بریتانیې استازی ښاغلی مکنایل خبر سو، چي لارډ اکلینډ د برنس په نوم یو استازی کابل ته لیږي، نو د (۱۸۳۷م.) کال د مارچ پر دیارلسمه یې برنس ته یو اوږد لیک واستاوه او په هغه کي یې ورته ولیکل چي کندهار او هرات باید د کابل اوسني امیر ته وسپارل سي. مکنایل لیکلي ول چي که بریتانیه له دوست‌محمد خان سره ډېره لږ مرسته وکړي، هغه کندهار او هرات نیولای سي. زه هیله لرم چي له هغه څخه به مرسته و نه سپموله سي او که هغه ته یو څه پیسې ور کړلي سي، هغه دا کار کولای سي. هغه باید له بل قدرت څخه د مرستي له اخیستلو او په خپل دربار کي د بل هیواد د استازي له منلو څخه منع کړل سي او هغه باید موافقه وکړي، چي له نورو قدرتونو سره به د بریتانیې له لاري اړیکي ټینګوي. چي تر څو پوري دا کار سوی نه وي، زموږ امنیت نه خوندي کیږي او چي تر څو پوري دوست‌محمد خان او یا بل کوم افغان د کابل، کندهار او هرات ټولو واکمن نه وي، زموږ دریځ به لړزانه وي. (هغه کتاب، ص: ۲۹۳)

مکنایل په همدغه لیک کي د کندهار پر سردار کهندل خان باندي بې اعتمادي څرګنده کړې وه او لیکلي یې وه چي هغه داسي لوبه روانه کړې ده چي د بریتانیې ګټو ته تاوان رسوي. هغه لیکلي وه چي د دوست‌محمدخان په احساس او دریځ باور لري او له هغه سره اتحاد جوړول اسانه دي. هغه کتاب هغه مخ.

برنس چي څه لیدل او چي څه فکر یې کاوه، په آزادانه ډول یې خپل عقاید اظهارول او په دې سلسله کي یې ولیکل چي د دوست‌محمد خان سره پر اړیکو باندي باید له سره غور وسي. ده ولیکل: "موږ ولي له دوست‌محمد سره همکاري نه سو کولای؟ هغه هم یو لایق سړی دی، هم د احساس خاوند دی او هم بریتانیې ته ډېر د قدر په سترګه ګوري. که له ده سره د هغه نیمایي مرسته وسي چي له نورو سره کیږي او داسي پیشنهادونه ورته وسي، چي دی یې د خپل هیواد ګټو ته تاوان و نه بولي، تاسي به وګورئ چي هغه به سبا له ایران او روسیې سره خپل اړیکي وشلوي. ښایي څوک ووایي چي هغه ته فرصت ور کړه سوی دی، مګر کله چي زه او تاسي مخامخ سره ووینو، نو زه به درته ووایم چي له ده سره څه باید سوي وای. حکومت دا منلې ده چي امیر د خپلو ستونزو د حلولو له پاره د لاري د انتخابولو امکانات درلودل؛ مګر موږ باید دا خبره هېره نه کړو، چي موږ هغه ته د هیڅ شي وعده نه ده ور کړې او ایران او روسیې ډېري ژمني ور سره کړي دي. " (هغه کتاب، ص: ۳۴۰)

# برنس او امیر دوست‌محمد خان

الکزانډر برنس کابل ته د رسېدلو په څلورمه ورځ، د سپټمبر پر څلرویشتمه له امیر سره یوې خصوصي لیدني ته وبلل سو. په دې مجلس کي یوازي اکبرخان برخه درلوده. تر ماښامني وروسته خبري د شپې تر نیمایي پوري اوږدې سوې. امیر د برنس خبرو ته په ډېر دقت غوږ نیولی وو. کله چي برنس په اباسین کي د کښتیو د تګ راتګ او له افغانستان سره د تجارت مسئله را منځ ته کړه، نو امیر ورته وویل چي د ده منابع له سیکهانو سره د جنګ له امله تاواني سوي دي او دی مجبور دی، چي د خپلو عایداتو د زیاتولو له پاره د مالیاتو خوا ته توجه وکړي. ده وویل چي سیکهانو له ده څخه په ډېره نامردي پېښور په داسي وخت کي ونیوی، چي دی له شاه‌شجاع سره په کندهار کي په جنګ لګیا وو. برنس د رنجیت سینګهـ د پوځي او مالي قوت خبره را منځ ته کړه. امیر هغه ته وویل چي د لاهور د واکمن سره یې زور برابر نه دی او په دې خبره دی هم پوهېږي، خو که د بریتانیې حکومت ده ته مشوره ور کړي، چي څه وکړي، نو دی به ډېر خوشاله سي او د هغوی له مشورې سره سم به عمل وکړي. برنس امیر ته اطمینان ور کړ چي بریتانیه به د پنجاب او افغانستان تر منځ د اختلافاتو په حلولو کي مرسته وکړي.

د اکتوبر پر څلورمه برنس یو ځل بیا بالاحصار ته دعوت سو. په دې دوهم مجلس کي د امیر مشر ورور نواب جبارخان هم حاضر وو. په دې مجلس کي امیر خپل دریځ دونه نرم کړی وو، چي برنس ورته حیران سو. امیر هغه ته وویل چي که بریتانیه وغواړي، دی حاضر دی چي له مهاراجا رنجیت سینګهـ څخه بخښنه وغواړي. حتی له پېښور څخه به هم تېر سي او د هغې سیمې مالیات به رنجیت سینګهـ ته ور کوي او آسونه، وریجي او نور شیان به، چي هغه یې غواړي، ور لېږي او پېښور به د مهاراجا په نوم وساتي. برنس ورته وویل چي که پېښور سلطان‌محمد خان ته ور پرېښودل سي، نو دا به د امیر نوم ډېر لوړ کړي. خو امیر په جواب کي ورته وویل چي دا به بهتره وي، چي پېښور د رنجیت سینګهـ په لاس کي وي نه د سلطان محمدخان، ځکه چي هغه یو خاین دوست او د ده ډېر سخت دښمن دی.

په همدغه مجلس کي د کندهار د سردارانو په باب هم خبري وسوې. د کندهار واکمن سردار

کهندل خان نه یوازې له ایران سره د اتحاد کولو ژمنه کړې وه، بلکې فیصله یې کړې وه چې خپل دوهم زوی د ایران له استازي سره واستوي او محمدشاه او د روسیې سفیر ته ښه سوغاتونه ولېږي. دوست‌محمد خان د هغوی پر دې عمل باندې اعتراض کړی وو او هغوی ته یې لیکلي ول چې اې زما وروڼو! تاسې چې دغه ډول کارونه زما له سلا او مصلحته پرته کوئ، دنیا به څه وایي؟ امیر په ریښتیا هم غوښتل چې له بریتانیې سره لاس یو کړي. برنس خپل یوه خصوصي ملګري ته د اکتوبر پر دېرشمه ولیکل: "دلته په سلګونو داسې شیان پېښېږي، چې زموږ د منتهی علاقې وړ دي. دوست محمد خان زموږ ټول نظریات منلي دي او زه فکر کوم چې موږ به له پاچا رنجیت سره بارکزیو سردارانو ته د پېښور پر تسلیمولو او له هغوی څخه د هغې سیمې د مالیاتو پر اخیستلو باندې خبرې پیل کړو. دوست‌محمد خان به خپل زوی لاهور ته لېږي او له رنجیت سینګهـ څخه به بخښنه غواړي. زه یقین لرم چې رنجیت سینګهـ به موافقه وکړي. ما د خپل حکومت له خوا موافقه کړې ده، چې د دوی تر منځ به د منځګړي په څېر حاضرېږم او دوست‌محمد خان له روسیې او ایران سره خپلې ټولې اړیکې شلولې دي او د ایران د پاچا سفیر ته یې، چې اوس په کندهار کې دی، کابل ته د راتللو اجازه نه ده ور کړې. د امیر وروڼو په کندهار کې د ایران د سفیر تود هرکلی کړی دی او ما هغوی ته داسې لیک لېږلی دی، چې دوی به حیران کړي. زه مجبور وم چې ډېر ژر عمل وکړم، ځکه چې دوی خپل زوی د ایران شاه او د روسیې سفیر ته له سوغاتونو سره استاوه. زه هیله لرم چې زه به پر خپل وخت د هغوی له دغه عمل سره د مخالفت ښودلو دلایل ووایم. دلته نور ټول کارونه ډېر ښه روان دي او د خپل هیأت په باب به دونه درته ووایم، چې که موږ نه وای راغلي، اوس به په دغه ځای کې د روسیې او ایران استازي اوسېدلای. (کې، ص: ۱۷۶- ۱۸۰)

د اکتوبر پر یودېرشمه برنس مکناټن ته ولیکل چې د سپټمبر پر څلرویشتمه یې له دوست‌محمد سره کتلي دي او هغه د بریتانیې له حکومت څخه ډېر منندوی دی. کله چې برنس له امیر سره د کندهار د واکمن خبره یاده کړه، نو هغه خوابدی ښکارېدی او حتی و یې ویل چې کشکې ده په خپله د روسیې او ایران پیشنهادونو ته غوږ هم نه وای نیولی. دوست‌محمد خان وویل چې په عامه به اعلان وکړي، چې له بریتانیې سره د اړیکو ټینګول غواړي او خپل وروڼه به له ایران او روسیې سره د تماس له نیولو څخه منع کړي. مګر برنس د امیر له قوله لیکلي ول چې نه دی او نه د ده وروڼه د بریتانیې له حکومت څخه د کومې مرستې انتظار لري. امیر ویلي ول چې له بریتانیې سره له ملګرتوب څخه خو باید یو څه تر لاسه کړي. (هغه مخ)

## د کندهار سردارانو ته د امیر دوست‌محمد خان لیک

ما په وروستیو شپو، ورځو کې د دې سیمې په باب ټول اطلاعات در کړل او تاسې به ښايي پوه سوي یاست.

څه چې تاسې راته لیکلي ول، زه پوره په وپوهېدم. موږ هر وخت له یوه بل سره دوستان وو او د اتحاد مېوه هر وخت خوږه وي. تا او په کندهار کې زما نورو ورونو ما ته هر وخت لیکلي دي، چې زه ستاسې مشر یم او په هره موضوع کې به زما سره سلا کوئ او زما له مشورې پرته به هیڅ کار نه کوئ.

کله چې زموږ د هستوګنې اصلي مرکز پېښور، د سلطان‌محمد خان د حماقت له لاسه د سیکهانو لاس ته ولوېدی او له هغه وخته راهیسې یې موږ ټولو ته یوه ستونزه او لوی مشکل را پېښ کړی دی او دا دی کندهار، چې زموږ پلرنی مېنه ده، د کامران له خوا تهدیدېږي. دې ستونزو موږ دې ته اړ کړي یو، چې له انګلیسیانو، ایرانیانو او روسیې له حکومتونو څخه مرسته وغواړو. ما بالآخره له ختیځ څخه د انګرېزانو استازی او له لوېدیځ څخه د ایران او روسیې استازي را وبلل. مخکې له هغه چې د ایران او روسیې استازي را ورسېږي، ما تاسې ته اطلاع در کړه، چې د بریتانیې د حکومت له خوا به د الیکزانډر برنس په نامه یو استازی راځي او ښه خو به دا وای چې تاسې خپل یو ورور کابل ته را لېږلی وای او دلته به موږ له هغه سره په ګډه خبرې کړې وای. تاسې راته ولیکل چې مهردل خان او د ایران استازی به را ولېږئ او زما له سلا سره سم به کار وکړئ.

په دې وخت کې ستا او د نورو ورونو تر منځ یو څه اختلاف پېښ سو او تاسې مهردل خان او د ایران ایلچي را و نه لېږی. ښاغلی برنس را ورسېدی او موږ خبرې سره پیل کړې. څه چې ده لیدلي او اورېدلي دي، خپل حکومت ته یې احوال ور کړی دی او دا خبرې به سیکهانو ته هم ورسېږي. دا ټولې دنیا ته څرګنده ده، چې د بریتانیې په مقابل کې د سیکهانو قوت هیڅ دی او که زموږ اهداف د دغه قوت له لارې تر لاسه سي، دا به ډېره ښه وي. ښاغلی برنس په نظر کې لري چې دلته له خبرو څخه وروسته کندهار ته هم ولاړ سي او بیا به د شکارپور له لارې سند ته روانېږي.

په تېرو څو ورځو کې ما ته ستا له خوا کوم لیک نه دی راغلی، خو د نورو له خولو او د ښاغلي برنس څخه مې اورېدلي دي، چې د ایران پوځ هرات ته را روان دی او ته غواړې چې خپل زوی

محمدعمر خان د ایران له استازي سره د ایران شاه ته ولېږي.

زه دې خبرې حیران کړم، ځکه چې تا خو پخوا هیڅ کار زما بې‌سلا نه کاوه او زه به ستا څخه پوښتنه وکړم چې د ایران دربار ته د خپل زوی له لېږلو څخه د څه خیر او ګټې تمه لرې؟ که بریټانیه ستا سره دوستي نه کوي، نو ته به نورو ته د دوستۍ لاس غځوې؟ بریټانیه موږ ته تر نورو را نیژدې ده او په دې مشهوره ده چې پر خپل قول درېږي او د بریټانیې په مقابل کې د دې نورو قوت هیڅ دی.

که ته ما ته د خپل مشر په سترګه ګورې، نو زما خبره واوره او خپل زوی ایران ته مه لېږه. که زما پر مشوره غوږ و نه نیسې، سبا به داسې حالات پېښ سي، چې بیا به ارمان کوې او هر څه به تېر وي. (کوریس پانډینس، ص: ۴۱۱-۴۱۲)

له مایوسوونکي حالت سره سره هم، دوست‌محمد خان د انګرېزانو له دوستۍ څخه مخ و نه ګرځاوه او هغه ته یې وویل چې خپل ورونه به له ایران او روسیې سره له دوستۍ څخه منع کړي او حتی که یې د بریټانیې استازی لازمه وبولي، عملي اقدام به وکړي. خو برنس وویل چې عملي اقدام ته به اړتیا نه وي. په داسې حال کې چې د امیر نیک احساس یې وستایه له هغه څخه یې وغوښتل، چې خپل ورونه په سوله‌ایزو طریقو د ایران او روسیې له دوستۍ او اتحاد څخه را وګرځوي. (هغه کتاب، ص: ۱۸۱)

د بریټانیې استازي فیصله وکړه چې د کندهار د مشرانو د ملګرتوب د تر لاسه کولو له پاره نور ګامونه هم پورته کړي. هغه د ډیسمبر پر دوه ویشتمه خبر سو، چې کهندل خان د ایران ایلچي رخصت کړی او فیصله یې کړې ده، چې خپل زوی به د ایران دربار ته نه لېږي. کهندل خان ته دا اندېښنه پیدا سوه، چې هسې نه د ایران پاچا د هرات له نیولو څخه وروسته کندهار د هغه له لاسه وباسي؛ ځکه یې نو د بریټانیې دوستۍ ته زړه ښه کړ. برنس هغه ته ولیکل چې د ایران له خوا زړه بې غمه لري او که د ایران پاچا د هغه قلمرو تهدید کړ، نو له دوست‌محمد خان سره به یو ځای د هغه مرستې ته ور سي او د پوځیانو لګښتونه به هم پر غاړه واخلي. په همدغه وخت کې یې لیوتینینټ لیچ هم کندهار ته واستاوه او هغه ته یې وظیفه ور کړه، چې د ټولو جریاناتو په باره کې مفصل ریپورټونه ورته واستوي. (کې، ص: ۱۸۲)

برنس څو ورځې وروسته خپل یوه ملګري ته ولیکل: "د کندهار سرداران له ایران سره ملګري سوي ول. ما هغوی له ایرن څخه بېل کړل او ورته و مې ویل چې که چېرې ایران پر دوی باندې حمله وکړي او دوی پر شا راسي، نو بریټانیه به د هغوی ساتنه وکړي او د پیسو مرسته به ور سره

وکړي. زه د دې ډول کارونو صلاحیت نه لرم، مګر زه به ګورم چې موږ به په کندهار کې تباه کېږو او لاس تر زني به ورته ناست یم؟ او ما ته خپل حکومت ویلي دي، چې پر هرات باندې حمله په هیڅ توګه د منلو نه ده. هرات له پنځوسو ورځو راهیسې محاصره دی او که ایران پر کندهار باندې را مخ ته سي، نو زه به له امیر او د هغه له پوځیانو سره په کندهار کې حاضر یم او ټول مسؤلیت به پر خپله غاړه اخلم. موږ شپږځلوېښت ښه توپونه لرو او غښتلی افغان پوځ را سره دی. زه په داسي ځای کې یم، چې شرایط یې هر آن بدلېږي او زه ورته خوشاله یم، ځکه چې روغتیایي حالت مې ډېر ښه دی، ورته تکړه یم او په ټول ژوند کې عمل ته داسي تیار نه وم. (هغه کتاب، ص: ۱۸۳- ۱۸۴)

مکناټن د لارډ اکلینډ په هدایت برنس ته یو اوږد مکتوب ولیکی او په هغه کې یې په دې خبره وټراټه، چې ولي یې تر خپل صلاحیت اضافه اقدام کړی او ولي یې د کابل له امیر او د کندهار له سردارانو سره تر خپل صلاحیت اضافه وعدې کړې دي. برنس ته یې لیکلي ول چې په آینده کې به ټول کارونه له هدایت سره سم کوې. (هغه کتاب، ص: ۱۸۴- ۱۸۵)

له دې ځخه وروسته د برنس په سلوک کې ډېر تغیر راغی او هغه څه یې کول او ویل چې د ګورنرجنرال له خوا حکم او هدایت ورته کېدی. برنس وروسته له امیر سره څو بېنتیجې مجلسونه وکړل او بالآخره یې ورته وویل چې ګورنرجنرال غواړي، چې ته د رنجیت سینګهـ په فیصله قانع سې او هغه چې له پېښور سره هر څه کوي، هغه به کوي. که هغه پېښور په خپله ساتي او که یې سلطان محمدخان ته، چې امیر یې د خپل ځان له پاره تر رنجیت سینګهـ خطرناک بولي، سپاري، هغه یې خپل اختیار دی. دا بېنتیجې او ستړي کوونکي خبري تر هغه وخته پوري رواني وې، چې لارډ اکلینډ برنس ته هدایت وکړ چې د هند پر لور حرکت وکړي او برنس هم د (۱۸۳۸م.) کال د اپرېل پر شپږویشتمه له کابله روان سو.

لارډ آکلینډ د مؤرخ جان ویلیم کې په قول وروسته د ستاینې په وړه زړه ورتیا دا ومنله، چې په لندن کې تر ټولو صلاحیت لرونکي کسان په دې عقیده ول، چې هغه اقدامات چې د ده د نارضایت سبب سول (مطلب د برنس اقدامات دي [جهاني] )که عملي سوي وای نو تر ټولو بهتره نتیجه به یې ور کړې وای. (هغه کتاب، ص: ۱۸۵)

برنس وایي چې امیر دوست‌محمد خان د خپل هیواد د ټولو خلکو په څېر د آینده په باب اندېښمن وو او سړی ویلای سي، چې د دې اندېښنې له پاره یې دلیل هم درلود. هرات ډېر وخت

محاصره وو. که هرات سقوط کړی وای، نو بیا کندهار او ور پسې کابل ته خطر متوجه وو او که یې چیري د ایران حمله په شا تمبولې وای، بیا هم کابل ته خطر متوجه وو. امیر د خپل ختیځ ګاونډي له مرستي څخه مایوس سوی وو او نور نو مجبور وو، چي د خپل لوېدیځ ګاونډي لمني ته لاس واچوي. برنس وايي: کله چي کاته، د هغه نیت معلوم سو او په دې پوه سوم چي هغه له لوېدیځ ګاونډ سره دوستي په نیت کي لري، نو ما ته معلومه سوه، چي نور مي په هغه ښار کي پاته کېدل ګټه نه لري. (برنس، کابل، ص: ۲۰۹- ۲۱۰)

د ډيپلوماټانو او خبر ليکونکو له خوا ترتيب سوي ريپورټونه او ليکونه د هغه وخت په باره کي تر ټولو ښه اسناد دي او د تاريخ ليکني له پاره ډېر ښه مواد برابروي. اليکزانډر برنس له کابل څخه ډېر زيات ليکونه هند ته واستول، خو له بدهمرغه چي هغه ليکونه يا د کپتان وېډ او يا مکناټن له لاري لارډ اکلينډ ته رسېدل او څرنګه چي دې دواړو کسانو د افغانستان په باب، هم له برنس سره د نظر اختلاف درلود او هم يې د هغه له لياقت او فعاليت سره کينه او حسادت درلود، نو په دې مکتوبونو کي به يې لاس واهه او دا لاس‌وهني هغه وخت رسوا سوې، چي د برنس ملګرو او د کورنۍ غړو د هغه له وژل کېدلو څخه کلونه وروسته د هغه ځيني ليکونه له سره چاپ کړل. جان ويليم کې چي د دغه وخت د بريټانوي هند د پاليسيو او عملياتو په باب يې ډېر ګټور تحقيقات او ليکني کړي دي او د افغانستان په باره کي يې تر ډېرو زياتو مؤرخينو نسبتاً ښه قضاوت کړی دی، د برنس د مکتوبونو په باره کي، چي ډېري لاس‌وهني پکښي سوي دي، دا حقيقت روښانه کړی دی.

"... زه د داسي عمل په برخه کي خپله کرکه او نفرت نه سم پټولای، چي يو څوک د يوه دولتي مقام په لېږلو مکتوبونو کي لاس ووهي. مفاهيم يې واړوي او يا يې بېخي مسخ کړي. يو څل چي دروغ پر دروغ وويل سي او نړۍ په قانع کړل سي، بيا نو د دې تاوان نه جبيره کېږي. که دولتي مامورينو ته اجازه ور کړه سي، چي د ملت په مخ کي بې‌له واهمې دروغ ووايي او پر خپلو ګاونډيانو باندي د دروغو شاهدي ور کړي، نو بيا به شخصي مؤسسې او افراد د حقيقت د معلومېدلو تمه له چا څخه کوي. دلته چي موږ ګورو په دې اسنادو کي د دوست‌محمد د شخصيت په باره کي دروغ ويل سوي دي؛ د برنس د شخصيت په باره کي دروغ ويل سوي دي. د دې دواړو د شخصيتونو په باب ښکه دروغ خپاره سوي دي، چي د برنس په مکتوبونو کي داسي لاس‌وهني سوي دي، چي هغه يې بالکل مسخ کړي دي. په دواړو پوري هغه کارونه تړل سوي دي، چي دوی نه کول او هغه څه يې حذف کړي او پټ کړي دي، چي دوی کول. زه په دې کي نه يم چي دا اسناد چا خراب

کړي دي او حقیقتاً زه خبر هم نه یم. زه د پرنسیپ په باره کي رغېږم، نه له چا سره مخالف یم او نه د چا طرفداري کوم. رسمي اسناد هغه پاڼي دي چي مؤرخ استناد په کوي او لوستونکو ته حقیقت ښکاره کوي. دا نو ګواکي د هغي وروستی محکمې اسناد دي، چي لوستونکي مراجعه ورته کوي. که په دغو اسنادو کي هم لاس ووهل سي او د هغو کسانو په باره کي چي اسناد یې په باب ترتیبېږي، دروغ وویل سي او غلط معلومات ور کړه سي، نو مؤرخین به څه شي ته مراجعه کوي او لوستونکي به څه شي لولي... "(کې، ص:۱۹۵)

## ویتکیویچ

د نولسمي پېړۍ په دېرشمه لسیزه کي چي په افغانستان او شاوخوا ټوله سیمه کي د روسیې، بریتانیې او ایران د سیاسي رقابتونو او مخامخ جګړو کلونه ول، په افغانستان کي د روسیې او بریتانیې د رقابت په صحنه کي یو نوی لوبغاړی پیدا سو. هغه یو روسی صاحب منصب وو؛ ویتکیویچ نومېدی او لکه څرنګه چي یو ناڅاپه یې په صحنه کي پیدا کېدل معما وه، دغه راز له لنډي مودې وروسته د یوې معما په څېر ورک سو. د تزاري روسیې په پایتخت پیټرزبورګ کي یې د ځان له وژلو څخه مخکي خپل ټول ور سره یادداښتونه او کاغذونه سوځولي ول، نو خپل تقریباً ټول رازونه یې ګور ته ور سره یووړل.

پولینډي اصله ویتکیویچ په څوارلس کلني کي د روسیې په پایتخت پیټرزبورګ کي د تزاري روسیې د استبدادي نظام پر ضد د تورو ورونو په نوم د یوه پټ سازمان اساس کښېښود او د شب نامو د خپرولو له لاري یې خپل قهر اوغوسه ښودله. ډېر ژر له خپلو ملګرو سره ونیول سو. د سازمان دري مشران چي ویتکیوچ هم پکښي شامل وو، په اعدام محکوم سول. دوه تنه په عمر نسبتاً مشران ملګري یې اعدام سول او دی د عمر د ډېر کموالي له امله له اعدامه خلاص سو او د خپلو نورو ملګرو سره سایبیریا ته تبعید سو. د سایبیریا د کار د کمپونو او بندیخانې په سختو شرایطو کي یې، چي لس کاله یې ونیول، د ژوندي پاته کېدلو او آینده په برخه کي هیڅ امید له لاسه ور نه کړ او په کمپونو او د اجباري عسکري خدمت په شپو، ورځو کي یې فرانسوي، قزاقي، چغتایي او ترکي ژبې زده کړې. کتابونه یې مطالعه کړل د قزاقانو او قیرغیزیانو سره د لیدنو کتنو له لاري یې د شرقي خلکو

د ژوند له طرز او رواجونو سره ځان آشنا کړ؛ حتی ویل کیږي چې ټول قرآن شریف یې په یاد کړ او د کمپونو په همدغو سختو شرایطو کې یې د روسي افسرانو او جنرالانو توجه ځان ته واړوله او له عادي عسکر څخه یې د ضابطی رتبې ته لوړ کړ. دوه ځله یې بخارا ته واستاوه او کله چې د هند پر لور د روسي قواوو د حرکت او یا لږ تر لږه په شرق کې له بریتانیې سره د روسانو د رقابت موضوع توده سوه، نو روسي مقاماتو په خپل ټول پوځ کې د ځوان ویتکیویچ په څېر بل داسې څوک نه درلود، چې ایران او افغانستان ته دې د ده په څېر د صلاحیت لرلو او اعتماد وړ وي.

روسیې او بریتانیې دواړو له مرکزي اسیا سره یو شان علاقه درلوده. روسیې هغې سیمې ته د خپل نفوذ د ساحې په سترګه کتل او نه یې غوښتل چې د لوېدیځ بل هیواد دې په هغه ځای کې نفوذ ولري. بریتانیه په مرکزي اسیا کې د روسیې له زیات او چټک پرمختګ څخه ځکه په وېره کې وه، چې هسې نه یوه ورځ یې د افغانستان، ایران او هند لور ته مخه نه سي. دواړو هیوادونو په بخارا کې جاسوسان درلودل او دواړو د یوه بل حرکات څارل.

ویتکیویچ دوه ځله بخارا ته ولېږل سو. لومړی ځل یې د یوه قرغیزي سوداګر په جامه کې سفر وکړ او دوهم ځل د روسیې د حکومت د یوه رسمي مامور په حیث بخارا ته ولاړ. ویتکیویچ وایي: کله چې دوهم ځل بخارا ته ولاړم، په ښار کې زما څخه سمدستي خلکو د اسکندر په باره کې پوښتنه وکړه. ما فکر کاوه چې مطلب یې سکندر کبیر دی، خو وروسته پوه سوم چې د دوی مطلب الکزانډر برنس دی. ویتکیویچ دې پوښتنې ځکه د موضوع حساسیت ته متوجه کړ، چې هغه بخارا ته د برنس د سفر په باره کې مشهور کتاب لوستی وو او په دې پوهېدی چې برنس له هغه ښار او سیمې سره ولې دومره زیاته علاقه ښودلې ده. ویتکیویچ له هغه څخه وروسته په هغه ښار کې د برنس د جاسوسي شبکې د کشفولو په لټه کې سو. ویتکیویچ ډېر ژر پیټرزبورګ ته رپورټ ور کړ چې: "بریتانیه په بخارا کې خپل سړی لري. هغه یو کشمیری دی، چې نظام الدین نومېږي او دا څلور کاله کیږي، چې په بخارا کې د یوه سوداګر په جامه کې ژوند کوي. ډېر ځیرک سړی دی او له هر چا سره راشه درشه لري او د بخارا اشرافو ته مېلمستیاوي کوي. په هفته کې لږ تر لږه یو ځل کابل ته پټ پیغامونه لېږي. دا پیغامونه د مېسن په نوم یوه انګرېز ته لېږي او هغه یې خپلو مربوطو مقاماتو ته رسوي. ډېره عجیبه خبره دا ده چې دوست‌محمد خان د مېسن په فعالیتونو خبر دی، خو ځان نه پوهوي. دوست‌محمد خان حتی دغه پیغامونه را ګرځولي او لوستي یې دي، مګر وایي چې یو واحد سړی ما ته تاوان نه سي رسولای. دوست‌محمد خان ظاهراً نه غواړي چې اروپایان له ځان

ځخه خوابدي کړي، ځکه نو مېسن ته هیڅ نه وایي. دا سړی د پښوانیو سکو د پیدا کولو په پلمه په کابل کي اوسېږي. (ډال ریمپل، ص: ۷۹)

نظام الدین د خپل معمول سره سم ویتکیویچ ته مبلمستیا وکړه. ډېري زیاتي پوښتني یې ور ځخه وکړې. البته ویتکیویچ مخکي له مخکي ورته متوجه وو او د پوښتنو جوابونه یې ښایي د نظام الدین ډېر په درد نه وي لګېدلي؛ خو په هر صورت ویتکیویچ خپل ریپورټ خپل مرکز ته ور کړ او نظام الدین خپل ریپورټ کابل ته واستاوه.

ویتکیویچ په دغه سفر کي په تصادفي توګه د دوست‌محمد خان له استازي میرزا حسین علي سره مخامخ سو، چي دوست‌محمدخان د روسیې له پاچا تزار نیکلاس سره د کتلو وظیفه ور کړې وه. په کندهار کي له شاه‌شجاع سره د (۱۸۳۴م.) کال له جنګ ځخه مخکي دوست‌محمد خان فکر نه کاوه، چي د بریټانیې حکومت دي د ده د نسکورولو او د شاه‌شجاع د پاچا کولو په لټه کي وي، خو د شاه‌شجاع له ماتي ځخه وروسته دوست‌محمد خان ته د کپتان ویډ لاس ته ورغلو لیکونو د هغه په زړه کي د بریټانیې د دښمنی په باره کي هیڅ سوال پرې نه ښود.

امیر دوست‌محمد خان د خپل قوي ختیځ ګاونډي په مقابل کي چي بې‌له هیڅ دلیله یې له ده سره دښمني پیل کړې وه، یوه بل زورور دوست هیواد ته اړتیا درلوده او هغه له روسیې پرته بل څوک کېدلای نه سوای.

امیر دوست‌محمد خان تزار ته لیکلي ول چي افغانستان د بریټانیې د پراختیا غوښتني د سیاست له کبله په خطر کي دی. د هغوی دغه پراختیا غوښتنه په مرکزي اسیا او د روسیې په جنوب کي په نورو سیمو کي د هغه هیواد ته خطر پیښوي. که چیري افغانستان له بریټانیې سره په جګړه کي ماته وخوري، نو دا به په بخارا کي د روسیې تجارت ته خاتمه ور کړي. (هغه کتاب، ص: ۸۰)

کله چي میرزا حسین علي ویتکیویچ ته خپل د سفر هدف ووایه، نو ویتکیویچ روسي مقاماتو ته په ډېره خوشالي ریپورت ور کړ او و یې لیکل چي د کابلستان واکمن دوست‌محمد خان د روسیې ملاتړ غواړي او چي روسیه هر څه ور ځخه وغواړي، هغه مني. ویتکیویچ له میرزا حسین علي سره لومړی اورینبورګ او له هغه ځایه پیټرزبورګ ته روان سو.

میرزا حسین علي په لاره کي د اسهال په ناروغي اخته او کمزوری سو او ډېر زیات سفر یې نه سو کولای. ویتکیویچ د هغه د استراحت کولو له پاره په هر ځای کي تم کېدی او د هر ځای تم

کېدلو او استراحت کولو په ترڅ کې یې له هغه څخه درې ژبه زده کوله. څوارلس کاله مخکې د تزار رژیم ویتکویچ په داسې حال کې چې لا تنکی هلک وو، سایبیریا ته ځنځیر پېچه واستاوه او دا ځل چې کله دې ښار ته ورسېدی، په خپله تزار هغه ته مبارکي لېږلې وه، له هغه سره خبرو ته حاضر سوی وو او هغه ته یې د ضابط رتبه ور کړه. مستقیماً د روسیې د صدراعظم د مرستیال او خارجه وزیر کونټ نیزلروډ دفتر ته معرفي سو.

د میرزا حسین علي خبر د روسیې په ټولو هغو مقاماتو کې هنگامه جوړه کړه، چې په مرکزي اسیا کې یې له ستري لوبې سره علاقه درلوده. په ایران کې د روسیې سفیر کونټ سیمونیچ پیټرزبورگ ته ولیکل چې دا فرصت باید له لاسه ور نه کړو، ځکه چې په ایران کې د بریټانیې نفوذ ورځ په ورځ کمزوری کیږي. اوس هغه فرصت لاس ته راغلی دی، چې روسیه، کابلستان او ایران په یوه تړون کې شامل کړو. بریټانیه به د اباسین د ختیځې غاړې د ساتلو په غم کې وي او نور به روسیې ته په مرکزي اسیا کې د ستونزو د پیدا کولو واک او وخت نه لري. پر دې برسېره به په کابل کې د روسیې له سیاسي نفوذ سره په افغانستان کې د روسیې د مالونو له پاره بازارونه پرانیستل سي.

د اورینبورگ گورنر له دې نظر سره بشپړه موافقه وښودله او و یې لیکل: "د کابل واکمن دوست محمد خان باید په مطلق ډول حمایه سي؛ ځکه چې که بریټانیه خپل گوډاگی د کابل پر تخت کښېنوي، نو هغه هیواد به د بریټانیې تر کنټرول لاندې راسي او بریټانیه به له بخارا څخه یوازې یو گام فاصله ولري. مرکزي اسیا به ټوله د بریټانیې تر نفوذ لاندې راسي؛ له اسیا سره به زموږ تجارت ختم سي او بریټانیه به وکړای سي، چې گاونډیو اسیایي ملکونو ته وسلې ور کړي او د روسیې پر ضد به له وسلو سره پیسې هم ور وشیندي. که دوست‌محمد خان د روسیې تر سرپرستۍ لاندې وي، نو دی به بې‌له شکه د روسیې تر احسان لاندې وي او زموږ ټینگ ملگری او د بریټانیې دښمن به وي. دی به له مرکزي اسیا سره د هغوی اړیکې وشلوي او د هغوی د محبوب تجارتي قدرت په مقابل کې به یو خنډ ایجاد کړي."

د اورینبورگ گورنر دغه راز پېشنهاد وکړ چې ویتکویچ ته باید وظیفه ور کړه سي، چې د دوست‌محمد استازی بیرته کابل ته ورسوي، ځکه چې دی تر نورو ټولو کسانو لایق او تکړه دی. د سیمې د خلکو له عاداتو او کلتور سره بلد دی. موږ نه په ژوندیو او نه په مړو کې د ده په څېر وارد او وړ سړی لرو.

خارجه وزیر نیزلروډ تزار ته پېشنهاد وکړ، چې افغانستان ته یو تجارتي او ډیپلوماټیک هیأت

واستوي. ده ولیکل چې دا پروا نه لري چې دا هیوادونه زموږ څخه ډېر لیري دي او یا موږ د هغوی په باره کې ډېر محدود معلومات لرو، خو له دې سیمې سره د تجارتي اړیکو ټینګول په هر صورت زموږ په ګټه دي. ستونزه دا ده چې میرزا حسین علي ډېر ناروغ وو او سفر یې نه سو کولای، بالآخره فیصله پر دې وسوه چې ویتکیویچ دي دا سفر یوازي وکړي.

د (۱۸۳۷م.) کال د مې پر څوارلسمه ویتکیویچ ته یوه سلسله لیکلي هدایتونه ور کړه سول، چې له دوست‌محمد خان سره د تجارتي اړیکو د پرانیستلو په باب هدایتونه پکښې راغلي ول. د روسیې یوه منبع وایي چې ویتکیویچ ته شفاهي هدایتونه ور کړه سوي ول، چې د هغو په اساس دوست محمد خان ته له رنجیت سینګهـ سره د جنګ د تمویلولو په منظور د دوو میلیونو روبلو مرستي پیشنهاد وکړي. دغه راز باید له دوست‌محمد خان سره د خپل ژمني پایتخت پېښور د بیرته تر لاسه کولو له پاره، چې په (۱۸۳۴م.) کال کې یې د شاه‌شجاع او رنجیت سینګهـ تر منځ د تړون په اثر له لاسه ور کړی وو، پوځي مرستي هم وکړي. ده ته دغه راز هدایت ور کړه سوی وو، چې د کندهار له سردارانو سره به هم خبري کوي او هغوی به د کابل له واکمن سره یووالي ته را بولي. ده ته هدایت ور کړه سوی وو چې د افغان واکمنانو تر منځ سوله تر ټولو مهمه ده. د کندهار سردارانو ته باید وویل سي، چې د دوی او د کابل د واکمن تر منځ اتحاد هم د بهرني دښمن په مقابل کې د دوی متې غښتلي کوي او هم له داخلي ستونزو او ښورښونو څخه بې‌غمه کیږي. ویتکیویچ ته ویل سوي ول چې د خپل سفر په ترڅ کې مفصل یادداښتونه واخلي، د افغانستان د اوسني حالت په باب معلومات تر لاسه کړي د تجارت، مالي وضعي، پوځ او له برتانیې سره د افغان واکمنانو د سلوک په برخه کې معلومات ولیکي. (هغه کتاب، ص: ۸۱- ۸۳)

د سید قاسم ریشتیا دا ادعا د تأمل وړ ده، چې وایي انګرېزان د روسیې او امیر تر منځ په اړیکو خبر ول او روسیې ته د امیر مکتوبونه په خپله د انګرېزانو رسمي واقعه‌نګار موهن لال ورته لیکل او انګرېزان په دې پوهېدل، چې د دې مکتوبونو د لیکل کېدلو او استول کېدلو څخه د امیر مطلب دا دی، چې د انګرېزانو توجه ور واړوي. (ریشتیا، ص: ۷۷)

دا غلط فهمي په تهران کې د روسیې له سفیر کونټ سیمونیچ سره هم موجوده وه. هغه ویتکیویچ ته خبرداری ور کړ، چې انګرېزان د هغه په ماموریت خبر دي او له انګرېزانو څخه یې د ویتکیویچ د ساتني له پاره له هغه سره روسي عسکر ملګري کړل. (ډال ریمپل، ص: ۸۲)

دوست‌محمد ته لېږلی او زما څخه یې غوښتي دي، چي د هغه د دغه سفر په لاره کي مرسته وکړم.
(ډال ریمپل، ص: ۷۳)

کابل ته د ویتکیویچ د رسېدلو رپوټونه له هغه څخه ډېر مخکي ورسېدل. د کندهار سردارانو چي ویتکیوچ د خپل حکومت له خوا د هغوی له پاره پیغامونه او سوغاتونه درلودل، د هغه تود هرکلی وکړ. هغه د (۱۸۳۷م.) کال د ډیسمبر په میاشت کي کابل ته ورسېدی. کابل ته د هغه له رسېدلو څخه مخکي دوست‌محمدخان چي لا یې هم له بریتانیې سره د دوستي ټینګولو ته امید درلود، برنس ته وویل چي که د ده خوښه وي، د روسیې استازی به بیرته جواب کړي او کابل ته به د را تللو اجازه نه ور کوي، خو برنس ورته وویل چي د تمدن قوانین دا ایجابوي، چي هغه ته کابل ته د را تللو اجازه ور کړي. ویتکیویچ کابل ته ورسېدی او دوست‌محمدخان یې ډېر سوړ هرکلی وکړ.

خو دا هغه ورځي وې، چي امیر دوست‌محمدخان له رنجیت سینګهـ څخه د پېښور او شاوخوا علاقو په بیرته اخیستلو کي د بریتانیې له مرستي څخه لاس پرېولی وو. د برنس بخت کار نه کاوه. د افغانستان په برخه کي د بریتانیې پالیسي د ده د نظر په خلاف روانه وه. برنس خپل ټول کوښښ وکړ، چي ګورنرجنرال او د بریتانیې د حکومت مقامات په افغانستان کي واقعیتونو ته متوجه کړي او افغانستان ته یې د یو ګوډاګي پاچا د را وستلو تاوانونو ته توجه واړوي؛ خو چا د هغه پر خبره غوږ و نه نیوی او لارډ اکلینډ د هغه له پاره هیڅ امید نه وو پرې ایښی؛ نو ده هم خپلي شپې تېرولې.

انګرېزانو له لویه سره هم پر رنجیت سینګهـ باندي زیات حساب کړی وو او د هغه پر قوي او منظم پوځ یې، چي د روزلو له پاره یې تکړه اروپایي صاحب منصبان استخدام کړي ول، ډېر حساب کاوه او هغه یې د خپلي هندی مستعمرې په مخ کي د یوه مستحکم دېوال په حیث استعمالاوه. په وروستیو شپو، ورځو کي یې له هغه سره د دوستی تړون هم لاسلیک کړی وو او ګورنرجنرال لارډ آکلینډ نه غوښتل چي خپل قوي ملګری د یو بل نسبتاً کمزوري مشر پر ځای، چي په خپله په یو عالم داخلي جنجالونو لګیا وو، له ځان څخه خوابدی کړي. لارډ اکلینډ له دوست‌محمدخان سره د داسي روغي جوړي کولو مخالف وو، چي هغه د رنجیت سینګهـ په تاوان وای. هغه نه سوای کولای چي رنجیت سینګهـ دې ته وهڅوي، چي پېښور خپل د سر دښمن دوست‌محمد خان ته پرېږدي. برنس پیشنهاد کاوه چي له دوست‌محمد سره دي داسي یوه پټه روغه جوړه وسي، چي د رنجیت سینګهـ له مرګ څخه وروسته به، چي ډېر لیري نه دی، پېښور هغه ته ور کړه سي. لارډ اکلینډ دا پیشنهاد منظور نه کړ. وروسته دوست‌محمد خان پیشنهاد وکړ، چي که رنجیت سینګهـ پېښور ده ته

پرېږدي، دی به خپل زوی د هغه دربار ته د یرغمل په توګه واستوي. خو دا پېشنهاد یې هم چا و نه مانه.

په دې برخه کي ډېري اوږدې او سترې کوونکي خبري وسوې او بالآخره د (۱۸۳۸م.) کال د جنوري پر شلمه ګورنر جنرال دوست‌محمد خان ته لیک واستاوه او ورته و یې لیکل چي نور دي دا تمه نه کوي، چي رنجیټ سینګهـ به د انګرېزانو په زور د پېښور پرېښودلو ته مجبور کړي او په عوض کي یې ورته ولیکل چي د سیکهانو له مشر سره به د ده د اختلاف د پای ته رسولو په کوښښونو کي برخه واخلي. ګورنرجنرال دوست‌محمد خان ته ولیکل چي که د سیکهانو له مشر رنجیټ سینګهـ سره غرض و نه کړي، هغه به هم له ده سره غرض نه کوي. له دې لیک څخه وروسته لارډ اکلینډ دوست‌محمد خان ته تر دې هم توهینوونکی لیک واستاوه او هغه ته یې ولیکل چي که د روسیې له سفیر سره د ده له شخصي منظورۍ پرته کومه موافقه وکړي، نو بیا دی هم پر افغانستان باندي د رنجیټ سینګهـ د پوځونو د حملې د مخنیوي مسؤلیت نه لري. (کوریس پانډینس، ص: ۴۲۹)

سره له هغه چي لارډ آکلینډ او برنس دواړو امیر ته داسي جوابونه ور کړل، چي له هغه سره یې د هیڅ ډول مرستي تمه پرې نه ښودله، خو هغه د یو هوښیار مشر په حیث په دې پوهېدی، چي که هر ډول حل غواړي، نو له دې قدرت څخه په سیمه کي چاره نه لري. امیر د (۱۸۳۸م.) کال د مارچ پر یوویشتمه لارډ اکلینډ ته ولیکل:

"کله چي ما ستا د حال احوال او روغتیا په باب پوښتنه وکړه او په مقابل کي مي ستاسي له مهربانۍ ډک لیک تر لاسه کړ، نو زه ډېر خوشاله سوم. ستاسي د لیک په متن زه ښه پوه سوم او په هغه کي تاسي د افغانستان له خلکو سره تر یوه ټاکلي حده د مرستي ژمنه کړې وه او دا مو ښودلې وه، چي تاسي به له هغوی سره په خاصو شرایطو کي څومره کومک وکړئ او زه په هغه پوره ورسېدم.

ما د سیکهانو له حکومت سره د خپلو اختلافاتو د حلولو په باره کي تاسي ته څو ځله خواستونه وکړل او تاسي جلالتماب د مهربانۍ له مخي کپټان الکیزانډر برنس کابل ته را واستاوه.

په دې ضمن کي نوري خبري هم پېښي سوې. د ایران پاچا پر هرات باندي پوځونه ور رهي کړل او د هغه دې عمل د اباسین پر دې غاړه باندي د مسایلو حلېدل وځنډول. څرنګه چي ما د بریټانیې

پر دوستۍ باندې تکيه کړې وه، نو مې د ايران وروستي حرکت ته چنداني اهميت ور نه کړ. کپتان برنس ته معلومه ده، چې ما د کندهار سردارانو ته له ايران سره د هر ډول تماس نه نيولو په برخه کې ټينګه وليکل.

تر دې وروسته د روسيې امپراطور موږ ته خپل ايلچي را واستاوه او زما له پاره يې د هغه اعليحضرت ليک ور سره راوړی وو او ما هغه ليک او خپل جواب دواړه برنس ته وښودل؛ چې ما د خپلې نااميدۍ په حال کې ليکلي ول.

ما له هغه وخته بيا د روسيې هيڅ ليک ته جواب نه دی ويلی. څرنګه چې واوره اورېدلې وه او لارې بندې وې، نو ما لازمه و نه بلل، چې په هغه بنده لاره کې د روسيې ايلچي له کابل څخه وباسم، مګر اوس چې لارې سمې سوې دي، نو زه به هغه جواب کړم او ورته و به وايم، چې دی کولای سي خپل هيواد ته صحيح، سلامت ورسېږي.

له هغه ځا څخه چې د خير تمه ور څخه کېدلای سي، د ضرورت په وخت کې د خپلو اهدافو څرګندول مناسب کار دی. تاسې جلالتماب د سخاوت او مهربانۍ سرچينه ياست؛ ځکه نو زه يو ځل بيا خپل عرايض درته وړاندې کوم او ستاسې څخه انتظار لرم، چې افغانان له مشکلاتو څخه وژغورئ او د هغوی ملکونه پراخ کړئ.

که تاسې جلالتماب د افغانانو ستونزې حل کړئ، دوی او د دوی راتلونکې نسلونه به ستاسې منندوی وي. تاسې به ښه نوم وګټئ او دوی به د بريتانيې له حکومت سره په دوستۍ کې ستاسې له پاره داسې خدمتونه وکړي، چې تاسې به ور څخه خوشاله سئ. د ايران پاچا اوس حاضر هرات محاصره کړی دی، مګر که تاسې جلالتماب زموږ لږ ملاتړ وکړئ او لږه اندازه مرسته را سره وکړئ، د ايران پاچا به بيا هيڅ وخت د افغانانو پر هيواد باندې د حملې کولو جرأت و نه کړي.

ستاسې د مهربانۍ توصيف زما په قلم نه سي ليکل کېدلای، مګر زه هيڅ نه پوهېږم چې تاسې ولې د افغانستان خلک په هيڅ کې نه بولئ. د افغانستان د ختيځ د چارو حل همداسې پاته دی، په لوېديځ کې ناکراري رواني دي او د دې هيواد ټول خلک په ځانونو پورې حيران دي. دا نو څرنګه ممکنه ده چې دا هيواد به په دغه حال کې له راتلونکو خطرونو څخه په امان کې پاته سي؟ زما په زړه کې دا نه را ګرځي چې له بريتانيې پرته دې له بل قدرت سره دوستي او اتحاد وکړم.

که موږ د لوېديځ له خوا د دښمن د پرمختګ د مخنيوي فيصله وکړو، زما دونه په وس پوره نه

ده، چي د دې کار له پاره اقدام وکړم. که هرات د ایرانیانو لاس ته ولوېږي، نو دا د ټول افغانستان وجود ته جدي خطر پېښوي. کله چي یو سړی مجبور سي نو هغه ډېر داسي کارونه کوي، چي په دې پوهېږي چي هغه ښه نه دي. زه هیله لرم چي هرات به هیڅ کله د قاجاریانو لاس ته و نه لوېږي او په هغه صورت کي به د افغانستان د هغي سیمي خلک مجبور وي چي هغه قدرت ته تسلیم سي.

د کندهار سرداران یو څه له وېري، یو څه له کمزورۍ او یو څه د نا امیدۍ له کبله ځانونه په لوی لاس مرګ ته ور کوي. که دوی له ایران سره ملګري سي او زه هم هغوی و نه ساتلای سم، نو دا به افغانستان ته ډېر زیات تاوان ورسوي.

که دغسي شیان پېښېږي، نو تاسي جلالتماب د کوم علت له مخي زموږ پر عریضو غوږ نه نیسئ او ولي زموږ ساتنه نه کوئ؟

که تاسي جلالتماب موږ ته یو لږ څه اطمینان او یو څه مرسته را کړئ، نو د محمدشاه له پاره به دا ناممکنه وي، چي روغ به خلاص سي او هغه مالونه او توپونه به ور سره یوسي، چي اوس حاضر یې هرات ته را وړي دي.

که تاسي جلالتماب مهرباني وکړئ او د افغانستان او خپل زاړه او لوی ملګري مهاراجا رنجیت سینګه تر منځ د اختلافاتو د حلولو زحمت پر ځان ومنئ، نو دا به څرنګه ممکنه وي چي موږ به اعتراض وکړو او یا به د دیوې مناسبي سولي سره مخالفت کوو؟

ما د یوې ښې راتلونکي په امید ستاسي جلالتماب پر مهرباني باندي تکیه کړې ده، ځکه چي په کار کي ځنډ د خطر وېره پیدا کوي.

کپتان برنس به تاسي جلالتماب ته زما د ستونزو او چارو په باب ټوله کیسه وکړي، لطفاً ما ته د جواب افتخار را وبخښئ. (هغه کتاب، ص: ۴۴۱- ۴۴۲)

الیکزانډر برنس تر هغه وخته پوري چي امکان یې درلود، د افغانستان او په تېره بیا د امیر دوست محمد خان په باره کي د بریتانوي هند د مقاماتو د نظر د بدلولو کوښښونه وکړل. هغه په یوه مفصل لیک کي د افغانستان پر وضع باندي، که څه هم چي مخکي یې هم لیکني کړي وې، له سره رڼا واچوله او د بریتانیې مقاماتو ته یې ولیکل چي د افغانستان د قدرت د دریو مرکزونو؛ پېښور، کابل او کندهار یو ځای کېدل، د سیمي او هند د امنیت په ګټه دي. ده ولیکل: "افغانانو له ایران سره ټولي اړیکي شکولي دي او دا دوه علته لري؛ یو دا چي دوی پوهېږي چي دا کار د دوی په ګټه دی او

بل دا چي د هغوی دغه عمل د بریتانیې د غوښتنو سره برابر دی او دوی غواړي، چي له بریتانیې سره دوستي ولري. مگر موږ له دوی سره هیڅ ډول مرسته نه ده کړې. دوی مو له خطر سره مخامخ کړي دي او له افغانستان څخه مو د پېښور له بېلبدلو سره هغه هیواد فلج کړی دی؛ په داسي حال کي چي که دا درې مرکزونه سره یو ځای وای، نو افغانانو به د ایران هره حمله پر شا تمبولې وای. پر دې برسېره امیر خپل نایب ته ویلي ول، چي ما ته د قنبرعلي خان او د کندهار د سردارانو تر منځ د تړون شپړمه ماده ووایي، چي د هغې په وسیله د روسیې حکومت دا ذمه وهلې ده، چي که کندهار ته څه ور پیښېږي او دا ښار د سردارانو له لاسه وځي، نو د ایران پاچا به سردارانو ته په خپل هیواد کي د کندهار په اندازه مځکه ور کوي."

برنس د سردارانو تر منځ د بې اتفاقۍ د له منځه وړلو په باب مکناټن ته ولیکل چي که د سردارانو تر منځ اختلافات حل سي، نو دی چي هم یې ایران او هم یې افغانستان لیدلی دی، په دې عقیده دی، چي د ایران شاه به پر افغانستان باندي قدرت و نه لري او که له دوی سره مرسته وسي، نو دوی بریتانیې ته تر ایران زیاته گټه رسولای سي.

برنس وایي چي یوه شپه امیر په خپله د ده کور ته ورغی او دونه خپه او زهیر وو، چي ده هیڅ وخت په داسي حال کي نه وو لیدلی. امیر ورته ویلي ول چي ستاسي حکومت دی پر هیڅ نه شماري او د ده دوستي چنداني ورته مهمه نه ده. برنس وایي: امیر ورته وویل چي بریتانوي مقامات وایي چي امیر باید خپل ځان نېکمرغه وبولي، چي رنجیت سینگھ پر کابل باندي حمله نه ده کړې؛ په داسي حال کي هغه له سیکهانو څخه هیڅ وېره نه لري. امیر برنس ته ویلي ول چي ستاسي حکومت فکر کوي، چي ما له روسیې سره دوستي غوره کړې ده، خو دی اوس هم له بریتانیې سره دوستي غواړي. دی پوهېږي چي روسیه ډېر لوی پوځ او طاقت لري، خو هغه له افغانستان څخه ډېر لیري پروت هیواد دی او افغانستان ته یوازي د ایران له لاري رسېدلای سي. برنس وایي: امیر ورته وویل چي هغه به هیڅ کله په محمدشاه اعتماد و نه کړي. که هغه د افغانستان پر لور پرمختگ وکړي، نو دی به تر وروستي سړي پوري له هغه سره وجنگېږي، ځکه چي هغه د افغانانو دښمن دی. مگر ده زیاته کړه چي تر دې چي سیکهان د ده حکومت ته سقوط ور کوي، نو تر هغه به ځکه محمدشاه بهتر وي، چي هغه لږ تر لږه مسلمان دی. برنس وایي: امیر ورته وویل چي نه له سیکهانو څخه وېره لري او نه له ایران څخه؛ ځکه هغه پیسې او خزانې چي د سدوزیو د قدرت په اوج کي په کابل کي ذخیره سوي وې، نو نه سیکهانو وړي او نه ایرانیانو تښتولي دي، بلکي د داخلي جنگونو او بې اتفاقیو له امله تباه سوي او له منځه تللي دي. (هغه کتاب، ص: ۴۴۵-۴۴۶)

## الیکزانډر برنس ته د امیر دوست‌محمد خان لیک

د (۱۸۳۸م.) کال د اپرېل درویشتمه

ما ستا یادداښت ولوست او په مطلب يې پوه سوم. که څه هم ما ستا سره څو ځله خبري کړي او خپل مطلب مي درته روښانه کړی دی، خو بیا به يې هم درته تکرار کړم.

مشهد ته د عباس میرزا د رسېدلو او د کوکن او سرخس له لاندي کولو څخه وروسته، د بریتانیې حکومت په کابل کي کرامت علي د خبر لیکونکي په حیث مقرر کړ او ما د هغه له لاري ستاسي له حکومت سره مکاتبه پیل کړه او په هر لیک مي دا انتظار درلودی، چي له بریتانیې څخه به ډېره گټه تر لاسه کړم.

کله چي سیکهانو د مهاراجا رنجیت سینگهـ په خوښه او یا په خپل سر پېښور ونیوی؛ ما دا ټوله وضع او حالات په هند کي د بریتانیې حکومت ته بیان کړل. په دې باره کي مي کپتان وېډ ته هم لیکونه واستول او له دې لیکونو څخه مي مطلب افغانستان ته د پېښور بیرته ور کول ول. د پېښور په باب چي زما او د مهاراجا رنجیت سینگهـ تر منځ خطونه تبادله سوي دي، ټول مي د چارلس مېسن له لاري ستاسي حکومت ته استولي دي. کله چي د بریتانیې حکومت زما له نظر او غوښتنو څخه خبر سو، نو ته يې را واستولې.

زما له زوی محمداکبرخان سره د سردار هري سینگهـ له مقابلې څخه وروسته د سیکهانو مقاماتو او محمداکبر خان یوه بل ته لیکونه واستول او ما هغه تاسي ته د مېسن له لاري ولېږل او په هر ځای کي مي د پېښور نوم یاد کړی دی.

کله چي ته کابل ته را ورسېدلې او زما د غوښتنو په باره کي دي پوښتنه را څخه وکړه، نو ما هغه ټول درته وویل چي په لیکونو کي مي لیکلي ول او تا ته مي بیان وکړ. زموږ سره د پېښور د بیرته اخیستلو هیلي پیدا سوې. تا هم زما د نظریاتو په باب حکومت ته ریپورټ ور کړ او چي له هغې ورځي تر اوسه پوري څه پېښ سوي دي، هغه ټول تا ته معلوم دي.

د خواشینی او خپگان په تېرو ورځو کي چي ما د بریتانیې له حکومت څخه داسي څه وا نه وربېدل، چي زما زخمونه دي تداوي کړي، نو زه مجبور سوم چي له روسیې، ایران او ترکستان له حکومتونو څخه مرسته وغواړم او له هري خوا قناعت بخښونکي او خوشالوونکي جوابونه راته را

ورسېدل. مګر کله چې ته راغلې او زما په خپله هم له بریتانیې سره دوستي زړه غوښتی، نو له دې ټولو هیوادونو څخه مې هیله وشلوله او په دې ټولو ته خبر یې. خو ما ستاسي د حکومت له خوا د خواخوږۍ هیڅ پیغام وا نهورېدی.

د بریتانیې ټولو افسرانو ویل چې دوی د افغانستان خواخوږي او دوستان دي او زما فکر دا وو، چې تاسي به افغانستان وساتئ، چې هغه هرات، کندهار، کابل او پېښور دی. کله چې محمدشاه د هرات سیمې ته داخل سو، تا ښاغلی لیچ د کندهار سردارانو ته واستاوه او هغوی ته دې پیغام ور کړ، چې د پیسو او پوځیانو مرسته به ور سره وکړې. موږ د انګرېزانو سره په دوستي کې خیر ولیدی او ځکه مو له نورو سره ټینګه دوستي پیل نه کړه.

د کندهار سردارانو ستا د لیک له لوستلو سره د محمدشاه دربار ته د خپل زوی د لېږلو پلان پرېښود او ستا لیک یې د افغانستان سره ستاسي د خواخوږۍ ثبوت وباله. مګر تر دې ورځې پوري نه پېښور بیرته له افغانستان سره یو ځای سوی دی او نه موږ د ایران د محمدشاه له خطره بې غمه سوي یو.

دا چې ته وایې چې ته د پېښور د مسئلې د حلولو له پاره را لېږل سوی یې او له نورو چارو سره غرض نه لرې، نو تا بیا څرنګه ښاغلی لیچ کندهار ته واستاوه؟ زما د ورور سردار مهردل خان له راتللو څخه مخکي او وروسته ما هر وخت ستا سره د پېښور د بیرته تر لاسه کولو او له ایران څخه د کندهار د ژغورلو په باب خبري کړي دي. ما هیڅ وخت پرته د افغانستان له ګټو پر بله موضوع ستا سره خبري نه دي کړي. ستاسي د حکومت په لیکونو کي له پیل څخه تر پایه پوري ما ته اطمینان را کول کېدی او ما هیله درلوده، چې پېښور به بیرته افغانانو ته ور کړه سي او افغانستان به خوندي سي. ما دا خبره له هیچا څخه پټه نه کړه او ټولو ته مې څرګنده کړه، چې ته زموږ سره خواخوږي لرې.

انسانان د خپل هدف د تر لاسه کولو له پاره خپل ټول تلاښ کوي او کله چې زه ستاسي له حکومت څخه د هیڅ مرستي او خواخوږي هیله و نه لرم، نو زه مجبور یم چې له نورو حکومتونو څخه مرسته وغواړم. زه به دا مرستي د افغانستان د ساتلو او د خپل عزت د خوندي کولو له پاره غواړم، نه دا چې خدای مه کړه د بریتانیې پر ضد به یې تر لاسه کوم.

تا ما ته لیکلي دي چې له لویدیځو هیوادونو څخه د مرستي اخیستل به دلته وضع خرابه کړي او نتیجه به یې پښېماني وي. که دا زما د ښو هیلو جواب وي او دا د لویو هیوادونو قانون وي، نو زموږ د هیواد توکل دي هم پر هغه خدای وي، چې د ټولي نړۍ خیر او شر یې په اراده کي دی. افغانانو

هیڅ داسي بد کار نه دی کړی، چي نور هیوادونه یې په ملامت کړي او نه یې له انګلیسیانو څخه تاوان لیدلی دی.

له هر هیواد سره زما د اړیکو د ټینګولو هدف به د افغانستان ساتل او پراخول وي او په دې تېرو اوو میاشتو کي چي هر څه په ویلو ارزېدل، هغه مي درته ویلي دي او تا ته اوس ښه او بد ټول در معلوم دي. ما اوس خپل ځان پر خدای سپارلی دی او په دې به مي هیڅ حکومت ملامت نه کړي. ټول افغانان به له هغه حکومت څخه مننه کوي، چي له دوی سره ښه کوي.

نور نو د ویلو داسي څه پاته نه دي، چي نه مي وي ویلي. که ته غواړې چي زما سره مخامخ وګورې او یا ټول لیکونه چي زموږ تر منځ تبادله سوي دي، ولولې، زه درته تیار یم.

زه ستا څخه ډېر ممنون یم چي تر دې ځایه راغلی یې او پر ځان دي دا تکلیف منلی دی. ما ستاسي له حکومت څخه ډېر زیات انتظار درلود او د افغانستان د ساتلو او پراخېدلو امید مي ور څخه کاوه. اوس زه مایوس یم، خو دا هم د انګلیسیانو ګناه نه بولم، بلکي زما خپله طالع خرابه وه. مخلوق باید ټوله تکیه پر خپل خالق وکړي. (هغه کتاب، ص: ۴۵۴-۴۵۵)

**امیر دوست‌محمد خان ته د لارډ اکلینډ لیک**

د (۱۸۳۸م.) کال د اپرېل اووه ویشتمه، سیمله

له القابو وروسته!

ما ته ستاسي لیک را ورسېدی او په مضمون یې پوه سوم. زه په دې ډېر خواشینی یم چي ستاسي نظریاتو دې ته را وستلاست، چي هغه پېشنهادونه چي ټول ستا په ګټه ول، و مو نه منل. تاسي ما ته اجازه را نه کړه، چي زه له خپل ښه نیت څخه کار واخلم او ستاسي او د مهاراجا رنجیت سینګھ تر منځ روغه جوړه وکړم او داسي یوه حل ته لاره هواره کړم، چي ستاسي تر منځ دغه اوسني بدمرغه اختلافات ختم کړم.

تاسي په خپل لیک کي ډېر نېک احساسات څرګند کړي دي، خو ستاسي د لیک په اساس به په دغه مسئله کي زما نوره مداخله کومه ګټه و نه لري او په دغه راز یو حالت کي به د کپتان برنس او د هغه تر لاس لاندي نور افسران، چي افغانستان ته لېږل سوي دي، د هغو اهدافو د تر لاسه کولو له پاره چي ما په نظر کي درلودل، ګټور ثابت نه سي، نو ځکه ما هغوی ته امر کړی دی، چي بیرته هند

کړي.

اوس هغه وخت را رسېدلی دی، چي له افغانانو سره د دغه تړون د دوهمي مادې په اساس مرستي وسي. مګر له بده مرغه اوس ټول افغانستان له دغي مرستي څخه، چي له ډېره وخته يې انتظار درلود، مايوس دی. د بريټانيې حکومت موږ ته هيڅ مرسته نه ده را کړې، سره له هغه چي موږ له نورو قدرتونو سره له دوستی کولو څخه ځانونه ژغورلي دي. ما دا کار کړی دی او نيت مي درلود، چي و يې کړم. مګر ستاسي استازي کپتان برنس زموږ سره د مرستي کولو صلاحيت نه درلود او نه يې موږ ته دا زېری را کړ، چي پېښور به بيرته افغانانو ته ور کړه سي او نه يې هم د ايران په مقابل کي د مرستو وعده را سره وکړه.

کله چي برنس په دې پوه سو، چي افغانان په دې برخه کي بالکل مايوس دي او ده ته هم تاسي جلالتماب د افغانانو سره د مرستي کولو صلاحيت او واک نه وو ور کړی، نو دی اوس زما په اجازه هند ته روان دی.

کله چي کپتان برنس هند ته در ورسېږي، دی به زموږ له طرفه ستاسي سره په بشپړ تفصيل خبري وکړي. د بريټانيې له مرستو او احسانونو څخه ډېرو کسانو ګټه اخيستې ده، مګر دا چي موږ هيڅ شی تر لاسه کړي نه دي، نو دا به زموږ بخت وي او پر بريټانيه به پړه نه اچوو.

زه اميد لرم چي هغه څه چي د بريټانيې له ښه نامه سره ښايي په آينده کي به وسي.

د (۱۲۵۷هجري قمري) کال د صفر د مياشتي دوهمه، د جمعې ورځ. (کوريس پانډينس، ص: ۴۶۰-۴۶۲)

د بريټانوي هند ګورنرجنرال لارډ آکلينډ، چي په خپل زور مغرور وو او هيڅ فکر يې نه کاوه، چي د هغه امپراطوري، چي لمر نه پکښې لوېږي، د زور او زرو په مقابل کي به څوک د مقاومت کولو توان ولري، د امير دوست‌محمد خان وروستي ليک ته هيڅ جواب ور نه کړ. هغه مخکي له مخکي فيصله کړې وه، چي دوست‌محمد خان به، چي د بريټانيې ګټو ته يې نه تاوان رسولی او نه يې د تاوان رسول په وس پوره وه، د کابل له تخته وپرزوي او خپل يو ګوډاګی شاه‌شجاع د هغه پر ځای قدرت ته ورسوي.

بريټانوی ليکوال جورج هينتي وايي چي اليکزانډر برنس په دې پوهېدی، چي امير دوست محمد خان غواړي له بريټانيې سره دوستي وکړي او په خپل قول او عمل کي صادق دی او لارډ اکلينډ ته يې خپله عقيده په څرګندو کلماتو ليکلې وه، مګر دا يې قواله، په چا يې منې؟ برنس

ګورنرجنرال ته لیکلي ول، چې دوست‌محمد خان په کابل کې ځان ټینګ کړی او د بریتانیې د دښمنانو په مقابل کې ډېرې لرې مرستې ته ضرورت لري او د هغه په مقابل کې شاه‌شجاع یو کمزوری سړی دی، چې نه د قدرت د نیولو زور لري او نه د واک د ساتلو توان او صلاحیت ور سره دی. په سند کې د انګلیسیانو استازي ډګروال پوټینجر هم دغه ته ورته عقیده درلوده، مګر چا غوږ ور باندې و نه نیوی. هینتي لیکي چې لارډ اکلینډ په خپله یو کمزوری سړی وو، چې زیاتره یې د خپل سکرتر مکناټن په خوله کوله او مکناټن په خپله یو نسبتاً ځوان جاه‌طلبه سړی وو، چې په خپل ځان او خپله پوهه ډېر مغرور وو او په عمل کې یې ثابته کړه، چې د هیڅ لوړ مقام صلاحیت یې نه درلود، خو په هند کې ډېره لوړه چوکۍ ور رسېدلې وه. برنس ته هدایت ور کړه سوی وو، چې امیر ته ووایي چې له هیڅ قدرت سره به د بریتانیې له خوښې پرته دوستي نه کوي. خو په مقابل کې بریتانیې له هغه سره د هیڅ ډول مرستې وعده نه کوله. هینتي وایي چې دا داسې یوه غوښتنه وه، چې هیڅ وخت چا له یوه مستقل واکمن څخه نه وه کړې. دی وایي چې امیر خپل ټول کوښښ وکړ، چې ګوندې له بریتانیې څخه به یو څه تر لاسه کړي او کله چې له هرې خوا مایوس سو، نو بالآخره یې له ناچاریه د روسیې لمنې ته لاس واچاوه او د هغه هیواد استازی یې، چې تر دغه وخته پورې یې ډېره سړه وضع ور سره کړې وه، خپل حضور ته ومانه او و یې نازاوه. (هینتي، ص: ۸۹- ۹۰)

الیکزانډر برنس سره له هغه چې د ګورنرجنرال د دفتر له خوا له دې امله وترټل سو، چې په افغانستان کې یې له خپل ور کړه سوي صلاحیت او واک څخه تر خپلې اندازې زیاته استفاده کړې ده او امیر ته یې بې ځایه وعدې ور کړي دي، خو هغه خپل نظریات تر پایه پورې په ډېره زړه‌ورتیا تر مسؤلو مقاماتو ورسول.

**برنس د (۱۸۳۸م.) کال د ډیسمبر پر شلمه، چې د روسیې استازی ویتکیویچ کابل ته رسېدلی وو، د لارډ اکلینډ دفتر ته یو لیک واستاوه او هغه ته یې ولیکل:**

په هغو لیکونو کې به، چې زه یې د مکناټن له لارې تاسې جلالتماب ته لېږم، تاسې ته څرګنده سي چې په کابل کې یوه فوق العاده پېښه سوې ده او هغه دا چې د روسیې استازی مستقیماً له پیټرزبورګ څخه د تهران له لارې کابل ته را رسېدلی دی. له ده سره د ایران د پاچا محمدشاه یو لیک او په تهران کې د روسیې د سفیر کونټ سیمونیچ یو لیک ور سره دی.

مخکې له هغه چې زه د هغه لیک د متن په باب څه درته ووایم، زه باید دا درته ولیکم چې په

کندهار کي څه پېښه سوه. ما د تېر سپټمبر پر نهمه په خپل ریپورټ کي درته لیکلي ول، چي د مبین شاه په نوم یو استازی د روسیې د سفیر د مشورې په تعقیب لېږل سوی او هغه له محمدشاه سره تر خراسان پوري ملګری سوی دی. د ایران پاچا محمدشاه ورته ویلي دي، چي د ویتکیویچ را تللو ته معطل سي او بیا به له هغه سره یو ځای کندهار ته ولاړ سي. له دې وروستیو فعالیتونو څخه ښکاري، چي د روسیې او ایران تر منځ د دې سیمي په برخه کي یو ګډ پلان موجود دی. له هغو خبرو څخه چي دغه سفیر په کندهار کي کړي دي، ښکاري چي روسیه په ایران کي بشپړ نفوذ لري. استازي ویلي دي چي د دوی د اړتیا سره سم به دوی ته پیسې ور کړلي سي او دوی باید خپل کارونه د ایران د شاه له هدایتونو سره سم سر ته ورسوي او په هیڅ توګه د بریتانیې سره تماس و نه نیسي. برنس وروسته لیکي:

"د ډیسمبر پر شلمه دغه استازی د امیر حضور ته ورغی. کله چي استازي دوست‌محمد خان ته د محمدشاه لیک ور کړ، نو امیر دونه عصبي سو چي خپله غوسه یې پټولای نه سوای او په پښتو یې وویل چي: "دا ده ته سپکاوی دی او دا ښیي، چي د ایران پاچا د خپلو سلاکارانو له خوا هدایت کیږي. د ده بادار د روسیې امپراطور، ده ته یو لیک استولی او د ایران پاچا، چي د هغه یو تابع دی، په خپل ټول غرور سره ده ته لیک یا امر لېږلی او خپل مهر یې پر لګولی دی" امیر د روسیې استازی رخصت کړ او په سبا یې بیرته بالاحصار ته وباله.

د امیر او استازي تر منځ چي په دې ورځ څه خبري سوي دي، هغه ما ته را رسېدلي دي او د جدي توجه وړ دي. ویتکیویچ دوست‌محمد خان ته اطلاع ور کړه، چي د روسیې حکومت هغه ته هدایت ور کړی دی، چي له امیر سره د هغه د ستونزو له کبله د هغه دولت خواخوږي وښیي. روسیه به په ډېره خوښي د هغه پر قلمرو باندي د رنجیټ سینګهـ د حملو په مخنیوي او په پر شا تمبولو کي مرسته ور سره وکړي. روسیه تیاره ده، چي په دغه مسئله کي له امیر سره د پیسو مرسته وکړي او په عوض کي له امیر څخه د ښه نیت ښودلو انتظار لري. دا د روسیې په واک کي ده، چي خپلي مرستي تر بخارا پوري ورته را ورسوي، ځکه چي بخارا له روسیې سره دوستانه اړیکي لري؛ مګر له بخارا څخه وروسته ترتیب او تر کابل پوري د رسولو کار په امیر اړه لري. استازي ویلي دي چي کابل ته د هغه د سفر اصلي هدف دغه دی، مګر نور داسي موضوعات سته، چي هغه به وار په وار حل سي، خو امیر باید ده ته ژر جواب ور کړي، چي پیټرزبورګ ته یې ورسوي او په خپله دی به د کابل له پیغام سره یو ځای پیټرزبورګ ته ولاړ سي. که څه هم چي ده امیر ته داسي وښودله، چي غواړي د

یو څه وخت له پاره په کابل کي پاته سي. د دغو خبرو ریپورټ ما ته دوو منابعو را کړی دی او دواړه منابع د خبرو پر موضوع باندي توافق سره لري.

تاسي جلالتماب ته مي دا دی ولیکل، چي روسیه د افغانستان په برخه کي خاصه علاقه لري، نو دا به زه فکر نه کوم، چي یوه گستاخانه او بې ځایه خبره وي، چي که ووایم چي د بریټانیې د حکومت له پاره په کار دي، چي د روسیې د نیتونو او اقداماتو او دغه راز د ایران د دسیسو د مخنیوي له پاره تر هغه چي په نظر کي یې لري، نور هم جدي گامونه پورته کړي.

یوه طبقه سیاستمداران د روسیې هر اقدام ته په سپکه سترگه گوري او هیڅ یې نه بولي. بله طبقه چي یو لږ حرکت ویني، نو ډېري بې ځایه چیغې او نارې جوړې کړي. ما په تېرو شپږو، اوو کالو کي د دغي سیمي خوا ته توجه کړې ده او زه یو له هغو کسانو څخه یم، چي په دې عقیده دي، چي روسیه په دې سیمه کي د پراختیا غوښتني او د نفوذ د زیاتولو هڅې کوي او غواړي چي خپل نفوذ د هند او خپلي خاوري تر منځ سیمي ته ورسوي...

څه چي دغه گړی په کابل کي تېرېږي او موږ یې وینو، نو دا به ممکنه نه وي چي موږ د روسیې اقداماتو او عملیاتو ته لاس تر زني کښېنو. که روسیه د بریټانیې په مقابل کي خصمانه احساسات نه لري، خو زموږ په پولو کي له مشرانو سره د مرستو وعدې کوي او دا به د منلو نه وي که ووایو، چي روسیه زموږ سره په دې سیمه کي دښمني په خیال کي نه لري. د روسیې دغه اقدامات موږ له یوې ستونزي سره مخامخ کوي او موږ باید د هغې مشهوري مقولې څخه کار واخلو، چي وایي وقایه تر علاج بهتره ده او موږ دغه گړی دواړه په خپل کنټرول کي لرو. موږ کولای سو چي په دې برخه کي یو څه انتظار وباسو، مگر دا زموږ په واک کي ده، چي په هره طریقه د روسیې د نفوذ مخه ونیسو او په مقابل کي خپل نفوذ زیات کړو او د هر هغه عمل مخه ونیسو، چي زموږ گټو ته تاوان رسوي.

زه باور لرم چي په دغسي آزادانه توگه زما د نظر څرگندول به پر تاسي بد و نه لگېږي. زه د هغه اعتماد په اساس د آزادو خبرو جرأت کوم، چي تاسي په ما کړی او دلته مو د استازي په حیث را لېږلی یم" (کوریس پانډینس، ص: ۴۷۵-۴۷۶)

د تعجب خبره خو لا دا ده، چي لارډ اکلینډ خپل استازی برنس له کابل څخه بیرته هند ته ور غواړي، په کابل کي د هغه اووه میاشتي پاته کېدل او له امیر سره د هغه ټول مذاکرات بې نتیجې سول او مغرور لارډ اکلینډ، لکه د امیر دوست محمد خان په وروستي لیک کي چي مو ولوستل، د امیر

دوست‌محمد خان لیکونو ته جواب نه ور کوي؛ مگر ویلیم مکناټن برنس ته هدایت ور کوي، چې د کابل امیر ته ووایې چې د روسیې سفیر له کابل څخه وباسي او داسي فکر کوي چې امیر دوست محمد خان د دوی نوکر دی، چې دوی هر څه ورته وایي، هغه یې باید ومني. مکناټن د (۱۸۳۸م.) کال د جنوري پر شلمه برنس ته ولیکل:

جلالتماب د روسیې د استازي دغه ماموریت ته چنداني اهمیت نه ور کوي، خو بیا به هم د هغه د فعالیتونو سره تړول مربوط مسایل د مرکزي حکومت تر نظر تېروي. څرنگه چې روسیې له ډېره وخته غوښتل چې خپل نفوذ په هند کي زموږ تر سرحداتو پوري پراخ کړي او د روسیې د استازي فعالیتونو؛ په تېره بیا په تهران کي ډېره زیاته توجه ور اړولې ده. نو جلالتماب له دوست‌محمد خان څخه له دې امله ممنون دی، چې د روسیې د استازي په برخه کي یې زموږ نظر ته درناوی ښودلی او د هغه د هرکلي کولو په برخه کي یې ستا څخه نظر غوښتی دی او ستا د دې نظر سره سم یې عمل کړی دی، چې هغه استازی خپل حضور ته ومني او د یوه مدني هیواد د مشر په حیث سلوک ور سره وکړي. نو که د روسیې استازی تر اوسه له کابل څخه تللی نه وي، ته به امیر ته ووایې چې هغه په احترام سره رخصت کړي او هغه ته یو لیک ور وسپاري او د روسیې له امپراطور څخه مننه وکړي، چې د کابل له سوداگرو سره یې په مهرباني سلوک کړی دی. د روسیې د استازي ماموریت باید یو خالص تجارتي ماموریت وگڼل سي او د امطر په لیک کي د هغه د ماموریت نورو برخو ته باید هیڅ اشاره و نه سي.

که امیر زموږ سره د ښو اړیکو په لټه کي وي او زموږ پر دوستي ټینګ وي، نو ته باید په راتلونکي کي هم دغه سلوک غوره کړې. که چېري هغه بیا هم غواړي چې د روسیې استازی په کابل کي وساتي او د روسیې سره د نورو سیاسي اړیکو د ټینګولو په لټه کي وي، نو ته باید امیر ته په مشخصه توگه ووایې، چې په کابل کي ستا ماموریت ختم دی. له سیکهانو سره به د امیر د روغي جوړي په برخه کي زموږ ټول فعالیتونه بند سي او د هغه کارونه به د بریټانیې د حکومت په مقابل کي خصمانه اعمال وگڼل سي. دا مخکي څو ځله تا ته ویل سوي دي، چې له امیر سره زموږ دوستانه اړیکي په دې پوري اړه لري، چې هغه باید له هیڅ هغه قدرت سره، چې لوېدیځ ته یې پروت دی، دوستي و نه کړي. (هغه کتاب، ص: ۴۷۶- ۴۷۷)

که څه هم چې په یوه تحقیقاتي اثر کي خو د سپکو کلماتو استعمال ته اجازه نه وي، خو د مکناټن او اکلینډ دې وروستي لیک ته به سړی له بې‌شرمی پرته بل څه نوم ور کړي؟ انگرېزانو له

افغانستان سره هيڅ ډول مالي مرسته نه ده کړې. د سيکهانو د تېريو او پېښور د اشغال په برخه کي يې د امير پر هيڅ عرض باندي غوږ نه دی نيولی. د هيڅ ډول پوځي مرستي، چي امير سخت ضرورت ورته لري، وعده قدر يې نه ده ور کړې. پرته له هيڅ دليله يې په خپله خاوره کي يو ګوډاګی کښېنولی او هر وخت يې امير په تهديد کړی دی. تش د جاسوسی له پاره يې يو لوی هيأت ورته را لېږلی او څه باندي اووه مياشتي يې لا خرڅ او خوراک هم پر امير باندي تاوان دی؛ بيا هم په بشپړه سپين سترګي خپل دغه خصمانه اړيکي دوستانه بولي او امير د هغو اړيکو په قطع کولو، چي افغانستان ته يې هيڅ ډول ګټه نه رسېږي، بلکي استقلال يې په خطر کي ور اچولی دی، تهديدوي.

کابل ته د اليکزنډر برنس سفر، له لومړيو ورځو د ناکامېدلو له احتمال سره مخامخ سو. د هغه د ناکامولو له پاره لکه څرنګه چي مخکي مو وويل، هم په کلکته کي دسيسې رواني وې، هم رنجيت سينګه، چي انګرېزانو ته تر دوست‌محمد خان ډېر مهم او ټينګ ملګری وو، له خپل نفوذ څخه کار اخيستی، هم به د کندهار او پېښور سردارانو، چي له انګرېزانو سره د دوست‌محمد خان نيژدې کېدل د هغه قوي کېدل او د ځانونو کمزوری کېدل ورته ښکاره سوي وي، دسيسې کړي وي. په ضمن کي کابل ته د روسيې د سفير لېږل کېدلو وضع نوره هم پرله پېچلې کړه او لا ښايي برنس هم ځيني اشتباهات کړي وي.

د روسيې د سفير له را تللو سره داسي څرګنده سوه، چي روسيه کابل ته يو څه ور کوي او يا د يو څه امتيازاتو او مرستو ور کولو پلان لري او يوازي د بريتانيې د استازي په څېر تشي خبري او بې ځايه پېشنهادونه نه کوي. سره له هغه چي د بريتانيې استازي د دوست‌محمد خان دې غوښتني ته، چي پېښور د افغانستان خاوره وګڼله سي او د رنجيت له منګولو څخه خلاصه سي، هيڅ ډول سم جواب ور نه کړ، خو دوست‌محمد خان پر له پسې برنس ته ويل چي هغه د بريتانيې دوستی ته ترجيح ور کوي. برنس له دوست‌محمد خان سره هر ډول مرسته غوښته، خو هيڅ يې په وس کي نه ول. بالآخره د نوي کال د مراسمو وخت را ورسېدی او ويتکيويچ د دوست‌محمد خان خاص مېلمه وو. دې مېلمستيا ته برنس نه وو بلل سوی او د هغه پر ځای باندي موهن لال ورغلی وو.

په هغه مجلس کي ويتکيويچ موهن لال ته ويلي ول چي دی کولای سي په هند کي ټول ناراضي مشران د بريتانيې پر ضد را وپاځوي او روسيې پنځوس زره پوځيان تيارسی درولي دي. ده موهن لال ته ويلي ول چي دوست‌محمد خان ته يې ويلي دي، چي د خيبر، پېښور او کشمير د

اخیستلو له پاره یې هر څونه پیسې په کار وي، دی یې ور کولای سي. ضمناً یې موهن لال ته ویلي ول چي انګرېزان خو عسکر نه دي او یوازي یا سیلانیان او یا تاجران دي او له دوست‌محمد خان سره د رنجیت پر ضد د مرستي کولو جرأت نه لري.

برنس له افغانستان څخه وتلو ته مجبور سو او د کابل مقاماتو ته یې داسي وښودله، چي دا به له بریتانیې سره د جنګ د پیل کولو معنا ولري، خو بیا هم چا چنداني جواب ور نه کړ. ده د خپلو مالونو د بارولو له پاره د حیوانانو په پیدا کولو کي ستونزي درلودلې. صرافانو چنداني پیسې په پور نه ور کولې. کله چي ده غوښتل چي له دوست‌محمد خان سره ووویني، هغه سطرنج کاوه او ده ته نه ولاړ سو او نه یې چنداني توجه ورته وکړه، خو کله چي له افغانستان څخه روانېدی، نو امیر دوه ښه آسونه په تحفه کي ور کړل. (لوین، ص: ۳۳-۳۴)

دا سفر په هر صورت بې‌نتیجې سو، خو چارلس مېسن، چي په دغه وخت کي په کابل کي وو او د کلاډ وېډ د منشي او خبر لیکونکي حیثیت یې درلود، د دې سفر د ناکامی ډېره پړه په خپله پر برنس اچوي او لیکي چي هغه له امیر سره په لومړي سر کي ډېر تود او په وروسته کي سوړ سلوک کاوه او دې وضع امیر هم یو ډول مشکوک کړی او هغه هم د برنس په برخه کي خپل سلوک ته تغیر ور کړ او د برنس د ماموریت ناکامي پیل سوه. مېسن وایي برنس ده ته په خپله لیکلي دي: امیر وایي ده په کومه برخه کي د انګرېزانو په خوله نه دي کړي او د هغوی کومه غوښتنه یې نه ده پوره کړې. زه باید له هغه څخه وپوښتم چي په کومه برخه کي یې زموږ په خوله کړې دي؟ مګر زه نور ده ته له ور تللو او له ده سره له کتلو ستړی سوی یم. ما تېر ځل له امیر سره درې ساعته خبري وکړې، مګر د اصلي موضوع په باره کي مي هیڅ ور سره و نه ویل او ولي مي ور سره ویلي وای؟ ویتکیویچ په کابل کي دی او د تللو خیال نه لري. امیر له رنجیت سینګهـ سره د سولي کولو هر ډول شرایط ردوي. هم کندهار ته لیکي او هم یې ما ته ویلي دي، چي دی زموږ له حکومت څخه د خیر تمه نه لري او نور بس دی. (مېسن، ص: ۴۷۰-۴۷۱)

انګرېزانو غوښتل چي افغانستان ته هم هیڅ ور نه کړي او هم ټول امتیازات پکښې تر لاسه کړي. د افغانستان د امیرانو دوست‌محمد خان او د هغه د زوی امیر شېرعلي خان دواړو سره یې ظلم وکړ. پر افغانستان یې دوه ځله یرغل وکړ او په دواړو کي یې له بدنامی او تلفاتو پرته بل هیڅ هم تر لاسه نه کړل.

په مقابل کي روسانو له بریتانیې سره داسي لوبه روانه کړې وه، چي ډېره ارزانه ورته تمامېدله. د

هرات ښار يې په ايرانيانو محاصره کړ او د برېټانيې دښمني يې ورته واخيستله. که چيري هرات په ريښتيا هم د ايران لاس ته ورغلی وای، نو روسيې به د يوه قوي ګاونډي په حيث ګټه په وچ زور ور سره نيمايي کړې وای او که چيري ايران ماته خوړلې، نو جنګ د دوی له خاوري څخه ليري په بل ځای کي کېدی او دوی ته يې تاوان نه رسېدی او که يې چيري د دغه جنګ په جريان کي ايران ته څه پيسې ور کړي وای، هغه به يې هم ور څخه اخيستي وای. روسانو له افغانانو سره دوه څله دغه ډول لوبه وکړه. يو ځل يې د دروغو د وعدو له پاره د امير دوست‌محمدخان دربار ته ويتکويچ واستاوه او لکه تش لاس چي راغلی وو، هغسي تش لاس ووت او هسي يې يوه لويه هنګامه جوړه کړه او انګرېزانو ته يې له افغانانو سره د دښمنی کولو يا لږ تر لږه د دوی له دښمنانو سره د دوستی کولو په پلمه د هغوی پر بې‌دفاع وطن باندي د يرغل بهانه جوړه کړه. روسانو همدغه کار د امير شېرعلي خان په زمانه کي وکړ، هغه امير يې چي انګرېزانو پرته له هيڅ دليله په جنګ تهديد کړی وو، په تشو وعدو وغولاوه او د انګرېزانو د دښمنی اور يې ورته بل کړ او له خپلو وعدو سره په خپله مخه ولاړ. په هغه ليک کي چي د برنس ملګري ليفټينينټ ليچ د (۱۸۳۸م.) کال د جنوري پر اتلسمه له کندهار څخه برنس ته استولی دی، د دغي لوبي يو اړخ ښه څرګند دی.

**ليفټينينټ يا ضابط ليچ ليکي:**

زه بايد کندهار ته د را رسېدلو په باره کي ريپورټ در کړم. زه دې ښار ته د جنوري پر پنځلسمه را ورسېدلم. سردارانو په ډېر عزت زما هرکلی وکړ او سمدستي يې را سره وکتل او د سردار مهردل خان په کور کي يې ځای را کړ. سردار ماته وويل چي په دې هر څوک خبر دي، چي ايران پر هرات باندي عسکر را روان کړي دي، که څه هم چي په تهران کي د برېټانيې سفير ورته ويلي ول چي دا کار و نه کړي او دا خو ټولو ته معلومه ده، چي د ايران شاه پر هرات باندي د حملې کولو توان نه درلود او دا حمله يې د روسيې په لسمون کړې ده.

مهردل خان راته وويل چي د روسيې د استازي سره، چي اوس په کابل کي دی، د روسيې د امپراطور پيغام دا دی، چي که د امير دوست‌محمد خان دوستي تر لاسه کړي، نو روسيه به هغه ته پيسې ور کړي، چي له سيکهانو څخه ملتان او ډېره‌جات ونيسي او دوی به دغه راز له امير سره د سند په بيرته نيولو کي هم مرسته وکړي. په ليک کي راغلي دي، چي د ايران پاچا محمدشاه د

روسانو پنځلس میلیونه روپۍ پوروړی دی او دوی به هغه ته امر وکړي، چي دا پیسې تاسي ته در کړي. هغه پیسې به د سردارانو تر منځ په مساوي توگه ووېشلي سي او هغه مخکي به هم دوی په مساوي توگه سره ووېشي، چي د سیکهانو سره د جنگ په نتیجه کي یې تر لاسه کوي. روسان له دوی سره د پوځیانو مرسته نه سي کولای، مگر د وسلو مرسته ور سره کولای سي او په عوض کي به دوی د روسانو فرمانبردار او تر لاس لاندي وي او په خپله خاوره کي به د روسانو استازی مني او د روسانو له خوښي سره سم به جنگ او سوله کوي. ویتکیویچ سردارانو ته وویل چي انگلیسیان د تمدن له مخي تر روسانو څو نسله مخ ته تللي دي، مگر اوس روسان له خوبه را پاڅېدلي دي او په بهر کي د مځکو په لاندي کولو او د متحدینو په پیدا کولو لگیا دي. انگلیسیان هیڅ پوځي زور نه لري او صرف د اروپا تاجران دي. سردار مهردل خان دغه راز ده ته اطلاع ور کړه، چي زموږ ځینو سوداگرو دغه روسی صاحب منصب په بخارا کي لیدلی دی، مگر په دې نه دي پوه سوي، چي هغه هلته څه کوي.

سردار وویل چي په ایران کي د روسیې د پوځي فعالیت په باب اطمینان در کوم، چي هغوی غواړي د محمدشاه قلمرو آرام وساتي او په هغو ځایونو کي چي دوی ته خطر او وېره موجوده وي، هلته په تبلیغاتو مرسته ور سره وکړي او هلته چي وېره موجوده نه وي، پوځي مرسته ور سره وکړي. (هغه کتاب، ص: ۴۷۸)

ویتکیویچ له امیر او د کندهار له سردارانو سره د دروغو وعدې وکړې او کله چي بیرته خپل هیواد ته ستون سو، نو خارجه وزیر نیزلروډ، چي افغانستان ته یې د ده سفر پیشنهاد کړی او منظور کړی وو، د ده له پېژندلو څخه انکار وکړ او صرف دونه یې وویل چي په دغه نامه یې د یوه روسي ماجراغوښتونکي صاحب منصب په باره کي ریپورټونه لوستي دي، چي پر خپل سر افغانستان ته تللی او بیرته را وتلی دی. په تهران کي د روسیې سفیر کونټ سیمونیچ هم پیټرزبورگ ته احضار سو. هغه ته وویل سول چي په خپله وظیفه کي یې له خپل صلاحیته تر اندازې زیاته استفاده کړې ده او بیا یې درک معلوم نه سو. ویتکیویچ په خپل هوټل کي ځان په توپنچه وواژه او له ځان وژني څخه مخکي یې د خپل وروستي سفر ټول یادداښتونه سوځلي ول.

**مأخذونه:**

۱: درانی، سلطان محمدخان ابن موسی خان. (۱۸۸۰). تاریخ سلطاني. بمبئي، هندوستان.

۲: فوفلزايي، عزيزالدين وکيلي. (۱۳۳۷). درت الزمان. کابل، افغانستان: دولتي مطبعه.

۳: شرن، پرتما. (۱۸۰۳). فارسي اخبارات و مراسلات. هندوستان.

۴: کهزاد، احمدعلي. (۱۳۷۸). بالاحصار کابل. پېښور، پاکستان.

۵: رشتيا، سيدقاسم. (۱۳۴۶). افغانستان در قرن نزده. کابل: دولتي مطبعه.

۶: کاتب، فيض محمد. (۱۳۳۱). سراج التواريخ. کابل: مطبعه حروفي دارلسلطنه کابل.

۷: عطامحمد، ميرزا. (۱۳۳۱). نوای معارک. کابل انجمن تاريخ.

۸: پيريس، ادوارد الايسيس. (۱۳۳۳). عروج بارکزايي. ترجمه عبدالرحمن پژواک، محمدعثمان صدقي. کابل: مطبعه عمومي.

۹: غبار، مير غلام‌محمد. (۱۹۶۷). افغانستان در مسير تاريخ. کابل.

۱۰: شاه‌شجاع. (۱۳۳۳). واقعات شاه‌شجاع. کابل: مطبعه عمومي کابل.

۱۱: جهاني، عبدالباري. (۲۰۱۵). تاريخي ځېرني. کندهار: صداقت خپرندويه ټولنه.

۱۲: هروي، محمديوسف رياضي. (۱۳۶۹). عين الوقايع. تهران.

۱۳: بارکزی، حاجي جمعه. د اشعارو ديوان.

۱۴: خټک، خوشحال خان. د اشعارو ديوان.

15: Correspondence. (1839). Persia and Afghanistan. London.

16: Mohan Lal. (1978). Life of Amir Dost Mohammed Khan of Kabul. Karachi, Pakistan.

17: Ferrier, J.P. (1858). History of the Afghans. London.

18: Dalrymple, William. (2013). Return of a King. London.

19: Masson, Charles. (1842). Narrative of Baluchistan, Afghanistan and the Panjab 1826-1838. London.

20: Macintyre, Ben. (2005). The Man who would be King. New York.

21: (1982). Frontier and Overseas Expeditions from India Vol3. Quetta, Pakistan.

22: Henty. G.A. (1983). To Herat and Cabul. Lahore: reprint.

23: Tate, G.P. (1973). The Kingdom of Afghanistan. Delhi, India: Reprint.

24: Sykes, Sir Percy. (1981). A History of Afghanistan. Delhi, India: Reprint.

25: Mohan Lal. (1977). Travels. New Delhi.

26: Kaey, John Willim. (1999). History of the War in Afghanistan Vol1. New Delhi.

27: Stocqueler, J.H. (1983). Momorials of Affghanistan. Peshawar, Pakistan.

28: Conolly, Arthur. (2012). Journy to the North of India Overland from England Vol 2. U.S.A.

29: Cunningham, J.D. (1990). History of the Sikhs. Delhi: Reprint.

30: Mohan Lal. (1977). Travels in the Punjab, Afghanistan and Turkistan to Balk, Bokhara, and Herat and a visit to Great Britain and Germany. Culcutta, India.

31: Burnes, Alexander. (1986). Cabool, Personal Narrative. Karachi, Pakistan.

32: Burnes, Alexander. (1834). Travels into Bokhara Vol1, Vol2. London.

33: Hopkirk, Peter. (1992). The Great Game, The Struggle for Empire in Central Asia. U.S.A.

34: Loyn, David. (2009). In Afghanistan, Two Hundred Years of British, Russian and American Occupation. U.S.A.

35: Harlan, Josiah. (1842). India and Afghanistan. Philadelphia, United States.

## د هرات محاصره

ایران د افغانستان په تاریخ کې هیڅ وخت د افغانانو له پاره ښه ګاونډی نه وو؛ خو د نولسمې پېړۍ په لومړي نیمايي کې، چې افغانستان د داخلي جنګونو او شورښونو او د خپل ختیځ ګاونډي برټانوي هند د دسیسو او مداخلو په اثر له سختو ستونزو سره لاس او ګرېوان وو، ایران په دغو خرابو شرایطو کې، د افغانستان پر ضد د هیڅ ډول دسیسو، تېريو، ظلم او وحشت څخه مخ و نه ګرځاوه.

د یوه هیواد په څنګ کې، تر ټولو خطرناک ګاونډی هغه وي چې د هغه ملک په خاوره دعوه ولري. مور ځکه ایران ته خطرناک ګاونډی وایو چې هر وخت یې هرات او کندهار او په ځینو لیکونو کې تر کابل او بلخ پورې، خپله خاوره بللې او هیڅ وخت یې د دغه خوب د ریښتیا کېدلو له پاره له دسیسو او قوې د استعمال څخه لاس نه دی اخیستی.

هرات د خپل ستراتیژیک اهمیت له کبله، د هند دروازه بلل سوې ده او دغه علت دی چې روسانو د خپلو اوږدو پلانونو د عملي کولو له پاره سترګې ورته خړې کړې وې. څرنګه چې روسې پر هرات باندې د مستقیم یرغل کولو او لاندې کولو له پاره نه نظامي امکانات درلودل او نه یې په سیمه کې د مسلمانانو او په وروسته کې د برټانیې له پوځ سره د مخامخ کېدلو توان درلود؛ تل یې ایران د هرات نیولو ته هڅاوه او غوښتل یې چې په دغه وسیله سیمې ته لاره پیدا کړي. او ایران په خپله هیڅ وخت، نه په پخوانیو زمانو کې او نه تر اوسه پورې، د هرات له نیولو او خپلولو له کوښښونو څخه لاس اخیستی دی. او په مقابل کې برټانیه هر وخت دې حقیقت ته متوجه وه چې که دا مهم ښار د هغه هیواد د دښمنانو لاس ته ولوېږي نو په هند کې به یې ژوند هرو مرو ناکراره وي. په تهران کې د برټانیې یو ډیپلوماټ د کیپټن کریسټي د سفرنامې په حواله د هرات د تجارتي او ستراتیژیک اهمیت په باره کې لیکي: "دا ښار په څلور میله مربع ساحه کې پروت دی، چې د یوه ختین دېوال په واسطه، چې هم برجونه او هم پر شاوخوا باندې خندق لري، ساتل کېږي. د شمال خوا ته یوه قلا ده چې تر دېوال لوړه ده. دا یوه وړه څلورکونجه قلا ده چې دېوالونه یې له پخو خښتو څخه جوړ دي . شاوخوا د اوبو ډک خندق باندې را څرخېدلی دی او پر خندق باندې یو متحرک پل وجود لري... د بازار په ورځ په ښار کې دونه ګڼه ګونه وي چې سړی بېخي تېرېدلای نه سي. د

بازار پر دواړو خواوو باندي لوی لوی سرایونه لري چي سوداګر کاروبار پکښي کوي. په هرات کي اوبه پرېمانه دي. هر سرای د اوبو یوه لویه ذخیره لري چي له نورو ذخیرو سره اړه نه لري. داسي فکر کېدی چي د نولسمي پېړۍ په سر کي د هرات ښار سل زره نفوس درلود، چي پښتانه، مغول، هندوان او یهودان ول. دا ښار د هندوستان، کشمیر، کابل، کندهار، بخارا، مرو، خراسان، یزد او کرمان تر منځ یو لوی تجارتي مرکز دی. سره له هغه چي هرات له تجارتي پلوه اهمیت لري او د تجارت له لاري ډېر زیات عایدات تر لاسه کوي؛ هرات د خپلو صنایعو له لاري، چي د دغه ښار اوسېدونکي یې چلوي، ښه عایدات لري. مګر تر ټولو مهمه خبره دا ده چي دا ښار د افغانستان کیلي ده او له دغه درکه یې اهمیت ډېر زیات دی..." واټسن ص ص ۱۷۸-۱۷۹

کله چي سړی د ایران د منظمو او په ښو توپونو او عصري وسلو او وسایلو سمبالو پوځونو او د ایران د جبار قاجاري نظام په مقابل کي، په (۱۸۳۷م.) او (۳۸) کلونو کي د هرات د خلکو څه کم لس میاشتي مقاومت، قربانیو، تباهیو او لوږو ګاللو په مقابل کي زغم او حوصلې ته ګوري نو د هغه ښار اولسونو ته یې درناوی لس چنده سي. د هرات خلک له یوې خوا د قاجاریانو د ظالمانه حملو سره مخامخ ول او د بلي خوا د داسي بې رحمو واکدارانو په لاس کي اسیر ول چي په ژوند کي یې پرته له خپلو ګټو او ځان غوښتني بل هیڅ پرنسیپ نه درلود. کله چي سړی په هغه وخت کي د انګلیس صاحب منصب پوټینجر د سترګو لیدلي حالات لولي نو زړه ته یې نه لوېږي چي پر هرات به یو وخت داسي شرایط هم راغلي وي. په ایران کي د برتانیې یو ډیپلومات د هرات د پرله پسې محاصرو په باب لیکي:

"په نړۍ کي ښایي بل داسي ښار نه وي چي په دې وروستیو سلو کالو کي دي یې د هرات په څېر د پرله پسې محاصرو د کړاوونو مزه څکلې وي." واټسن ص ۱۷۸

هرات د نولسمي پېړۍ په دوهمه، دریمه او څلورمه لسیزه کي له یوې خوا د ډېرو ظالمو، عیاشو او بې صلاحیته مشرانو لاس ته ولوېدی؛ او د هرات خلک یې تر هغي اندازې چي نور یې تصور نه سي کېدلای وکړول. له بلي خوا ایران پرله پسې حملې ورباندي پیل کړې، شاوخوا سمسور کلي یې ورته تباه کړل، اقتصاد یې ور فلج کړ، عسکري او ملکي تلفات یې ور واړول او خلک یې څو ځله له داسي لوږي سره مخامخ کړل چي ټول ښار به یې د ګدایي پولي ته ورساوه. خو د دې ښار خلکو پټېلې وه چي د ایران زور ته به نه تسلمیږي. حتی ظالمو او بې مسوولیتو مشرانو یې هم د ایران د

غلامۍ ځنځیر ته غاړه نه ایښودل. د ایران دسیسو او تېریو تر هغه وخته پورې دوام درلود چې امیر دوست محمدخان په هرات کې د ایران د دولت وروستی مزدور سردار سلطان احمدخان، یا سلطان جان، چې د ایران حکومت د سرکار لقب ورکړی وو، له منځه یووړ. که په نولسمه پېړۍ کې د ایران پاچاهانو او مشرانو د هرات د نیولو له پاره پوځي حملې کولې او دا ښار یې د ایران خاوره باله نو په شلمه پېړۍ کې د هغه هیواد منورینو او تاریخ لیکونکو، د خپلو واکمنانو د خوشالولو له پاره، د دغې ناروا دعوې د اثباتولو له پاره قلمونه چلولي او په هرات یې له دعوې کولو څخه لاس نه دی اخیستی او دا ښار یې د ایران خاوره بللې او د هغه د بیرته نیولو له پاره پوځي حملې یې د ایران د پاچاهانو او جنرالانو حق بللی دی.

د اېران مشهور محقق او تاریخ لیکونکی محمودمحمود، چې په نولسمه پېړۍ کې یې د اېران او انګلیس د سیاسي اړیکو په نامه اته جلده کتاب لیکلی دی، هر ځای چې د هرات په باب بحث کوي نو هغه د ایران خاوره بولي. "زه دونه وایم چې انګلیسیانو په دغه وخت کې د ایران دولت پر هرات او کندهار باندي د حاکمیت له ځرګند حق څخه د محروومولو له پاره هم له پیسو څخه کار واخیست، هم یې د ایران بندرونو ته جنګي کښتۍ واستولې او هم یې ایران د ډیپلوماټیکو اړیکو په شلولو تهدید کړ. او بهانه یې دا وه چې ایران، د روسیې په تحریک، پر افغانستان باندي پوځي حمله کړې ده." محمود ص ۳۹۱

بل ځای لیکي "په دغه وخت کې د افغانستان په ملت کې له اسلامي دیانت سره ډېره سخته مینه موجوده وه. د افغانستان ملت انګلیسیانو ته په قهر وو او هغوی یې کافران بلل او له هغوی سره یې اړیکې درلودل لویه ګناه شمېرله. سره له هغه چې د ایران پاچا او د ایران ملت شیعه وه هغوی پر انګلیسیانو باندي ایرانیانو ته ترجېح ورکوله او حاضر وه چې پرته د سرو او سپینو زرو له شیندلو د ایران د پاچا اطاعت ومني خو انګلیسیانو چې هر څه پیسې ورکولې د هغوی اطاعت ته یې غاړه نه ایښودله" محمود ص ۴۴۷

که څه هم چې د محمودمحمود ادعاوي خو د ردولو ارزښت نه لري خو د دې ورستی ادعا په باب یې، چې وایي افغانانو پر خپل وطن باندي تر انګلیسیانو د ایران تسلط ته ترجېح ورکوله، یوه تاریخي سند ته اشاره کول بې ځایه نه دي. هینري لمسډن چې په خپله یې له امیر دوست محمد خان سره، په پېښور کې څو ځله، کتلي دي وایي امیر ماته یوه ورځ د خبرو په ترڅ کې وویل "سره له هغه چې له انګلیسانو سره د اوسېدلو په وخت کې له هغوی څخه ښې خاطرې لرم خو که مې وس

رسبدلای ما به په دنیا کي د کافرانو ریښه نه وای پرې ایښې. مګر صاحب! څرنګه چي دا کار مي په وس پوره نه دی نو ځکه مي د انګلیسیانو لمن ټینګه کړې ده چي هغوی مي له لعنتي ایرانیانو څخه ساتي. او اوس چي مي له انګلیسیانو سره دوستي کړې ده، دا به تر مرګه پوري ساتم" ریچرډز ص ٦٦

امیر له ایرانیانو سره د لعنتي کلمه استعمالوي او پر ایرانیانو باندي د انګرېزانو دوستي ته ترجېح ورکوي او له دې څخه ښکاري چي هغه له اېرانیانو څخه څونه ژور نفرت لري. دا خبره په یادولو ارزي چي په کندهار کي یوه چا ته د غجر (قاجار) زوی خطاب کول یو له تر ټولو بدو ښکنځلو څخه دي.

محمودمحمود، هم د خپلو نورو وطندارو څېړونکو او تاریخ پوهانو په څېر، دونه مخ ته ځي چي ټول افغانستان د ایران خاوره بولي. په افغانستان کي د ایران هر ډول مداخله د هغه هیواد خپل حق او د انګلیسیانو مداخلې ته د خارجي او یرغلګر په سترګه ګوري. "زمان شاه د خپل ورور محمودشاه له خوا، چي د ایران پاچا تقویه کاوه، ړوند او نا بینا سو او محمودشاه د افغانستان امیر سو. خو ډېر ژر د شجاع الملک په نوم د هغوی بل ورور د خارجیانو د دسیسو په اثر د محمود شاه په مقابل کي قیام وکړ او په (۱۸۰۳م.) کال کي یې د کابل امارت تر لاسه کړ" محمود ص ۱۲۰



د هرات اختیارالدین کلا

دا چي محمودمحمود له هراته تر کابله پوري د ایران خاوره بولي او د افغانستان په چارو کي د ایران مداخله پر حق او د نورو مداخله خارجي بولي، دا د هغه خپل حق دی. خو، د یوه مشهور

مؤرخ په حیث، دونه بې خبره دی، چې د شاه شجاع لومړی ځل پاچا کېدل د پردیو په تحریک بولي. په داسي حال کې چې د شاه شجاع سره د لومړي ځل پاچا کېدلو له پاره په جګړو او عملیاتو کې هیڅ خارجي قوت مرسته نه ده کړې بلکې یوازې د افغانانو په مالي او پوځي مرسته او د شاه محمود د نالایقی له امله قدرت ته ورسېدی. او هغه وخت چې شاه شجاع د انګرېزانو په ملاتړ او د انګرېزانو له پوځونو سره، یو ځل په (۱۸۳۴م) او بل ځل په (۱۸۳۹م.) کال کې کندهار ته ننووت، هغه وخت شاه محمود ډېر مخکې، په (۱۸۲۹م) کال کې وفات سوی وو.

د ایران تقریباً ټول لیکوالان او مؤرخین، له ادمه تر دې دمه، د هرات ولایت، غور او بادغیس او حتی، ځیني یې، ټول افغانستان د ایران خاوره بولي. دا د لیکوالانو او د دوی د عالمانو خپل نظریات نه دي بلکې دا ټول لیکوالان د خپلو پاچاهانو او دولتونو پالیسیو او نظر ته انعکاس ورکوي. دا به لازمه نه وي چې موږ په خپله پاکه او پلرنۍ خاوره د دوی د ناپاکو او دروغجینو دعوو بیا بیا ذکر وکړو خو کله چې د ایران د پاچا محمدشاه قاجار د پلار عباس میرزا او د ده له خوا د هرات د محاصرو، چې د افغان او انګلیس د لومړي جنګ د پیل کېدلو یوه پلمه سوه، یادونه کوو نو مجبور یو چې دا ورسره ووایو چې ایران زموږ په لویو ښارونو او ولایاتو دعوه لري او دې دعوې ته یې تر اوسه دوام ورکړی دی. په دې برخه کې "هرات در قلمرو استعمار" کتاب، چې په (۱۹۹۱م.) کال کې د اسلامي حکومت مطبوعاتو چاپ کړی دی، ښه مثال دی. او دا چې زموږ په زمانه کې او د ایران د رضاشاه د پان ایرانیزم څخه وروسته اسلامي نظام هم په دغه عقیده دی نو سړی د زمان د منطق د حکم په اساس مجبور دی چې ایران ته د یوه خطرناک دښمن په سترګه وګوري.

د نولسمي پېړۍ د دوهمي لسیزي په سر کې د روسیې او ایران تر منځ په سرحدي جنګونو کې ایران څو ځله ماته وخوړه. روسانو په (۱۸۱۳م) کال کې ایرانیان د ګلستان په نوم تړون لاسلیکولو ته مجبور کړل او په هغه تړون کې یې له ایران څخه ډېري مځکې لاندي کړې. خو د (۱۸۲۷م.) کال په پای کې د روسانو او ایرانیانو تر منځ یو ځل بیا جنګونه پېښ سول او دا ځل ایرانیانو، چې قومانده یې د ولیعهد شهزاده عباس میرزا په لاس کې وه، د سختي ماتي خوړلو تر څنګ سخت ځاني او مالي تلفات هم ولیدل. روسانو ایران مجبور کړ چې د ګلستان تړون ورسره نوی کړي او دا ځل یې د (۱۸۲۸م.) کال د فبروري پر لسمه د ترکمان چای تړون ورباندي لاسلیک کړ. د دې تړون پیشنهاد سوي مواد دونه درانه وه چې د ایران ولیعهد شهزاده ته په هیڅ توګه د منلو نه وه. خو روسانو اخطار ورکړ چې که په پنځه ورځي کې د تړون لاسلیکولو ته حاضر نه سي نو هغوی به تهران ونیسي. ایران پوهېدی چې د روسانو په مقابل کې نه سي ټینګېدلای او بالاخره حتی تهران هم ساتلای نه سي. نو

د ترکمان چای تړون يې لاسليک کړ او د دې تړون په اساس يې يريوان، نخيچيوان او ټيلسيټ له لاسه ورکړل. ايران په دواړو تړونونو کي داغستان، گرجستان، آذربايجان، ارمنستان او په شمال کي ډېري حاصلخيزي سيمي روسيې ته پرېښودلې. د دې تړون په شپږمه ماده کي راغلي وه چي روسيه د ايران هري سيمي ته چي زړه يې وغواړي قونسلان لېږلای سي. په اوومه ماده کي راغلي وه چي ايران به له روسيې سره هغه تجارتي تړون چي متن يې روسيې ترتيب کړی دی، لاسليکوي.

د تړون د لاسليکېدلو څخه يوه ورځ وروسته د فبروري پر يوولسمه په تهران کي قهرېدلو خلکو د روسيې پر سفارت باندي حمله وکړه او د روسيې د سفير گريبايدوف په شمول يې د سفارت ټول غړي ووژل. ايران له روسيې څخه بخښنه وغوښتله او مسئله ډېره ژر حل سوه.

څه موده وروسته روسانو عباس ميرزا د خراسان نيولو ته تشويق کړ. عباس ميرزا پر خراسان باندي حمله وکړه او ياغي سيمي يې په ډېره اساني ونيولې. او کله چي هغوی د هرات د نيولو مشوره ورکړه نو عباس ميرزا، چي د افغانستان د حکومت په بې اتفاقيو او کمزوريو ښه خبر وو، د هرات په مسئله کي چنداني تشويق ته ضرورت نه درلود.

عباس ميرزا د هرات د محاصره کولو وظيفه خپل زوی محمدميرزا ته وسپارله او هغه هم ښار محاصره کړ. محاصرې چنداني دوام ونه کړ او د هماغه کال په مني کي عباس ميرزا په مشهد کي وفات سو. محمدميرزا د هرات محاصره پرېښودله او د مشهد پر لور روان سو. د محاصرې د پرېښودلو په وخت کي يې سوگند ياد کړی وو چي زه به د هرات د محاصرې د ماتېدلو رسوايي د افغانانو په وينو مينځم. کې ص ۱۵۳

محمدميرزا تهران ته له رسېدلو سره سم د خپل نيکه فتحعلي شاه قاجار له خوا د وليعهد په توگه وټاکل سو. څو مياشتي وروسته يې نيکه هم وفات سو او محمدميرزا د روسانو او انگرېزانو په گډو هڅو پر تخت کښېناست.

## محمدشاه قاجار او د هرات مسئله

د (۱۸۳۴م.) کال د جون پر دېرشمه د روسيې خارجه وزير کونټ نيزل روډ، د ايران د پاچا د وفات او نوي پاچا د کښېنستلو په ارتباط، خپاره کړي يادداشت کي وليکل چي د برتانيې او روسيې استازي به په تهران کي سره وگوري او دواړه به هڅه وکړي چي په هغه هيواد کي د داخلي ناکراريو، چي د نوي پاچا پر تخت کښېنستلو سره حتماً تړلي وي، مخه ونيسي. کوريس پانډينس ص ۴

په روسیه کي د برتانیې سفیر ښاغلي بلای د (۱۸۳۴م.) کال د ډسمبر پر څلورمه د برتانیې خارجه وزیر ویسکونټ پالمرستن ته ولیکل چي له خارجه وزیر نیزل روډ سره یې کتلي او هغه د فتحعلي شاه قاجار د وفات په باب بشپړ اطلاعات ورکړي دي. دی وایي داسي ښکاري چي کونټ نیزل روډ فکر کوي چي په ایران کي به حتماً داخلي جنګونه پېښېږي خو له دې امله یې خوښي څرګنده کړه چي د برتانیې او روسیې د حکومتونو تر منځ، په دغه اړه، ښه تفاهم جریان لري. هغه کتاب ص ص ۴-۵

په ایران کي د قدرت د انتقال په باب خو د روسیې او برتانیې تر منځ ځکه ښه تفاهم موجود وو چي د ایران ثبات او کراري د دواړو هیوادونو په ګټه وه. خو دا چي په ضمن کي د ایران نوي پاچا محمدشاه قاجار کال یو نیم مخکي د افغانانو د وینو تویولو په اړه سوګند یاد کړی وو او اوس هم پر خپل هغه عزم باندي ټینګ ولاړ وو، دا د برتانیې له پاره د اندېښنې موضوع وه او غوښتل یې چي پر هرات باندي د ایران د حملې مخه ونیوله سي نو روسیې د ایران پاچا پر هرات باندي حملې ته تشویقاوه او په ظاهره یې نارې وهلې چي دې مسئله کي هیڅ دول مداخله نه کوي.



محمدشاه قاجار

د برتانیې خارجه وزیر ویسکونټ پالمرستن په تهران کي خپل استازي ښاغلي ایلیس ته ولیکل چي د ایران حکومت ته پر افغانستان باندي د حملې کولو په برخه کي خبرداری ورکړي او د هغه هیواد حکومت له دې عمل څخه منع کړي او ورته ووایی چي پر افغانستان باندي په یرغل کي د بري او ناکامی دواړو په صورت کي به ډېر زیات تاوان ورته ورسېږي او په راتلونکي کي به یې دفاعي طاقت ډېر کمزوری سي. هغه کتاب ص ۵

په تهران کي د برتانیې استازي ښاغلي ایلیس پالمرستن ته ولیکل چي دا د خواشیني ځای دی، چي د ایران پاچا په افغانستان کي د فتوحاتو ډېري لویي نقشې لري او هرات او کندهار د صفوي پاچاهانو د وخت په ډول د ایران خاوره بولي. ایلیس ولیکل چي له صدراعظم حاجي میرزا آقاسي سره یې وکتل او هغه ورته ویلي دي چي د ایران شاه به په پسرلي کي پر هرات او بیا پر کندهار حمله کوي او وروسته به د بلوچستان خوا ته توجه کوي. ایلیس په خپل لیک کي وایي چي روسي ډګروال باروسکي هم د ایران حکومت پر افغانستان باندي حملې ته تشویقوي.

ایلیس د ۱۸۳۵ کال د ډسمبر پر دېرشمه خارجه وزیر پالمرستن ته لیکلي دي چي ما له صدراعظم میرزا آقاسي او خارجه وزیر سره وکتل او له هغوی څخه مي د افغانستان په ارتباط، د دوی د حکومت د خارجي پالیسی په باره کي پوښتنه وکړه. دوی ماته وویل چي زه ولي د افغانستان حکومت یادوم، ځکه چي هلته نه حکومت سته او نه کوم مستحکم دولت وجود لري. دوی وویل چي د افغانستان ډېره لویه برخه په ایران اړه لري او د ایران شاه له افغانانو سره د خپل رعیت په څېر سلوک کوي.

ایلیس وایي کله چي مي له دوی څخه پوښتنه وکړه چي ایران تر کومه ځایه پوري خپله خاوره بولي نو دوی راته وویل چي تر غزني پوري د ایران خاوره ده. د ایران صدراعظم مخکي ماته یوازي د هرات او کندهار نومونه را یاد کړي وه. هغه کتاب هغه مخ.

په هغه لیک کي چي، د (۱۸۳۶م.) کال د جنوري پر اتمه په تهران کي د انګلیسیانو استازي هینري ایلیس د خارجه وزیر ویسکونټ پالمرستن په عنوان لېږلی دی، د هرات او په وروسته کي د ټول افغانستان په باب د روسانو او برتانیې علاقه ښه او روښانه څرګندېږي.

ایلیس لیکي: "ما پرون له هغو مقاماتو سره چي پر خبره یې حساب کولای سم وکتل او هغوی راته وویل چي د شاه په دربار کي د روسانو سفیر په ډېرو ټینګو کلماتو له شاه څخه وغوښتل چي

وخت ضایع نه کړي او ډېر ژر پر هرات باندي حمله وکړي. د ده دلیل دا وو چي که شاه خپل دغه حرکت وځنډوي نو برتانیه به فعاله سي ځکه چي هغوی غواړي د خپلو اهدافو له پاره د افغانستان پاچهي بیرته ټینګه سي.

ما په مخکنیو لیکونو کي تاسي جلالتمآب ته لیکلي وه چي د ایران شاه د افغانستان په برخه کي څه فکر کوي او چي د ایران له وزیرانو څخه مي هر څه هیله کړې ده چي له افغانستان سره په سوله کي ژوند وکړي زما پر خبرو یې غوږ نه دی نیولی. ما تر دغه وخته پوري زیاتره کوښښ کاوه چي د ایران وزیرانو ته ووایم چي د افغانستان په برخه کي یو څه له احتیاط او زغم څخه کار واخلي؛ مګر کله چي پوه سوم چي د روسیې استازی په دغه مسئله کي زما مخالف دریځ لري او د ایران شاه پر هرات باندي حملې ته تشویقوي نو ما هم د ایران له وزیرانو سره په زغرده خبري وکړې. ما ځکه د دې کار جرأت وکړ چي ماته د ده، او افغانستان په مسئله کي، د اینګلینډ د حکومتي مقاماتو نظر را معلوم وو. ما پرون له حاجي میرزا آقاسي او خارجه وزیر سره وکتل او دوی ته مي وویل چي که د ایران مقامات د افغانستان خاوره تر غزني پوري خپله بولي او په دې برخه کي عملیاتو ته تیاری کوي نو زه به درته ووایم چي ما د هند له مقاماتو سره په دې باره کي خبري کړي دي او دا راته څرګنده سوې ده چي برتانیه د ایران د پراختیا غوښتني دغه راز اعمال نه سي زغملای. ما دوی ته وویل چي د ریښتوني دوستی په اساس مي دا خبره درته وکړه؛ هسي نه چي د ایران شاه پر افغانستان باندي حمله پیل کړې وي او بیا ووایي چي ده ته د برتانیې د حکومت نیت او فکر معلوم نه وو.

صدراعظم زما دې خبرو هک پک کړ او راته وې ویل چي موږ هم دا نه سو زغملای چي افغانان له ایران سره د ټولو موافقو په خلاف، هغو ترکمنانو ته قصدا هیڅ نه وایي چي زموږ له خاوري څخه ایراني اتباع تښتوي. میرزا مسعود په دې موضوع کي شخصاً د کامران میرزا نوم یاد کړ او وې ویل چي هغه په خپله له موافقو څخه سرغړونه کوي. ما سمدستي ټول کاغذونه او اسناد وکتل او دوی ته مي وویل چي شاه له کامران میرزا څخه د پوښتني کولو حق لري. مګر د برتانیې حکومت د وسلو د استعمال پر ځای سوله ایز حل ته ترجیح ورکوي. ما دوی ته دغه راز وویل چي که زه یو انګلیس استازی هرات ته ولېږم او هغه له کامران میرزا سره په دې باره کي خبري وکړي زه یقین لرم چي کامران به نور له دې سرغړونو څخه، چي په خپله د ده د تباهی سبب کیږي، لاس واخلي.

حاجي آقاسي زما پېشنهاد ومانه او وې ویل چي د ایران وزیران به خپل ټول کوښښ وکړي چي

د جنگ مخه ونیوله سي. ځکه چي د جنگ په نتیجه کي له دواړو خواوو انسانان وژل کیږي. ما له دې امله خوښي ښکاره کړه چي دوی زما پېشنهادونه ومنل او له وزیرانو څخه مي وغوښتل چي ډېر ژر له شاه سره خبري وکړي. دوی موافقه وکړه.

زه فکر کوم چي نور به دوی د روسیې د استازي پر خبرو باندي چنداني غوږ ونه نیسي ځکه چي په دې برخه کي زموږ د حکومت دریځ ښه ورته څرگند سو." هغه کتاب ص ص ٦-٧

په تهران کي د برتانیې استازي د جنوري پر پنځلسمه، خارجه وزیر ویسکونټ پالمرستن ته ولیکل چي زه به هغه یاداشت درولېږم چي د برتانیې او ایران تر منځ د موجود تړون په باره کي مي لیکلی دی او دا مي ښودلې ده چي دا تړون په هند کي د برتانیې پر امپراطوري باندي څه اغېزه کولای سي.

د برتانیې استازي ولیکل زه پوره یقین لرم چي د برتانیې حکومت ایران ته اجازه نه سي ورکولای چي د افغانستان پر لور پرمختگ وکړي؛ ځکه چي په هند کي یې خپل امنیت او کراري په خطر کي لوېږي. د ایران د دغه پرمختگ له امله به د روسیې نفوذ په هند کي زموږ تر دروازې پوري را ورسېږي. په هغه صورت کي موږ ایران ته د یوه داسي دوست په حیث چي زموږ په مخ کي د یوه دېوال حیثیت لري نه سو کتلای بلکي د یوه دښمن هیواد په سترگه به ورته گورو.

## یاداښت

د ایران پاچا تر غزني پوري د افغانستان خاوره خپله بولي او کلک تصمیم یې نیولی دی چي په پسرلي کي هرات د فتح کولو کار پیل کړي . له بده مرغه چي د هرات کامران میرزا د فقید والا حضرت عباس میرزا سره له تړون څخه سرغړونه کړې ده او خپل وزیر یارمحمدخان ته یې د سیستان د اشغالولو اجازه ورکړې ده او د ایران پاچا ته یې پر هرات باندي د حملې کولو پلمه جوړه کړې ده. په روسیه کي د ایران سفیر د ایران د پاچا بري ته خوشاله دی او کوښښ کوي چي دا حمله هر خونه ژر وسي. د روسیې د استازي د دې خوشالۍ علت معلوم دی: کله چي ایران هرات ونیسي نو د ایران او روسیې تر منځ د تجارتي تړون په اساس به روسیه په هرات کي د کونسلگري د پرانیستلو حق تر لاسه کړي؛ او د ایران استازی به له هغه ځایه څخه په ټول افغانستان کي خپلي پټي

او ښکاره پلټنې او تحقیقات او ارتباطات پیل کړي. که د روسیې او ایران اوسنیو اړیکو ته وګورو نو په افغانستان کي د ایران پرمختګ د روسانو په ګټه تمامیږي. په دې صورت کي نو باید د بریټانیې حکومت د ایران د دغه راز پرمختګ سره په هغه اندازه چي کولای یې سي، مخالفت وښیي. مګر په داسي حال کي چي روسیه په خلاص لاس له ایران سره په افغانستان کي د هغه هیواد په حملو او فتوحاتو کي مرسته کولای سي؛ د بریټانیې لاسونه له ایران سره د دوستی د تړون نهمي مادې تړلي دي. ځکه چي په هغه ماده کي راغلي دي چي بریټانیه به تر هغه وخته پوري، چي ایران او افغانستان دواړو د منځګړتوب غوښتنه ورځخه کړې نه وي، د دواړو هیوادونو تر منځ به جنجالونو او جګړو کي لاس نه وهي. او تر څو پوري چي دا تړون نافذ وي نو بریټانیه به ورته ګوري چي روسیه په افغانستان کي د ایران له پرمختګونو څخه ګټه پورته کوي او بالاخره به ځان په هند کي زموږ د امپراطورۍ چارچوب ته را ورسوي." هغه کتاب ص ص ۷-۸

روسیې پر هرات باندي د ایران د حملې په تشویقولو کي حتی خپل لاس درلودل، له بریټانیې څخه هم نه پټول. یا لږ تر لږه په ایران کي د روسیې استازي کونټ سیمونیچ په څرګنده د خپل هیواد نیت ښکاره کاوه. ځکه چي د (۱۸۳۶م.) کال د اپریل پر دیارلسمه چي په تهران کي د بریټانیې استازی ایلیس د ایران د شاه د ډېر ګران ورور قهرمان میرزا، چي دا وخت د خراسان ګورنر وو، دفتر ته ورغلی وو نو هلته یې د روسیې استازی کونټ سیمونیچ لیدلی وو چي پر هرات باندي یې د ایران د راتلونکي حملې په باب خبري کولې او کله چي ګورنر پوښتنه ورځخه وکړه چي ته به هم د ایران له شاه سره، په دغه سفر کي، ملګری یې او کنه؟ نو سیمونیچ سمدستي جواب ورکړ چي که شاه امر ورته وکړي نو دی تیار دی. وروسته ګورنر پوښتنه ورځخه وکړه چي که دا جنګي عملیات او لښکرکښي له هرات څخه تر کندهار او کابل پوري ورسیږي هم به ته له شاه سره ملګری یې؟ سیمونیچ ورته وویل چي تر هغه ځایه چي د آسونو د ګاډۍ له پاره سړک او لاره وي او تر هغه ځایه چي د ده صحت اجازه ورکړي له شاه سره به ملګری وي. ګورنر ورته وویل چي له تهران څخه تر هرات پوري لاره د آسونو د ګاډۍ له پاره بېخي سمه ده. هغه کتاب ص ۱۲

په زړه پوري خبره دا ده چي د روسیې حکومت له لومړي سره د هرات د محاصرې او جنګ په جریان کي او له جنګ څخه وروسته تر پایه دا خبره کوله چي د روسیې حکومت پر هرات باندي د ایران له حملې سره مخالف دی، خو په تهران کي د ایران سفیر کونټ سیمونیچ هم د ایران له وزیرانو او هم حتی د ایران له پاچا سره په عامه ویل چي ایران باید پر هرات باندي حمله وکړي. یو

ځل خو یې د ایران پاچا ته د انګرېزي صاحب منصبانو په مخ کي وویل چي هیله لري اعلیحضرت به ډېر ژر د هرات پر لور حرکت وکړي او هغو کسانو ته به سزا ورکړي چي هم د اعلیحضرت او هم د روسیې د امپراطور اتباع تښتوي او د غلامانو په بازارونو کي یې خرڅوي. سیمونیچ وویل هیله لري چي اعلیحضرت به په دغه حرکت کي بریالی سي او نه یوازي به یې له خپل هیواد سره احسان کړی وي بلکي پر روسیه باندي به یې هم احسان بار کړی وي. هغه کتاب ص ص ۱۷-۱۸

د نړۍ د ډیپلوماسۍ په تاریخ کي به یا داسي پېښه سوې نه وي او یا که سوې وي نو ښځي استثنایي حالت به لري چي د یوه هیواد سفیر، په بهر کي، د خپل حکومت د پالیسۍ مطلق مخالف حرکت کوي. دې عمل ته دي تقریباً دوه کاله دوام ورکوي؛ او بیا دي خپل حکومت ته اطمینان ورکوي چي د پالیسۍ سره سم عمل یې کړی دی.

په تهران کي د روسیې سفیر کونټ سیمونیچ، سره له هغه چي د انګرېزي صاحب منصبانو په مخ کي د ایران پاچا پر هرات باندي حملې کولو ته تشویقوي مګر د (۱۸۳۷م.) کال د جولای د میاشتي پر دیرویشتمه یې خپل حکومت ته ولیکل چي د ایران پاچا د رواني میاشتي پر یوولسمه د خراسان پر لور حرکت وکړ. سره له هغه چي ما پخوا څو ځله ښځي ډېر کوښښ کړی دی، چي هغه د هرات پر واکمن باندي له حملې کولو څخه را وګرځوم او په پای کي مي یو ځل بیا هم کوښښ وکړ خو بریالی نه سوم. ما بالاخره هغه ته وویل چي که پر هرات باندي حمله حتمي وي نو دا به د دوی په ګټه وي چي که د پوځیانو قومانده خپل یوه ورور ته وسپاري او په خپله په پایتخت کي پاته سي... زه پوهېدم چي که د ایران پاچا د مني تر موسم پوري معطل کړم؛ تر هغه وخته پوري به د هرات ستونزه، له کامران میرزا سره، د خبرو له لاري حل سي. مګر زما کوښښونو هیڅ نتیجه ور نه کړه... پاچا زه ور وغوښتلم او ماته یې په شفاهي توګه وویل چي زما په دلایلو نه قانع کیږي او پر هرات باندي به خامخا حمله کوي... ما ورته وویل چي زه له ده سره په دې سفر کي نه سم ملګری کېدلای او د خپل امپراطور د خارجه وزارت د هدایت سره سم مي عمل وکړ. هغه کتاب ص ص ۵۹-۶۰

خو له بلي خوا د روسیې خارجه وزیر کونټ نیزلروډ په روسیه کي د برتانیې استازي ته وویل چي که سیمونیچ د ایران پاچا ته پر هرات باندي د حملې کولو مشوره ورکړې وي نو دا یې د هغه هیواد له پالیسۍ سره مطلق مخالف حرکت کړی دی. د روسیې خارجه وزیر وویل چي موږ په ایران کي خپل سفیر ته په مشخصه توګه امر کړی دی چي د ایران پاچا پر هرات باندي له حملې کولو څخه

منع کړي. ده وویل یقین لري چي د برتانیې سفیر ته غلطه اطلاع رسېدلې ده چي وایي د روسیې سفیر د ایران پاچا پر هرات باندي حملې کولو ته تشویق کړی دی. کونټ نیزلروډ د برتانیې سفیر ته وویل چي دی د برتانیې له دې نظر سره بشپړ توافق لري چي د هرات په برخه کي د ایران د پاچا اوسنی پالیسي یوه اشتباه ده. هغه کتاب ص ص ۲۲-۲۳

په ایران کي د برتانیې استازي د (۱۸۳٦م.) کال د اپرېل پر نهه ویشتمه ولیکل چي په ایران کي پر هرات باندي د حملې له پاره تیاری روان دی. له اذربایجان څخه قواوي را رسېږي او عسکرو ته شپږ میاشتي پېشکي تنخواوي ورکړه سوي دي. د ایران مقاماتو د اصفهان له ستر مجتهد حاجي ابراهیم څخه غوښتي دي چي منبر ته پورته سي او د افغانانو پر ضد جنګ جهاد وبولي. هغه هم اعلان وکړ چي له افغانانو سره جنګ کول جهاد دی او هرڅوک چي په دې جنګ کي ووژل سي هغه شهید دی. هغه کتاب ص ۱۵

## ایرانیان د هرات پر لور

په (۱۸۳۵م.) کال کي د سیستان بلوڅانو په هغه سیمه کي د کامران پر قلمرو باندي حمله وکړه او کامران د هغوی د حملو د دفع کولو له پاره په هرات کي د جنګ تیاری ونیوی. د سیستان حکومت د ایران له پاچا څخه د مرستي غوښتنه وکړه او هغه ته یې په سیمه کي د پوځي مداخلې پلمه جوړه کړه.

ځوان انګرېز صاحب منصب ایلډرډ پوټینجر دا وخت په هرات کي وو او لیکي چي د (۱۸۳۷م.) کال په اوړي کي په هرات کي بله خبره نه وه او ټولو خلکو پر هغه ښار باندي د محمدشاه قاجار د حملې په باره کي خبري کولې. شاه کامران او وزیر یارمحمدخان، له خپلو لښکرو سره د جوین د فتح کولو له پاره تللي ول. پوټینجر وایي سړی حیران سي چي په دغه راز حساس وخت کي د دونه وړې پروژې له پاره دونه لویه پوځي قوه روانول او له هغه ځایه بیرته بې نتیجې را ګرځېدل آخر د څه له پاره. دی وایي په دې لښکرکښي کي د یارمحمدخان هدف دا وو چي کامران له خپل وروستي پوځي طاقت څخه محروم کړي او پوځ دونه خوار او ذلیل کړي چي له سره ترمیم ته ضرورت ولري. کنه نو د هرات توپخانې او پوځیانو د جوین له جګړې څخه مخکي، دونه طاقت او توان درلود چي محمدشاه به تر خپل سرحد په راتېرېدلو کي لا هم ستونزي درلودلای. پوټینجر

وایي په ښار کي ډېر ژر آوازه خپره سوه چي د هرات پوځ د جوین محاصره پرې ایښې او د ښار خوا ته را روان دی. د شاه کامران له کمپ څخه استازي ښار ته راغلل او خلکو ته یې ویل چي غلې دانې جمع کړي او د هرات د قلا د ترمیمولو او قوي کولو کار پیل کړي.

پوټینجر وایي هغه استازی چي شاه کامران د ایران د پاچا دربار ته لېږلی وو او له هغه څخه یې د کندهار او کابل د بیرته نیولو له پاره مرسته غوښتې وه د شهنشاه له خوا خبر راوړ چي هغه هرات او کندهار دواړه د خپل ځان له پاره غواړي او له هرات څخه به د نورو راتلونکو پوځي عملیاتو له پاره د لومړني مرکز په حیث کار اخلي. داسي ویل کېدله چي د ایران شاه غواړي امیر دوست محمدخان د ده تابعیت ومني او وروسته له هغه سره یو ځای د سیکهانو څخه د پېښور د اخیستلو له پاره روان سي. کې ص ص ۲۰۹-۱۰

پو ټینجر وایي د شهنشاه په شرایطو کي راغلي وه چي د دې عملیاتو په جریان کي باید هرات په لاره کي تابع سي. له کامران څخه شاهي القاب واخیستل سي. سکه او خطبه د ایران د شاه په نوم جاري سي او د هرات په ښار کي د ایران پوځي مرکز جوړ سي. طبیعي خبره ده چي کامران دا شرایط نه سوای منلای. هغه کتاب ص ۲۱۱

ضمناً د ایران نوي ټولواک دا انتظار درلود چي یا به کامران او یا وزیر یارمحمدخان د هغه د پاچا کېدلو د مبارکی له پاره تهران ته ورسي نو یې له کامران څخه تهران ته د ورتللو غوښتنه وکړه. کامران عذر وغوښت او په ضمن کي یې له فیروز کوهي، جمشیدي او تایمني هزاره گانو څخه د مرستي غوښتنه وکړه.

محمدشاه قاجار د کامران میرزا دې عمل په غوسه کړ او په پایتخت کي یې تقریباً اتیا زره پوځیان پر هرات باندي د حملې له پاره تیار کړل. کامران میرزا هم د هرات د ښار د قلا او برجونو په ترمیمولو لگیا سو او د ښار پر شاوخوا باندي را گرځېدلی خندق یې ژور کړ او دوه ویشت زره سپاره او پیاده عسکر یې په ښار کي تیارسي کړل. د ایران پاچا د خپلو پوځونو یوه برخه باد او بله یې د غوریان د قلا د فتح کولو له پاره واستوله. غوریان تر هغه وخته چي په قلا کي یې روغ دېوال پاته نه سو مقاومت کړ. بالاخره د غوریان حکمران شېرمحمدخان، چي د هرات د یارمحمدخان الکوزي ورور وو، له خپلو پوځیانو سره سلامي سو. د محمدشاه دربار ته ورغی او د مقاومت کولو له امله یې بخښنه وغوښتله. کې ۲۱۶

سردار شیرمحمدخان له کمپ څخه خپل ورور وزیر یارمحمدخان ته لیک واستاوه او هغه ته یې وویل چې د ایران له پاچا سره دې هیڅ په وس پوره نه دي. له هغه سره ډېره درنه توپخانه ورسره ده او د توپچي داسي اروپایي صاحب ورسره دی چې په دوو ورځو کي به هرات له خاورو سره برابر کړي. هسي ښار مه تباه کوه او خلک مه وژنه. که د محمدشاه دربار ته ورسې هغه به دي ونازوي. یارمحمدخان په جواب کي ورته ولیکل چې که ته له قلا او خپل مورچل څخه د دفاع کولو په وخت کي د وژل کېدلو په خوند پوهېدلای نو د غوریان قلا به دي دښمن ته نه پرېښودله. تر هغه وخته پوري چې یوه مرمی راسره وي. تر هغه وخته چې توره مي را سره وي او تر هغه وخته چې یو نفس مي لا باقي وي زه به قاجاریانو ته سر ټیټ نه کړم. زه پوهېږم چې له بې ننګۍ څخه د ځان د ژغورني یوازینۍ لار په مورچل کي وژل کېدل دي. فیریه ص ۲۲۶

وزیر یارمحمدخان هم د غوریان د قلا له فتح کېدلو څخه یوه ورځ وروسته د هرات د برج خاکستر په نوم سر ته وخوت او د تسلیمېدلو او اطاعت کولو ژمنه یې وکړه او ډګروال عزیز خان مکري، د شاه له اردو څخه هرات ته ولاړ او له کامران سره یې وکتل او د ایران د پاچا له خوا یې لیک ورته راووړ، مګر معلومه سوه چې هغوی ریشتیا نه وایي او د جنګ اور بیرته تازه سو. هروي ص ۲۸

هروي هم د هرات د محاصرې په وخت کي، د نورو ایراني منابعو په څېر مبالغه کوي. د ایراني عسکرو د زړه ورتوب او قربانیو خبري کوي او وایي چې یو ځل د ایران عسکر د هرات قلا ته دونه ورنیژ دې سول چې د هراتي عسکرو توپکونه یې، چې له سوریو څخه به یې را ایستلي وه، تر میل نیول او ورڅخه اخیستل یې. مګر د ایرانیانو په مشرانو کي د بې اتفاقی په وجه د محاصرې کار له یوې ورځي بلي ته ځنډېدی. ص ۳۴

هروي د نورو تاریخي منابعو په خلاف، چې وایي د محاصرې په وروستیو شپو کي د ایران عسکر له هره درکه ستړي سوي او زړه ماتي سوي ول، ادعا کوي چې د ایران عسکرو یوه ورځ وروسته د هرات د ښار د فتح کولو له پاره تیاری نیولی وو خو د انګلیسیانو سفیر له محمدشاه څخه وغوښتل چې خپل عسکر بیرته پر شا کړي. په همدغه وخت کي یې خپلي جنګي کښتۍ د فارس خلیج ته رسولي وې او د ایران پاچا ته یې وویل چې که له محاصرې څخه لاس وانه خلي نو دوستي به په دښمني بدله سي. د ایران شاه هم د خپلو عسکرو پر شا کولو او د محاصرې پرېښودلو ته مجبور سو او تهران ته روان سو. هروي ص ۳۵

له محمدشاه قاجار سره دا ځل هم طبعاً د روسانو مستقیم تشویق ورسره ملګری وو او د ښو پیسو ژمنه یې هم ورسره کړې وه. موږ مخکې ولیدل چې روسانو د کندهار سردارانو ته هم پر دغه تړلې دوکان حواله ورکړې وه او ورته ویلي یې وه چې پر محمدشاه قاجار باندې پنځلس میلیونه روپۍ پور لري او هغه پیسې به دوی ته ورکړي او دوی یې باید په خپلو منځونو او د کابل له واکمن سره په مساوي توګه وویشي.

له دې پېښوڅخه درې ځلور کاله مخکې انګرېزانو د امیر دوست محمدخان په مقابل کې شاه شجاع ته وسلې او پیسې ورکړې وې او د هغوی تر منځ د کندهار په جنګ کې شاه شجاع ماته خوړلې او بیرته لودهیانې ته تښتېدلی وو. امیر دوست محمدخان د انګرېزانو له ویرې له روسانو څخه مرسته غوښتې وه او روسانو داسي ورځ له خدایه غوښته. خپل استازی ویتکیویچ یې د ایران له لارې افغانستان ته واستاوه او د انګلیسانو د صاحب منصب سرهینري راولنسن په اصطلاح ستره لوبه پیل سوې وه.

په (۱۸۳۵م.) کال کې د برتانیې خارجه وزیر لارډ پالمرستین په تهران کې د برتانیې استازي هینري ایلیس ته لیکلي وه چې د ایران شاه ته د خپل پلار او نیکه د وفات له امله تسلیت او د ده د پاچا کېدلو مبارکي ووایي او په ضمن کې هغه ته خبرداری ورکړي چې د افغانستان په خاوره کې د پر مخ تللو څخه ځان وژغوري. ایلیس خارجه وزیر ته ولیکل چې د ایران شاه هرات د ایران خاوره بولي او ورته ویلي یې دي چې د هرات څخه وروسته د کندهار او غزني پر لور د پرمختګ نیت لري او بیا به د بلوڅانو او ترکمنانو چاره کوي. کې ص ص ۱۵۴-۱۵۵ ( که ایلیس د پښتنو له فوکلور سره بلد وای نو حتماً به یې ورته ویلي وای چې په دې ارمان کې خو دې پلار هم مړ سو )

## د هرات په برخه کې د لویو قدرتونو مختلفي ستراتیژۍ

د ستري لوبي د سطرنج میدان بیا هم د هرات ښار وټاکل سو چې له چنګیز څخه تر هلاکو، تر ګوډ تېمور او نادرشاه پورې یې په لس هاوو قلابندۍ لیدلي وې او لا هم لکه غر ولاړ وو. د لوبي اصلي لوبغاړي ایران، برتانیه او د هرات مستحکم ښار او اولس وو او روسانو د داسي نندار چي رول درلود چې په تاوان کي شریک نه وو او د ګټي په صورت کي یې له اېران څخه په وچ زور ونډه اخیستله.

روسانو د دې جنګ په میدان کې پوځیان نه درلودل چې انګلیسیانو یا افغانانو ته یې د ګیلې یا اعتراض کولو پلمه برابره کړې وای او د جنګ لمبې یې له لمنې څخه دومره لیرې بلېدلې چې دوی ته یې په هیڅ صورت تاوان نه سوای رسولای. ګواکې دا جنګ په هر صورت د هغوی په ګټه وو. که انګلیسیانو احیاناً مداخله کولای نو په هغه صورت کې به د برتانیې او ایران اړیکې خرابېدلای او د دې وضع منځ ته راتللو ته خو روسانو له پخوا هم فعالیت کاوه.

محمدشاه قاجار د هرات د محاصره کولو او نیولو په فیصله کې څو اشتباهات کړي وه. لومړی خو یې د خپل داسې دښمن په خوله کړي وه چې لس کاله مخکې یې د ایران څخه ډېرې لویې، حاصل خېزه او ستراتیژیکې سیمې او ولایتونه په زور اخیستي وه.

- د هرات نیول یې ډېر آسان کار بللی وو. یوازې یې پر خپل زور حساب کړی او د هرات د اولسونو پر اراده او د هغه ښار پر استحکام یې حساب نه وو کړی.

- د افغانستان د مشرانو تر منځ پر بې اتفاقۍ او پر هغو لیکونو یې حساب کړی وو چې ده او د ده نیکه فتحعلي شاه قاجار ته یې، یا په خپل قلمرو کې د رقیبانو د ځپلو او یا له خپل قلمرو څخه د بهر دښمن د حملې له وېرې، لېږلي او د مرستې غوښتنه یې ورڅخه کړې او ضمناً یې د خپل تابعیت او وفادارۍ اظهار هم پکښې کړی وو. خو کله چې ده د هرات پر لور پرمختګ پیل کړ نو په لومړي قدم کې ورته معلومه سوه چې خبره هغسې نه ده.

- د انګرېزانو سره یې پر هغه وروستي تړون باندې حساب او باور کړی وو چې پکښې راغلي وه چې که ایران پر افغانستان باندې حمله وکړه نو انګلیسیان به د هغوی تر منځ په جګړه کې تر هغه وخته پورې غرض نه کوي چې دواړو خواوو د حکمیت غوښتنه ورڅخه کړې نه وي. د ایران شاه لا په دې نه پوهېدی چې انګلیسیان تر هغه وخته پورې تړونونه رعایت کوي چې د دوی له ګټو سره یې مستقیم ټکر نه وي کړی. او چې هر وخت یې زړه سي د تړون ماتولو ته پلمه جوړولای سي.

- د محمدشاه له پاره هرات ځکه مهم وو چې یو خو یې په شمال کې ډېر ولایتونه روسانو ورڅخه لاندې کړي وه او ده غوښتل چې په دې توګه یو څه تاوان جبران کړي او دغه راز خېوا او بخارا ته نیژدې سي. او په یوه فرصت کې به حملهورباندې وکړي. دا ورته معلومه نه وه چې هغه سیمې د وخته لا روسانو په خپله نقشه کې شاملې کړې دي. او تر ټولو مهمه دا چې محمدشاه ته ښایي دا معلومه نه وه چې هرات انګرېزانو ته څومره اهمیت لري.

دا وخت د هرات اصلي واک اختيار د يارمحمدخان په لاس کي وو او کامران هسي په نامه پاچا وو او د يوه نظر بند حيثيت يې درلود. د يارمحمدخان د ښې طالع پر هرات باندي د ايران د يرغل د آوازې د ګډېدلو او په ښار کي د محاصرې په مقابل کي د تياري نيولو د اعلان څخه درې ورځې مخکي يو ځوان برتانوی صاحب منصب ايلډرډ پوټينجر هغه ښار ته د کابل او هزاره جات له لارې ورغلی وو. او په ښار کي د يوه عادي تاجر په جامه کي ګرځېدی او په يوه کاروانسرای کي يې ژوند کاوه. هغه د يوه هراتي ډاکټر په سلا، چي کلونه مخکي يې له آرتر کانلي سره پېژندلي وه، خپل ځان يارمحمدخان ته معرفي کړ. يارمحمدخان د هغه له توپچي مسلک او عصري پوځي مهارتونو څخه ډېره ښه ګټه واخيستله او د قلا د ټينګولو او اوړدې محاصرې ته د تيارولو چاري يې ور وسپارلې.

د نوي کال په لومړيو شپو کي په ښار کي د خطر اعلانونه وسول او د ښار مدافعينو د قلا له سره څخه وليدل چي ايرانيانو دونه لوی توپ راوړی دی چي تر اوسه يې نه وو ليدلی. خو د توپ وړونکې عراده يا ګاډی له زيات وکم دوولسو ډزو څخه وروسته ماته سوه او په دې توګه توپ له کاره ولوېدی. ايرانيانو چي هر څه خوارې وکښلې له توپ څخه يې بيا کار وانه خيست. سره له هغه چي له ايرانيانو سره روسي سلاکاران هم ملګري وه خو د ښار د محاصرې په ماتولو بريالي نه سول.



کهندل خان

د محاصرې له پیل څخه معلومه سوه چي د ایرانیانو د انتظار په خلاف په دوو میاشتو عملیاتو کي چنداني پرمختګ نه دی راغلی. په تهران کي د برتانیې سفیر سر جان مکنایل خو ځله د ایران له شاه څخه وغوښتل چي د هرات له محاصرې څخه لاس واخلي مګر هغه پر خپله خبره ټینګ ولاړ وو. مکنایل خارجه وزیر پالمرسټن ته ولیکل چي د ایران توپخانه چي د هرات په قلا کي هر څونه ورانی وکړي د قلا او ښار مدافعین یې بیرته په ډېر لږ وخت کي ترمیم کړي. ایرانیانو په یوه حمله کي اویا تنه تلفات ورکړل او په دې وروستیو ورځو کي خو د ایرانیانو تلفات په ورځ کي، په اوسط ډول، دېرش تنه وي او د هراتیانو څخه کله کله یو تن هم نه وژل کیږي. مکنایل ولیکل چي تر اوسه پوري نه د شاه سره د مرستي له پاره د کهندل خان پوځونه را رسېدلي او نه له کامران سره د شاوخوا قبایلو او قومونو مرسته کړې ده، بلکي یوې خوا ته شاه او بلي خوا ته د هرات اولس دی.

مکنایل د هرات د ښار استحکام، د خلکو ټینګوالي د شاوخوا د موسم نرم والي او سمسورتیا ته حیران دی او لیکي چي د هرات خلکو چي کومه دفاع وکړه نو دا د ستاینې وړ ده. د بلي خوا چي ورته ګورې له شاه سره تقریباً څلوېښت زره پوځیان او اتیا توپونه ورسره دي. څه کم دوې میاشتي کیږي چي د هرات د قلا څخه دباندي پروت دی. خو نه عسکر وړي او بې موادو سول او نه د آسونو او څارویو له پاره خوراک کم سو او نه توپچي قوه د مهماتو له کمبود سره مخامخ سوه نو سړی پوهیږي چي دا ښار د پوځي عملیاتو او محاصرې له پاره څونه تیار دی او دغه راز د محاصرې په مقابل کي څونه ټینګ دی.

مکنایل لیکي: چي زه پر دې خبري اعتراف کوم چي زما په ذهن کي د هرات اهمیت تر پخوا زیات سو. ما هر وخت ویلي وه چي دا ښار د هند د امنیت او ارامۍ له پاره څومره مهم دی. خو ما دا فکر نه کاوه چي دا ښار به دونه قوي وي او له ځان څخه به داسي غښتلې دفاع کولای سي. ما فکر نه کاوه چي دا به د کوم بل احتمالي یرغلګر قوت په مقابل کي دونه غښتلی او قوي مورچل وي. زه اوس فکر کوم چي که هرات هر قدرت ته په لاس ورسي نو تر هغه به چي ما یې فکر کړی وو موږ ته زیات تاوان پېښ کړي.

مکنایل لیکي چي ماته اوس داسي ښکاري چي که شاه په هرات کي بری تر لاسه کړي هغه به د افغانستان د نورو ښارونو نیولو ته هم مخه کړي. په هغه صورت کي که زموږ له قدرت سره په ټکر کي نه سي نو زموږ نفوذ ته خو به حتماً تاوان پېښ کړي. او که چیري د ایران شاه هرات تر لاسه کړي نو دونه به په خپل قوت مغرور سي چي بیا به د روغي جوړي کولو له پاره زموږ پر خبره غوږ نه نیسي. او چي هرات یې په لاس کي وي نو بیا به دونه غښتلی سي چي زموږ سره به د مخالفت او

مقابلې کولو توان پیدا کړي، ځکه چې موږ ته د تاوان رسولو قدرت به يې ډېر زيات سي. مګر زه يقين لرم چې که برتانیه د هرات په ساتلو کي مداخله وکړي نو د دغه راز شرایطو د راتللو مخه نیولای سي.

مکنایل وايي که موږ غواړو چې د هرات د سقوط مخه ونیسو او که موږ غواړو چې د شاه د حملو په مقابل کي د کامران ملاتړ وکړو نو دا باید اوس وکړو ځکه د هغه تر سقوط وروسته به دا ملاتړ هم تاواني او هم چنداني موثر نه وي. مکنایل وايي که د ایران شاه د افغانستان هره سیمه او ښار لاندي کړ هغه به د هغې سیمي قومي مشران له ځان سره ملګري کېدلو ته مجبور کړي او د بلي سیمي د نیولو تکل به وکړي. نو که موږ غواړو چې د هغه مخه ونیسو باید هغه پرې نه ږدو چې په افغانستان کي د پښې د ایښودلو ځای پیدا کړي.

مکنایل لیکي چې د هرات په موضوع کي د برتانیې د مداخلې په مخ کي تر ټولو لوی خنډ د تهران د (۱۸۱۴م.) کال د موافقتنامې نهمه ماده ده چې د دواړو هیوادونو تر منځ په جګړه کي زموږ د مداخلې مخه نیسي. مګر دوی دا نه سي ویلای چې په هغه تړون کي ایران ته اجازه ورکړه سوې وه چې پر یوه داسي ښار باندي غیرعادلانه حمله وکړي چې هغه په خپله د هند د دفاع له پاره په دغه اندازه ارزښتمن وي. په داسي حال کي چې اوس حاضر د شاه عمل د داسي قدرت د نفوذ د زیاتولو په ګټه دی چې د هغه په مقابل کي موږ له شاه سره اتحاد وکړ. کوریس پانډینس ص ص ۹۷-۱۰۰

دا چې مکنایل به له ایران سره د تړون د دغې مادې په تعبیرولو کي څومره پر حق وو هغه د مکنایل کار دی ځکه چې زور په ذات کي منطق ته ضرورت نه لري؛ خو دونه ویلای سو چې د هرات د هغې محاصرې په وخت کي له ایرانیانو او روسانو سره د انګرېزانو د ګټو ټکر د افغانستان او افغانانو په ګټه وو. او په دې برخه کي هغه متل ریشتیا کیږي چې وايي خدای دي هغه شر پېښوی چې زموږ پکښې خیر وي.

په تهران کي د برتانیې سفیر جان مکنایل د (۱۸۳۸م.) کال د جون د میاشتي پر پنځه ویشتمه، د برتانیې خارجه وزیر ته دوه لیکونه واستول او له دوهم لیک څخه يې ښکاري چې هرات انګرېزانو ته څومره زیات ستراتیژیک اهمیت لري او سړی پوهېږي چې د برتانیې سفیر هسي بې ځایه د جنګ په مورچو کي شپې نه تېرولي.

جان مکنایل په لومړي لیک کي د شاه پر کمپ باندي، په شپه کي، د هزاره ګانو او جمشیدیانو د یوې حملې په باب رپوټ ورکوي چي هغوی د شاه له کمپ څخه تقریباً دوه سوه آسونه او یابوګان وتښتول چي په هغوی کي یې اتلس د روسیې د سفیر مال وو. درې څلور سوه، د ښاریو ساتونکي، یې بندیان ورسره بوتلل او پنځه ویشت یې ووژل. د شاه له کمپ څخه د هغوی د تعقیبولو له پاره قوه واستول سوه مګر له هزاره ګانو او جمشیدیانو سره یې زور نه رسېدی او بیرته راستانه سول.

بل لیک یې د هرات په باره کي دی او وایي چي د هند پر لور د ټول افغانستان کیلي هرات دی. دی وایي زه نه غواړم چي پر تاسي جلالتمآب باندي خپل نظر تحمیل کړم ځکه چي ما پخوا هم په دې باره کي خپل نظر څرګند کړی دی خو دونه ویلای سم چي زه مخکي دونه زیات د هرات په اهمیت نه پوهېدلم. دی وایي زه باید درته ولیکم چي د اېران له سرحد څخه تر هند پوري دا سیمه تر هغه چي ما یې تصور کاوه په څو چنده غني ده. زه په بشپړ باور درته ویلای سم چي له ګرجستان څخه تر کندهاره او تر اباسین پوري ، د یوه لوی پوځ په مقابل کي، نه فیزیکي خنډ موجود دی او نه د موادو کمی سته. مکنایل وایي د ایران پوځ دا اووه میاشتي کیږي چي دلته پروت دی او ټوله ګوزاره یې د هرات او غوریان په شاوخوا حاصلاتو کړې ده او تر اوسه یې د سبزوار او فراه حاصلاتو ته لاس نه دی وروړی. مکنایل وایي زه ویلای سم چي نه یوازي له هراته تر کندهار پوري د یوه لوی پوځ په مقابل کي خنډ موجود نه دی بلکي د پوځ تېرېدلو ته اسانتیاوي لا هم سته. دی وایي دغه علت دی چي زه وایم هر څوک چي دغه ښار ونیسي او په کنټرول کي یې ولري نو بیا د هند له پاره هیڅ امنیت نه سته. که ما د دې ښار په باره کي پخوا معلومات درکړي وي زه هغه ځکه بیرته اخلم چي ما د دې ښار په باره کي په دغه اوسنی اندازه اطلاعات نه درلودل.

مکنایل وایي: په دې صورت کي به نو دا ډېره خطرناکه پالیسي وي چي که موږ ایران ته اجازه ورکړو چي د روسیې په مرسته دا ښار او سیمه ونیسي او په دې توګه د افغانستان اصلي دفاعي کرښه ماته کړي او زموږ دفاعي قوت په داسي حال کي را کمزوری کړي چي ایران او روسیې دواړو لاس سره یو کړی وي. زه ځکه له لارډ آکلینډ څخه غواړم چي په هره وسیله کولای سي هرات وژغوري.

مکنایل لیکي: چي ماته په عین وخت کي څرګنده سوې ده چي هرات له ځان څخه د دفاع کولو توان لري او نه یوازي مي له پوټینجر څخه غوښتي نه دي چي له هراته را ووځي بلکي ورته ویلي مي دي چي تر څو کولای سي هلته پاته سي او د ایران حکومت ته مي رسماً اعلان کړی دی چي پوټینجر په هرات کي د هند د حکومت استازی دی.

مکنایل لیکي: داسي رپوټونه خپاره سوي دي چي روسیې او هرات داسي جوړه سره کړې ده چي ایران دي هرات د هغو مځکو په بدل کي ونیسي چي روسیې په دې وروستیو وختونو کي له هغه هیواد څخه بېلي کړي او نیولي دي. که څه هم چي زه دا رپوټ هسي یوه آوازه بولم خو د روسیې استازي کونټ سیمونیچ د یارمحمدخان استازی محمدامین تهدید کړی او ورته ویلي یې وه چي که هرات د ایران پاچا ته نه تسلیمېږي نو دی به پر هغه ښار باندي د روسیې پوځونه ور مارش کړي.

مکنایل وایي: ما څه موده مخکي لارډ آکلینډ ته یو لیک لېږلی او یوه کاپي مي تاسي ته هم لېږلې وه او په هغه کي مي درته لیکلي وه چي کونټ سیمونیچ په تهران کي د ایران یوه دولتي مقام ته ویلي وه چي ده د ایران شاه ته مشوره ورکړې ده چي د هرات له سقوط څخه وروسته پر سند باندي حمله وکړي. ماته په لومړي سر کي دا خبره بابېزه ښکاره سوه مګر کله چي په کندهار کي له سردارانو سره د روسیې له تماسونو څخه خبر سوم نو پوه سوم چي په دې خبره کي یو څه سته. کوریس پانډینس ص ص ۱۸۶-۱۸۸

لکه څرنګه چي ایراني مؤرخین د هرات د هغي محاصرې په باب د ایرانیانو د قواوو د زړه ورتوب او قربانیو په برخه کي تر حد زیاتي مبالغې کوي په هغه اندازه انګرېزان هم د خپل یوه صاحب منصب ایلډرډ پوټینجر، چي په هغه وخت کي پنځه ویشت کلن یا شپږویشت کلن ضابط وو مبالغه کوي. دوی زیاتره د هرات د محاصرې دوام او د ایران د وسلو، پوځونو او په تېره بیا توپچي قواوو په مقابل کي د افغانانو د مقاومت دوام د خپل صاحب منصب کمال بولي او هغه ته یې د هرات د فاتح او قهرمان لقب ورکړی دی. په دې کي شک نه سته چي یارمحمدخان او د هرات نورو جنرالانو به د دغه ځوان انګرېز صاحب منصب له عصري پوځي مهارتونو، په تېره بیا د هغه له توپچي مسلک څخه استفاده کړې وي مګر دا خبره به د منلو نه وي چي سړی د یوه بشپړ ښار تقریباً لس میاشتني مقاومت د یوه پردي صاحب منصب کمال ته منسوب کړي. که د هرات خلکو له خپل استقلال سره ژوره مینه نه درلودلای او د هرات عسکرو او مشرانو د ایران ګولیو ته سینې سپر کړي نه وای، او ددې اوږدې، ظالمانه محاصرې په وخت کي یې لوږي ګاللي نه وای، دا خاوره به د ایرانیانو لاس ته ورغلې وای او لا معلومه نه وه چي تر کله به د هغوی په لاس کي پاته سوې وای. سرجان کې هم دې خبري ته ډېره ښه اشاره کوي او وایي چي د دې خبري هېرول به بې انصافي وي چي د هرات قواوو خپل بری په خپله توره وساتئ. دوی چي به هر ځل د ایران د قواوو

ماته ولیده نو ډېر به زړه ور سول ځکه چې دوی د محمدشاه قاجار له عسکري زور او پوځ څخه په وهم کې وه او کله چې یې ولیدل چې د هغه د حملو په مقابل کې مقاومت کېدلای سي نو هر یوه ته ځان قهرمان ښکارېدی او یوې کوچنۍ بریالۍ حملې به د ډېر لوی بري حیثیت ورته درلود. کې ص ۲۸۲

د محاصرې له پیل کېدلو څخه مخکې د ایران پاچا محمدشاه د کامران او د هغه له وزیر یارمحمدخان څخه څو ځله د مالیاتو د نه رسېدلو له امله شکایت وکړ خو د هرات واکمنانو نه یوازې د هغه پر شکایت غوږونه کاڼه اچول بلکې ځانونه یې مستقل بلل او په وروستیو کې یې په سیستان او شاوخوا علاقو کې پوځي عملیات هم کړي وه. د محاصرې له پاره د هرات مشرانو تیاري درلوده او د شاوخوا کلیو څخه یې خلک او مواد ښار ته راوړي وه. محاصره بالاخره د (۱۸۳۷م.) کال د نوامبر پر دیرویشتمه پیل سوه او د محاصرې له پیل سره سم له دواړو خواوو د توپکو، توپونو او سپرو عسکرو حملې پیل سوې. افغاني عسکرو په یوه حمله کې ډېر زیات بندیان او د ایرانیانو سرونه ښار ته راوړل. د ایرانیانو سرونه یې په نېزو پېیلي په ښار کې وګرځول او چې څه بندیان یې په لاس ورغلي ول هغه یې پر ترکمنانو باندې د آسونو په بدل کې وپلورل او مرو ته یې واستول. کې ص ۲۱۹

په افغانستان کې به ډېرو واکمنانو ظلمونه کړي وي او ډېرو کسانو به هر څه د ځان له پاره غوښتي او د هیواد په ګټو کې به یې ری نه وي وهلی؛ خو د یارمحمدخان په اندازه ظلمونه یوازې د یوه ناروغ سړي کار وو. یارمحمدخان د پیسو او جواهراتو په تر لاسه کولو کې هیڅ ډول اصول نه منل او له هغه سره ورسره ملګرو او نیژدې کسانو هم د ده په څېر هره ناروا کوله. پوټینجر یوازې د هرات د ښار د محاصرې په وخت کې له افغانانو سره مرسته ونه کړه بلکې د محاصرې په جریان کې یې داسې یاداشتونه ولیکل چې که ده دغه د سترګو لیدلي حالات لیکلي نه وای موږ به د تاریخ د یوه تاریک فصل له تفصیلاتو څخه بې خبره پاته وای. پوټینجر وایي چې یارمحمدخان په غوریان کې د خپل ورور د شرموونکي ماتې او تسلیمېدلو څخه وروسته د هرات د ښار دفاع مستقیماً پر خپله غاړه واخیستله. د ښار دروازې یې وتړلې او هیڅوک یې دباندې نه پرېښودل. ښار ته له شاوخوا کلیو څخه د خلکو سېلونه را روان سول. دی وایي په هر کور کې چې هر څومره خلک ځایېدلای سوای په هغه اندازه خلک ورننوتل. دی وایي په ځینو کورونو کې خو حتی پنځه شپږ کورنۍ اوسېدلې. پوټینجر وایي خلکو خرابې او کنډوالې کرایه کړې خو بیا هم لا ښارته په ډلو ډلو خلک را روان ول

او په کورونو او ځايونو پسي ګرځېدل. په ښار کي يو ډول وېروونکی حالت وو او هيچا ځان په امن کي نه باله. د ټولو هغو د نيولو حکم صادر سو چي وفاداري يې په شک کي وه. پوټينجر وايي په دې سلسله کي ډېر کسان په دې نامه چي ګويا وفاداري يې مشکوکه وه ونيول سول، دوی په بنديخانه کي واچول سول او شتمني يې ضبط سوه. ډېري کورنی تباه سوې، نارينه يې شکنجه او تري تم سول. د شمس الدين خان په نوم يوه افغان مشر، چي له هرات څخه ووت، خپلوان يې ونيول سول. ځيني يې بنديان سول، ځيني يې شکنجه سول او ځيني يې د غلامانو په څېر خرڅ سول. هغه کتاب ص ۲۱۷

د هرات په ښار کي يو عجيب حالت وو. څوک فکر نه کوي چي پر دې ښار به ريښتيا هم داسي حالات راغلي وي. يارمحمدخان د سعيدمحمدخان په نوم يو زوی درلود چي چنداني په سد کي نه وو او د پلار له وفات څخه وروسته څه موده د هرات واکمن هم سو. په دغه وخت کي، چي پلار يې وزير وو، دی د هرات والي وو. سعيدمحمدخان هغه څه کول چي پلار يې کول او حتی تر هغه يې هم ځکه يو څه تېری کاوه چي پلار يې لږ تر لږه هوښيار وو او دی د ظالمی تر څنګ لېونی هم وو.

پوټينجر وايي: يوه ورځ يوه سړي په شپه کي غل ونيوی او له ګاونډيانو څخه يې د مرستي غوښتنه وکړه. ګاونډيانو يې هم غل وليدی او په سبا يې والي ته بوت. غله وويل چي په غلا خبر نه دی بلکي ده په خپله هم غوښتل چي د غله په نيولو کي له خلکو سره مرسته وکړي خو د کور خاوند نارې کړې چي دغه سړی غل دی او زه يې ونيولم. والي د غله خبره ومنله. د کور خاوند يې د ناحقه تهمت ويلو په ګناه، په هغه ورځ خرڅ کړ او شاهدان يې دونه زيات جريمه کړل چي هغوی يې ګدايي کولو ته اړ کړل. هغه کتاب ۲۰۶

د هرات خلکو د محاصرې په جريان کي، د ښار له پنځو دروازو څخه درې دروازې پرانيستي پرې ايښي وې او له ښاره څخه د باندي کليو او سيمو څخه يې هره ورځ د آسونو او څارويو له پاره واښه، د خوراک له پاره غله دانه او د سون له پاره لرګي راوړل. البته دې حالت ډېر دوام ونه کړ او د محاصرې د سختېدلو سره نوره دا ګرانه سوه چي سپاره عسکر دې د تلفاتو ورکولو پرته له ښار څخه ليري ولاړ سي او يا حتی له دروازو څخه بهر ووځي. د بنديانو خرڅول کېدلو همداسي دوام درلود او کله چي محمدشاه ته د ايراني بنديانو د خرڅول کېدلو رپوټونه ورسېدل نو هغه د يو شمېر افغاني

بندیانو نسونه ځیري کړل او پاته یې په راز راز عذابونو ووژل. هغه کتاب ص ۲۲۲

د ښار په دننه کې حالات خراب وه او په بهر کې محاصره په خپل زور روانه وه او پر ښار باندې هره ورځ د توپونو د ګولیو باران وو. د ایران شاه په دغه ترځ کې د وزیر یار محمدخان ورور شیرمحمدخان، چې پر افغانستان باندې د ایران د حملې په سر کې یې د غوریان قلا ایرانیانو ته تسلیم کړې او د هغوی کمپ ته ورغلی وو، له یارمحمدخان سره د خبرو له پاره هرات ته واستاوه. یارمحمدخان له هغه سره له کتلو ډډه وکړه او شیرمحمدخان د هرات عسکرو ته زاری وکړې چې یارمحمدخان ته د هغه پیغام ورسوي چې محمدشاه وایي که هرات تسلیم نه سي نو هغه به شیرمحمدخان قتل کړي، پر هرات به حمله وکړي، یارمحمدخان به لکه سپی داسي وځړوي او د هغه ښځې او ماشومان به بې عزته کړي.

د مورچل عسکرو شیرمحمدخان او ټولو ایرانیانو ته ښکنځل وکړل خو دا پیغام یې وزیر یارمحمدخان ته ورساوه او کله چې یې د شیرمحمدخان نوم ورته واخیست نو د یارمحمدخان اعصاب سخت خراب سول او ورته وې ویل چې شیرمحمدخان ته ووایي: زه به خوشاله سم چې محمدشاه ما د یوه خاین د وژلو له تکلیف څخه خلاص کړي. ته زما ورور نه یې؛ ته د یوې کشمیرۍ زوی یې او په خپلې مور پسي تللی یې. پاته سوم زه په خپله. کله چې محمدشاه دا ښار ونیوی، چې زړه یې غواړي هغه دې وکړي. زه شاه ته درناوی لرم او د هغه رعیت یم. مګر په دغه موضوع کې به د هغه امر ونه منم، ځکه چې افغانان به د تسلیمېدلو په برخه کې د هیچا پر خبره غوږ ونه نیسي. هغه کتاب ص ص ۲۲۴-۲۲۵

د (۱۸۳۸م.) کال د جنورۍ پر اتلسمه یارمحمدخان له پوټینجر څخه وغوښتل چې، د افغانانو په استازیتوب، د ایرانیانو کمپ ته ولاړ سي. یارمحمدخان ورته وویل چې یو ځل باید د شاه کامران سره هم وګوري. پوټینجر په سبا سهار د کامران لیدلو ته روان سو او د هرات ښار یې، چې ده څه موده مخکې د مستیو، خوښیو او سمسورتیا په ورځو کې لیدلی وو، تر سترګو بېخي بل ښار ورغی. دی وایي پر ښار باندې د محاصرې د شپو دردوونکي اغېزې څرګندې وې. تقریباً هیڅ دوکان له تباهی څخه نه وو خلاص سوی. کړکی، چوکیاني، الماری، دروازې او چارچوبونه ټول وړل سوي او خلکو د خونو د تودولو له پاره کار ورڅخه اخیستی وو. په ښار کې د کاروبار درک نه وو. دلته هلته به خلک ولاړ ول او د یارمحمدخان د سړیو له وېرې به یې یو له بله کرار کرار خبرې سره کولې... کله چې د شاه کامران خونې ته ورغلم نو یوازې یو څو تنه غلامان ورته حاضر ول. زما یې

ډېر تود هرکلي وکړ. ډېر ناروغ ښکارېدی او سړی پوهېدی چي هغه تر هر څه د خپلي روغتیا په غم کي دی. ماته یې خپل پیغام په شفاهي توګه ووایه. کامران په دې پیغام کي له شاه څخه ګیلې کړې وې. ځان یې اوس هم د هغه تابع باله خو د هرات د محاصرې او د خلکو د وژلو او له ده څخه د قدرت د سلبولو پړه یې باندي اچوله. هغه د خپل پیغام په پای کي شاه ته وویل چي تا زما خواستونو ته په توپونو جواب راکړ. سخاوتمندانه سلوک غوره کړه. محاصره ماته که. خپل وطن ته ستون سه. ماته توپونه او پوځیان چي زما په کارېږي راکړه. زه به د خپل بري په نتیجه کي هرات تاته وسپارم. هغه افغانان چي زموږ سره یې خیانت کړی دی له خپل کمپ څخه وباسه. که ته پر خپل اوسني عزم ټینګ ودرېږې نو راتلونکي نسلونه به تا یو داسي داړه مار وبولي چي پر کمزورو یې حملې کولې. که ته په سخاوت سلوک ونه کړې نو خدای لوی او زموږ پر طرف دی او زموږ سره اوس هم خپلي توري راسره دي. هغه کتاب ص ص ۲۲۹-۲۳۰

پوټینجر ایله د فبروري پر اتمه، د یارمحمدخان څخه د ایرانیانو کمپ ته د ورتللو، اجازه تر لاسه کړه. پوټینجر د ایرانیانو په کمپ کي د سفیر مکنایل له مرستیال کرنل سټوډارټ سره وکتل. له سټوډارټ سره یو ځای د صدراعظم حاجي میرزا اقاسي خېمې ته ورغی. حاجي آقاسي د افغانانو پر پېشنهادونو باندي غوږ ونه نیوی او وې ویل چي د انګلیسانو په خپله نقشه کي هرات د ایران په خاوره کي شامل بلل سوی دی او د خپلي ادعا د ثبوت له پاره یې د الیکزانډر برنس نقشه راوړه. پوټینجر ده ته وښودله چي په هغه نقشه کي هم هرات او شاوخوا سیمي په افغانستان کي شاملي دي. دا چي هغه د یوه صدراعظم په حیث د خپل هیواد په نقشه نه پوهېدی نو تر اندازې زیات خجالت سو. هغه کرنل سټودارټ ته مخ را واړاوه خو کرنل خپل ځان په ډیپلوماټیکو جوابونو خلاص کړ. پوټینجر له کرنل سره یو ځای د ایران د پاچا محمدشاه خېمې ته ورغی. لکه څرنګه چي انتظار یې ایستل کېدی، دا ماموریت بې نتیجې ختم سو او محمدشاه له خپل عزم څخه ونه ګرځېدی. پوټینجر بیرته هرات ته ستون سو او د محاصره سوي ښار د قلا په ترمیمولو او توپونو د ځای پر ځای کولو په کار کي لګیا سو. هغه کتاب ۲۳۸

څو ورځي وروسته، د روسي جنرال سمسن په هدایت، د ایران د صدراعظم په ضمني منظورۍ، له کمپ څخه یو ایراني صاحب منصب راغی او د هرات مشرانو ته یې په خپل راوړي پیغام کي وویل چي محمدشاه نه غواړي هرات ونیسي. موږ باید خپل اختلافات په خپلو منځونو کي حل کړو او کفارو ته په خپل منځ کي د مداخلې حق ور نه کړو. ده مشرانو ته وویل چي محمدشاه ستاسي په

داخلي چارو غرض نه لري بلکي تاسي باید په هغه ډول عسکر ورکړی چي نادرشاه ته مو ورکول. محمدشاه غواړي پر هند باندي حمله وکړي او تاسي باید په جهاد کي ورسره ملګري سئ او په غنیمتونو کي ورسره شریک سئ. هغه کتاب ص ۲۴۰

طبیعي خبره ده چي د هرات مشرانو به د ایران د پاچا او یا د هغه د صدراعظم پر دې غولوونکي او بې معني پېشنهاد باندي خندلي وي.

د تعجب خبره خو دا ده چي د ایران درباري لیکوال چي د قاجاریانو په باب خپل مفصل دوه ټوکه تاریخ یې د محمدشاه قاجار د زوی ناصرالدین شاه قاجار د پاچهی په وخت کي لیکلی دی، د هرات د محاصرې په څېر مهمي تاریخي پېښي په برخه کي د نهو کالو اشتباه کوي او دا محاصره، چي د (۱۸۳۷م.) کال د نومبر پر دیرویشتمه پیل سوې ده، په (۱۸۲۹م.) کال کي بولي. ناسخ التواریخ جلد اول ص ۷۰۵

همدغه اثر د هرات ښار ته، په تهران کي د انګلیسیانو د سفیر جان مکنایل سفر د محاصرې د پیل په ورځو کي بولي او وایي: چي مکنایل د ایران شاه ته ویلي وه چي هغه ته اجازه ورکړي چي هرات ته ولاړ سي او هلته له مشرانو سره وګوري او یوه حل ته یې را وبولي، مګر کله چي هغه هرات ته ورسېدی نو مشرانو ته یې وویل چي یو څه وخت ځانونه ټینګ کړی د برټانیې مرستي درته را رسېږي. په داسي حال کي چي مکنایل د محاصرې له پیل څخه تقریباً پنځه میاشتي وروسته، د اپریل په میاشت کي هرات ته ولاړ او د مشرانو سره یې وکتل. خو د ایران شاه، چي هرات یې خپله خاوره بلله او د هرات مشران چي د خپلواکۍ له پاره یې جګړه کوله په دریځونو کي دونه سره لیري وه چي د جوړې امکان یې موجود نه وو. په تهران کي د روسیې سفیر کونټ سیمونیچ هم له مکنایل څخه لس ورځي وروسته د ایران کمپ ته ورسېدی او مکنایل پوه سو چي که د حل کومي لاري ته خوشبیني موجوده وه هغه مشکوکه سوه.

د ایرانیانو کمپ ته د کونټ سیمونیچ له رسېدلو سره د ایران د پاچا روحیه قوي سوه او فکر یې کاوه چي ژر به هرات ونیسي. مګر د هرات خلکو د ایران له قواوو سره د پخوا په څېر سخت مقاومت کاوه او د محاصره کوونکو هره حمله یې پر شاتمبوله. له تقریباً دوو هفتو څخه وروسته د شاه او د هغه د صدراعظم روحیات دونه کمزوري سول چي صدراعظم یې یو ځل بیا پر مکنایل باندي بږغ وکړ چي که د دواړو خواوو تر منځ یو ځل بیا منځګړتوب وکړي. صدراعظم وویل چي هغه پخوانی تړون موږ ته منظور دی خو په دې شرط چي د برټانیې حکومت به د هغه د عملي کولو

ذمه وهي او دا به تضمینوي چي کامران به له هغه تړون څخه سرغړونه نه کوي. د برتانيې سفير د ایران د صدراعظم دا شرط ورسره ومانه او هغه ته يې وويل چي يو ځل بيا به د هرات له مشرانو سره وګوري مگر صدراعظم هرات ته د تللو اجازه ورنه کړه او راز راز پلمې يې وکړې. واټسن ص ص ۳۰۶-۳۰۷

د ایران شاه د هرات د محاصرې د پرېښودلو او دوام ورکولو په برخه کي زړه نا زړه وو او هره ورځ يې دريځ تغيير کاوه. که به يې کومه ورځ يو څه برى تر لاسه کړ نو بيا به يې د محاصرې دوام غوره کړ او که به څو ورځي پرله پسې کوم پرمختګ ونه سو بيرته به يې د محاصرې د پرېښودلو خبري رامنځته کړې.

په دې منځ کي يوه ورځ د ایران صدراعظم حاجي ميرزا اقاسي د برتانيې سفير ښاغلي مکنايل ته وويل چي د ایران شاه غواړي د هرات له محاصرې څخه لاس واخلي خو په دې شرط چي د محاصرې په جريان کي د رسېدلي تاوان بدل ورکړل سي او يا لږ تر لږه د ده عسکرو ته، چي څو مياشتي يې لوږي تندي ګاللي دي پيسې تاديه سي. د ایران شاه ادعا کوله چي د هرات د محاصرې په جريان کي له پنځوسو څخه تر شپېتو ميليونو تومنو پوري تاوان ورته رسېدلی دی. مکنايل ته معلومه سوه چي د شاه په دريځ کي د دې وروستي تغيير علت له کندهاره څخه د کهندل خان د استازي را رسېدل وه. کهندل خان د خپل استازي په لاس د ایران شاه ته د مرستي وعده ورکړې وه او ورته ليکلي يې وه چي د کابل له خوا زړه بې غمه کړي او هيڅ اندېښنه دي نه کوي. هغه کتاب ص ص ۳۰۷-۳۰۸

## ويسکونټ پالمرسټن ته د مکنايل ليک

دا ليک د (۱۸۳۸م.) کال د اپرېل پر يوو لسمه د هرات په مقابل کي د ایران له کمپ څخه لېږل سوی او د جون پر اتلسمه د برتانيې خارجه وزير ته رسېدلی دی.

تاسي جلالتمآب ته بايد اطلاع درکړم چي شاه اوس هم د هرات محاصرې ته دوام ورکوي؛ مگر که د هرات د ښار د مدافعينو زړه ورتوب او د ایران د پوځيانو بې کمالی ته وګورو نو داسي ښکاري چي دا ښار به ژر فتح نه سي. او فکر نه کيږي چي د ایران شاه دي پرته له دې چي د دې ښار

بشپړې محاصرې ته همداسي دوام ورکړي په بله توګه دا ښار ونیسي. مګر که د ایران پاچا خپل پوځ، په دغه اوسنیو شرایطو کي تر نامعلومي مودې پوري وساتي نو بیا به دا ښار، چي په بشپړه توګه محاصره دی، بالاخره سقوط کوي. د دې سیمي هر ډول مواد ختم سوي دي او د ایران پوځیان له سختي لوږي څخه کړېږي. اکثره پوځیان د دې حاصلخیزي خاوري په وښو او ریښو ګوزاره کوي. مګر دوی بیا هم په مورچلونو کي خپل خدمت ته دوام ورکوي او وظیفې ته وقف، پر خدمت باندي ټینګار او د کړاوونو زغم یې داسي حد ته رسولی دی چي زه فکر نه کوم د اسیا په پوځي تاریخ کي به یې چا مثال لیدلی وي. بې تنخوا، بې لباسه، بې راشنه او بېله هر څه دا پوځیان شپه او ورځ په داسي مورچلونو کي خدمت ته دوام ورکوي چي په ځینو کي خو تر زنګانه پوري ختې او اوبه ولاړې دي. له دوی څخه هره ورځ له لسوڅخه تر شلو تنو پورې وژل کېږي. مګر د دوی روحیات او د زغم طاقت هم کرار کرار ختمېږي او که شاه خپلو عسکرو ته مواد ونه رسولای سي نو مجبور دی چي دا محاصره پرېږدي. د دې شر د رفع کولو له پاره به ډېري خواری وګالل سي او د دغو خواریو له بریالیتوب سره د هرات سرنوشت هم تړلی دی.

تاسي جلالتماب ته باید رپوټ درکړم چي ما څو ځله د یوه حل تر لاسه کولو کوښښ کړی دی مګر بریالی سوی نه یم. په دې تېرو څو ورځو کي آصف الدوله له وزیر یارمحمدخان سره کتلي دي او آصف الدوله د دواړو خواوو تر منځ د اختلاف د حلولو له پاره داسي پیشنهادونه ورسره راوړي وه چي هغه ټول د ایران په ګټه وه. د ایران د پاچا داسي غوښتني وې چي د هرات مشرانو ته د منلو نه وې. او شاه د هرات د مشرانو غوښتني، چي په ماهیت کي هماغه غوښتني دي، چي څه موده مخکي فتح محمدخان په تهران کي وړاندي کړي وې نه سي منلای.

ضمناً کپتان ویتکیویچ اوس هم په کابل کي دی او ماته د کپتان برنس له لیکونو څخه څرګنده سوې ده چي د ده د خبرو بریالیتوب تر ډېره ځایه پوري په هرات کي د ایران په ناکامي پوري اړه لري. په کندهار کي زموږ دریځ حتی نور هم لړزانه دی او زه تاسي جلالتمآب ته د هغه تړون ترجمه درلېږم چي له ایران سره یې، په تهران کي د روسیې د سفیر کونټ سیمونیچ په ضمانت لاسلیک کړی دی، او هدف یې د کندهار د واکمن تر مشرتابه لاندي د کندهار او هرات یو ځای کېدل دي، چي په نامه به ایران ته تابع وي، مګر په عمل کي به د روسیې تر حفاظت لاندي وي. زه تاسي جلالتمأب ته په دې برخه کي نور معلومات نه لرم چي دغه تړون تر کومه ځایه ورسېدی او یا به شاه د دغو سیمو په باره کي څه راز دریځ غوره کړی وي. مګر ویل کېږي چي دغه تړون کهندل

خان لاسلیک کړی دی. او زه په دې کې چنداني شک نه لرم چې د هرات له سقوط څخه مخکې په کهندل خان له شاه سره همکاری کولو ته وهڅول سي. او زه یقین لرم چې د هرات د سقوط په صورت کې به د کندهار سردار د برتانیې پر ځای له روسیې او ایران سره یو ځای کېدلو ته ترجیح ورکړي. زه څکه فکر کوم چې د هرات سقوط به په افغانستان کې زموږ موقف تباه کړي او ټول هیواد به د روسیې او ایران تر واک لاندې کړي. زه ضرورت نه لرم چې تاسې جلالتمآب ته خپل هغه نظر تکرار کړم چې که داسې پېښه سي نو بیا هیڅوک په هند کې زموږ کراري او ثبات نه سي تضمنیولای. او زه دا نه سم منلای چې هیڅ ډول تړون دې موږ د داسې نقشو د تعقیبولو منلو ته مجبور کړي چې په نتیجه کې یې په ختیځ کې د برتانیې د امپراطوری ثبات ته تاوان رسېږي. دا ښځې څرګندده چې د روسیې او ایران تر منځ همکاري د برتانیې ګټو ته تاوان رسوي. او تر کومه ځایه چې زه اټکل کولای سم نو د دغه شر صدمه ډېره لویه ده او هیڅ هغه هیواد چې د برتانیې سره متحد وي دا حق نه لري چې برتانیې ته دغه تاوان ورسوي. موږ چې له ایران سره اتحاد کړی دی نو اصلي هدف مو دا دی چې د هند امنیت ته یې ګټه ورسېږي. او دا اتحاد مو د دغه له پاره ساتلی دی چې د هر هغه قوت په مخ کې خنډ سي چې موږ د نړۍ په دغه برخه کې تهدیدولای سي. مګر د ایران او د هغه قدرت تر منځ اتحاد په هند کې زموږ ثبات او امنیت ته خطر پېښوي او که دوی زموږ د هغو پلانونو چې په هند کې مو د خپل ثبات له پاره طرح کړي دي، پر ضد عمل کوي نو زه اعتراف کوم چې زه په دې عقیده یم چې نور باید هغه تړونونو او اتحاد ته هم اهمیت ورنه کړه سي، چې پر روح او ماهیت باندې یې دغه راز څرګند تېری سوی وي. زه خپل نظر بیا تکراروم چې که زموږ هدف تر ممکنه حده پوري، له ایران سره د اتحاد او دوستي ساتل وه نو د دې اتحاد د ساتلو له پاره تر ټولو غوره لا دا ده چې هغه هیواد د هرات له اشغالولو څخه را وګرځول سي. کوریس پانډینس ص ص ۱۱۷-۱۱۹

## د هغه تړون متن چې د کندهار د واکمن سردار کهندل خان او د ایران د پاچا محمدشاه تر منځ لاسلیک سوی او د روسیې سفیر کونټ سیمونیچ یې تضمین کړی دی:

زه د ایران په دربار کې د روسیې د مختار وزیر په حیث د اعلیحضرت محمدشاه او د سردار کهندل خان تر منځ د تړون د موادو د عملي کېدلو تضمین کوم.

۱: هرات به د محمدشاه له خوا د کندهار واکمنانو ته د هغوی د هغو خدمتونو په بدل کې د یوه انعام په توګه ورکول کیږي چې پر تخت باندې د هغه د کښېنستلو راهیسي یې ورته کړي دي.

۲: د کندهار د سردارانو تر لاس لاندي ځمکي او قبایل به د دوی په کنټرول کې وي او هغوی ته به هیڅ ډول تاوان نه رسول کیږي او نه به یې مځکي ورڅخه غصبیږي.

۳: د ایران حکومت به په هیڅ توګه د سردارانو اتباع که کوچني قبایل دي، که لوی، له خپلو قبایلو سره نه ګډوي او نه به هغوی داسي خدماتو ته رابولي چې د دوی له خپلو چارو سره اړه ونه لري او د ایران حکومت به په افغانانو پوري تړولي مربوطي چاري د کندهار واکمنانو ته سپاري.

۴: شهزاده کامران او د هغه وزیر یارمحمدخان ته به د ایران په هیڅ ډول سلامشورو کې برخه نه ورکوله کیږي.

۵: که شجاع الملک، انګلیسانو او یا د کابل امیر پر کندهار باندي تېری کاوه نو د ایران پاچا به له سردارانو سره مرسته کوي.

۶: که چیري د کهندل خان زامن یا وروڼه له مرستندویو پوځیانو سره د شاه کمپ ته راځي نو دوی، د دوی شتمنی او د دوی سره ملګرو کسانو ته به هیڅ ډول تاوان نه رسول کیږي او هیڅ یو به د یرغمل په توګه نه ساتل کیږي، د کهندل خان له یوه زوی څخه پرته چې هغه به هر وخت د پاچا په خدمت کې حاضر وي.

۷: د کندهار سرداران به د هرات د عسکري مرکز له پاره دوولس زره عسکر او دوولس توپونه برابروي او تنخوا او راشن به یې هم دوی ورکوي او هر وخت به د شاه خدمت کولو ته حاضر وي.

۸: کله چې دغه تړون کندهار ته ورسیږي او هلته لاسلیک سي نو محمدعمرخان به سمدستي د شاه حضور ته استول کیږي.

۹: وروسته له هغه چې دغه سردار د شاه حضور ته را ورسیږي نو د ایران حکومت به هغه ته د پوځیانو او توپونو چې د ایران حکومت به یې سردارانو ته ورکوي، مناسبه اندازه خرڅ مقرروي. سردار مهردل خان به د زرو عسکرو د شاه کمپ ته لیږل کیږي. کله چې دغه سرداران را ورسېدل او د شاه او سردارانو تر منځ متقابل اعتماد ټینګ سو نو د ایران حکومت به له سردارانو څخه له پوځي خدمته پرته بل هیڅ شی نه غواړي.

که محمدشاه له دغو مادو څخه د کومي یوې په عملي کولو کې پاته راغی او یا یې له کومي

مادې څخه سرغړونه وکړه نو زه د روسيې د مختار وزير په حيث، به د هغه د مجبورولو له پاره له ټولو وسايلو څخه کار اخلم تر څو چې د ترون ټول شرايط عملي سي. کوريس پانډينس ص ص ۱۱۷-۱۲۰

د ايران پاچا محمدشاه د اپريل پر ديرويشتمه په ايران کي د برتانيې د سفير نايب ميجرتاډ ته وويل چي د هرات محاصرې ته دوام ورکوي. ده وويل چي يا به د هرات ټول خلک ماته تسليمېږي او ځانونه به زما رعيت بولي او يا به زه هرات د وسلو په زور نيسم او دوی به خپل ځان ته تابع او تسليموم. د برتانيې سفير مجبور سو چي د شاه دغه پيغام د هرات مشرانو ته ورسوي او يارمحمدخان د شاه په جواب کي ميجر تاډ ته وليکل چي که ايرانيان ستا خبرو ته غوږ نه نيسي نو موږ ټول د هرات څخه د دفاع په لاره کي قرباني ته تيار يو او فيصله به خدای ته پرېږدو. اوس چي موږ ته تلفات او تاوانونه رسېدلي دي او له خپلو کليو او کښت او کروندې څخه پاته سوي يو او دونه تاوانونه مو ليدلي دي چي هيڅ وخت مو نه وه ليدلي؛ اوس به په ښشي کي ری وهو؟ کې ص ص ۲۴۹-۲۵۰

محاصرې او د توپونو ډزو زور واخيست. په دغه وخت کي د روسيې سفير کونټ سيمونيچ د ايران په عسکرو کي د پيسو په وېشلو بناء وکړه او د عسکرو مړه روحيه يې بيرته تازه کړه. د برتانيې سفير د ايران وزيرانو ته په ټينګو الفاظو يو مکتوب واستاوه او نيژدې وو چي د ايران پاچا د هرات له مشرانو سره يوې روغې جوړې ته حاضر سي چي په دغه وخت کي د ايران پاچا ته د کندهار د واکمن کهندل خان ليک را ورسېدی او له هغه سره يې د هرات په محاصره کي د هر ډول مرستو وعده کړې وه. د کهندل خان دغه وروستي ليک د ايران پاچا ته زړه ورکړ او محاصرې ته يې زور ورکړ. هغه کتاب ص ص ۲۵۰-۲۵۱

ضمناً د مياشتو په تېرېدو سره، په ښار کي قحطي خپلي وروستۍ درجې ته ورسېده. عجيبه دا ده چي د سختيو په سر کي لا خلکو د يو څه وخت له پاره ښه زغم درلود او چا هيڅ نه ويل. خلکو د خپلو آسونو غوښې وخوړلې او چي هر څه لاس ته ورتلل هغه يې خوړل. ښار د چټليو له لاسه د ګوزارې نه وو او په لارو کوڅو کي داسي بوی وو چي سړي يې طاقت نه سو راوړلای. د حيوانانو او انسانانو مړي په لارو کوڅو کي وراسته سوي ول او هر ګړی د وبا د پيل کېدلو وېره وه. نور نو په ښار کي هر چا ويل چي د ښار دروازې بايد پرانستلي سي او دوی ته اجازه ورکړه سي چي ووځي

او ځان ته د خوړلو څه پیدا کړي. تبه او سکاروی مخ په زیاتېدلو سول او هر چا ویل چي تر دباندي دښمن دلته په ښار کي هغه دښمن چي په سترګو نه معلومېږي خطرناک دی. خلکو وزیر ته پېشنهاد وکړ چي دوی ته له ښاره څخه د وتلو اجازه ورکړي. هغه دا خبره د ښار د مشرانو له شورا سره طرح کړه. د ټولو جواب منفي وو ځکه چي ویل یې که دا ښځي او ماشومان دباندي ووځي له ایراني عسکرو څخه یې څوک د ساتل کېدلو ذمه وهي. خلک بیرته نا امیده ستانه سول. خو سرجان کې د پوټینجر له قوله، چي هر څه یې د سر په سترګو لیدلي دي لیکي:

"څو ورځي وروسته د شپږو یا اوو سوو کسانو یوه ډله چي زاړه، ښځي او ماشومان ول له ښار څخه ووتل. دښمن د مرمیو یو سخت باړ باندي وچلاوه او زیات شمېر یې قتل کړل او کله چي پوه سول چي هغه بې دفاع خلک دي نو په لرګیو او ډبرو یې بیرته د ښار خوا ته په تللو مجبور کړل. مګر نایب دستو له قلا څخه پر ایرانیانو باندي ډزي پیل کړې او هغوی مجبور سول چي دغو بې دفاع کسانو ته لاره ورکړي." کې ۲۶۰

مګر د قاجاریانو درباري مؤرخ د دې پېښي او د ایرانیانو له خوا د دغو پناه غوښتونکو د منلو په باب دونه مبالغه کړې ده چي هغي وضع ته په کتلو سره په هیڅ توګه د منلو وړ نه ده. مؤرخ وایي کله چي په ښار کي قحطي پیل سوه او خلک بېچاره سوه نو په ښار کي سره راټول سول او یارمحمدخان ته ورغلل او ورته وې ویل چي یا موږ ته ډوډۍ را کړه او یا اجازه راکړه چي دباندي ووځو. ځکه چي د ایران پوځ موږ ته تکلیف نه راکوي او که مو بندیان هم کړي ډوډۍ راکوي. یارمحمدخان هم مجبور سو او هغوی ته یې له ښاره د وتلو اجازه ورکړه. څلور ورځي له سهاره تر ماښامه دوولس زره نارینه، ښځي، نجوني او هلکان له ښاره ووتل او د ایرانیانو د کمپ خوا ته ولاړل.

شهنشاه غازي پر هغوی باندي مهرباني وکړه او هغوی ته یې څو شپې او ورځي له خپلي اشپزخانې څخه ډوډۍ حواله کړه. وروسته یې ټولو ته لباسونه ورکړل. حاجي میرزا اقاسي او د پوځ وزیر میرزا آقاخان هغوی ته پرېمانه سپین او سره زر ورکړل او د شهنشاه له فرمان سره سم یې هغوی ټول خراسان ته واستول او ټولو ته یې کورونه ورکړل. ناسخ ص ۷۰۷

موږ مخکي د جان مکنایل د سترګو د لیدلي حال رپوټ ولووست چي شهنشاه خپلو عسکرو ته په میاشتو ډوډۍ نه وه ورکړې او هغوی له لوږي ریښې او واښه خوړل. د اغوستلو جامې یې نه درلودلې، تنخواوي نه ور رسېدلې او په مورچو کي یې تر زنګانه اوبه ولاړې وې. شهنشاه به ښله

شکه مهربان سړی وو مګر که یې د دونه سخاوت وس لرلای نو د هغو عسکرو ښه ساتنه به یې کړې وای چې د ده له پاره یې ځانونه وژل.

جان مکنایل، حتی د هرات د محاصرې په پیل کې، رپوټ ورکړ چې د ایران په کمپ کې د خوراکي او نورو موادو قېمتونه د مشهد او نیشاپور، چې له کمپ څخه ایله درې منزله فاصله لري، پنځه چنده سوي دي. په پوځ کې بې نظمي ده او له هرې خوا د موادو له کمبود سره مخامخ دی. کوریس پاندینس ص ۷۸

اېراني لیکوال د دې پرځای چې ووایي پوځ ته اکمالات نه رسېدل او یا په پوځ کې د باروتو او مرمیو کمبود وو، یوه عجیبه مبالغه کوي او وایي چې ایرانیانو له سپینو ډبرو څخه د توپونو او هاوانونو له پاره ګولۍ جوړولې. په درباروونو کې کله کله داسې مؤرخین هم پیښېږي.

"او په دغه وخت کې شهزاده سلطان محمدمیرزا سیف الدوله د هرات په ګورستان کې یوه سخته سپینه ډبره ولیده او له هغې څخه یې د توپ ګولۍ جوړه کړه. کله چې یې هغه ګولۍ وآزمېیل او کار یې ورکړ نو سلو تنو حجارانو ته یې وظیفه ورکړه چې هره ورځ د توپونو او هاوانونو له پاره له ډبرو څخه ګولۍ جوړې کړي" !!!ناسخ التواریخ ص ۷۰۸

بدبختي او توري ورځې په دواړو خواوو کې رواني وې. لکه څرنګه چې جان مکنایل په مورچو کې د ایراني عسکرو د ژوند شرایطو ته حیران وو؛ دغسې د هراتیانو د ژوند یوه ورځ د زغملو نه وه. د هرات پر خلکو هم له اسمانه ګولۍ اورېدلې او هره ورځ یې واړه او زاړه د ړندو مرمیو ښکار وه، په ښار کې د خوړلو له پاره څه نه پیدا کېدل او هرات په خپل ټول تاریخ کې د موادو د داسې کمبود او په دغه اندازه لوږې سره مخامخ سوی نه وو. لوږې، مرمیو او ناروغیو هر یوه په خپل وار له ژوندیو څخه باج اخیست او کله چې سړی د پوټینجر د سترګو لیدلی حال او د ده یاداشتونه لولې نو سړی باور نه سي کولای چې انسان پر انسان او په تېره بیا پر خپلو وطنوالو باندې دونه ظلم کولای سي. پر مرمیو، لوږو او ناروغیو برسېره د هرات پر اوسېدونکو د یارمحمدخان او د هغه د ظالمو همکارانو آفت نازل سوی وو. پوټینجر په خپلو ورځنیو یاداشتونو کې، چې اصل یې په خپله "سرجان کې" ته په لاس ورغلی دی په یوه ځای کې لیکي: "د محاصرې له اوږدېدلو سره د خلکو کړاو هم اوږدېدی. د خلکو بدبختي تر حساب او اټکل تېره وه. ښتمن خلک له لوږې مړه کېدل او شتمن په شکنجو کې کړېدل. عسکرو د پیسو چیغې وهلې؛ او پر هر چا باندې به چې د پیسو

درلودلو شک راغی هغه به د یارمحمدخان د سړیو شکنجو ته برابر سو. نو یا به سړی په شکنجو کي مړ کېدی او یا به یې خپلي پټي کړي پیسې ښودلې. کله چي به یې له سړي څخه ټولي پیسې واخیستلې بیا به یې د نورو غوښتنه ورڅخه کوله او چي هغه به په شکنجو کي هر څه چیغي وهلې چي نوري نه لرم چا یې ږغ نه اورېدی؛ تر څو چي بالاخره به یې په شکنجو کي ساه ورکړه. او چي څوک به په شکنجو کي مړ سو نو مړی به یې په یوه زړه شړی کي د هغه د کور په دراوزه کي وغورځول سو او دا د هري ورځي کیسه وه. حتی د لویو کورونو ښځو ته شکنجې ورکول کېدلې. په ښار کي داسي وحشت روان وو چي پوټینجر یې د لیدلو او اورېدلو توان نه درلود. ده بالاخره داسي احساس کاوه چي د دې ټولو بدبختیو علت دی په خپله دی. ډېرو کسانو خو به ده ته په خلاصه خوله بد رد ویل. د هري طبقې خلکو پوټینجر ته زاری کولې او د مرستي غوښتنه یې ورڅخه کوله. ځیني به یې د ظالمانو له تېري څخه وژغورل. مګر د ځینو ژغورل به یې تر وس تېر وه او مجبور وو چي خپل نصیب ته یې خوشي کړي..." کې لومړی جلد ص ص ۲۶۷-۲۶۸

جان مکنایل نور د ایران د شاه په کمپ کي خپل حضور بې ګټې وباله او د ترکیې سرحد ته روان سو. د ده له روانېدلو څخه لږ وروسته د ایران د شاه پوځونو پر هرات باندي د شپږو ورځو حملو څخه وروسته د جون پر دیرویشتمه، یوه لویه او قاطع حمله پیل کړه. د هرات مدافعینو دا حمله هم پر شا وتمبوله او د ایران پوځیانو ته یې ډېر درانه تلفات ورسول. جنګ له سهاره تر ماښامه روان وو او ویل کیږي چي د ایران د پوځ تقریباً اتلس سوه تنه قتل سول. په دې ورځ د ایران د پوځ ډېر عالي رتبه صاحب منصبان او جنرالان ووژل سول خو د شاه او د ایران د ټول پوځ له پاره تر ټولو مهم پولینډی تورن جنرال پیروفسکي وو، چي له ډېره وخته یې د ایران د شاه د پوځونو روزنه پر غاړه درلوده. د ایران پوځیان په ډېر زړه ورتوب وجنګېدل او درې ځله یې د ایران بیرغ د هرات د قلا پر نړېدلو برجونو باندي ورپاوه؛ مګر افغانانو به بیرته پر شا کړل. افغانانو د ایرانیانو پر وسله والو عسکرو باندي توره په لاس حملې کولې او د قلا له دېوال سره خندق یې د هغوی په مړو ډک کړ. ویل کېږي چي د ایران د وژل سویو عسکرو له څلورو برخو څخه درې برخي په تورو قتل سوي ول. دا د هرات د محاصرې په ورځو کي، د ایران تر ټولو سخته حمله وه او پلان یې کونټ سیمونیچ جوړ کړی وو. واټسن ص ۳۱۳

د (۱۸۳۸م.) کال د جولای پر اووه ویشتمه خارجه وزیر ویسکونټ پالمرسټون په ایران کي د برټانیې سفیر جان مکنایل ته ولیکل چي زه باید تاته هدایت درکړم چي د ایران پاچا ته ووایې چي

لکه څرنګه چي د ایران او ستري برتانیې تر منځ د تړون مطلب دا دی چي ایران باید په هند کي د برتانیې تر لاس لاندي سیمو له پاره د یوه سپر حیثیت ولري نو ایران باید له برتانیې سره د هند په ساتلو کي همکاري وکړي. مګر اوس داسي ښکاري چي د ایران پاچا د هند او د هغه د هیواد تر منځ د دغه سپر ویرانولو ته ملا تړلې ده او په دغو عملیاتو کي یې په څرګنده توګه له یوه بل اروپایي قدرت سره چي که د برتانیې ښکاره دښمن نه دی نو دوست یې هم نه دی، لاس یو کړی دی. پالمرسټون ولیکل چي د دې شرایطو په نظر کي درلودلو سره نو برتانیه ځان ته حق ورکوي چي په هره ممکنه وسیله د خپلو ګټو ساتنه وکړي. کوریس پانډینس ص ۱۲۵

په دغو شرایطو کي چي جنګ یوه ورځ هم کرار نه سو او د هرات د خلکو کړاو ورځ په ورځ زیاتېدی د هرات د ښار له دېوالونو څخه لیري د رواني ستري لوبي شرایطو تغییر کاوه. ګورنرجنرال لارډ آکلینډ، جنګي کښتیو ته هدایت کړی وو چي د فارس د خلیج خوا ته حرکت وکړي او هلته انتظار وباسي چي جان مکنایل د څه ډول اقدام کول لازم بولي. د جولای پر نولسمه د برتانیې کښتی د فارس خلیج ته ورسېدلې او عسکر یې د خارک په ټاپو کي پیاده سول.

جان مکنایل د ایران او ترکیې سرحد ته روان وو چي په لاره کي د فارس خلیج ته د برتانیې د جنګي کښتیو د روانېدلو او د خارک د ټاپو د نیول کېدلو پیغام ورته ورسېدی او په دغه وخت کي یې د خارجه وزارت هدایت تر لاسه کړ چي د ایران پاچا محمدشاه ته ووایي چي د هرات محاصره پرېږدي او بیرته خپل وطن ته حرکت وکړي.

جان مکنایل د خارجه وزارت له هدایت سره سم ډګروال سټوډارټ د محمدشاه کمپ ته واستاوه او دا پیغام یې ورکړ. د پیغام ژبه ډېره څرګنده او ډېره قاطع وه. په پیغام کي شاه ته ویل سوي وه چي د هرات او د افغانستان د هري برخي اشغال د برتانیې په مقابل کي خصمانه عمل ګڼل کیږي. که شاه پر خپل عمل باندي ټینګار کوي نو دا به ایران ته سمدستي تاوان پېښ کړي. شاه ته ویل سوي وه چي د برتانیې جنګي بېړۍ د فارس خلیج ته رسېدلي دي او د خارک ټاپو اشغال سوی دی. که شاه غواړي چي برتانیه خپل عملیات ودروي او د ده عزت خوندي سي نو باید چي د هرات محاصره سمدستي پرېږدي.

ډګروال سټوډارټ د آګست پر یوولسمه د ایران کمپ ته ورسېدی او په سبا د شاه خېمې ته ورغی. شاه د پیغام له اورېدلو څخه وروسته پوښتنه وکړه چي که زه د هرات محاصره پرېنږدم نو د

دې معنی به له برتانيې سره د جنګ اعلان وي؟

ستيوډارټ په جواب کي ورته وويل چي بلې معنی يې جنګ دی. نور نو خبره ټوله ستاسي په جواب پوري تړلې ده. تاسي اعليحضرت دي خدای په امان کي لري. کې لومړی جلد ص ص ۲۷۱-۲۷۴

لوستونکو ته به په ياد وي چي برتانيې له ايران سره په (۱۸۰۰م.) کال کي د افغانستان پر ضد تړون وکړ د (۱۸۰۹م.) کال د مارچ په مياشت کي يې له ايران سره بل تړون وکړ او بيا يې هم افغانستان د يوه دښمن هيواد په څېر ذکر کړی وو. د همدغه کال د جون په مياشت کي يې له شاه شجاع سره تړون لاسليک کړ او ايران يې د يوه دښمن هيواد په څېر ذکر کړی وو. په (۱۸۱۴م.) کال کي يې له ايران سره تړون لاسليک کړ او په هغه کي يې بيرته افغانستان ته د يوه دښمن هيواد په سترګه کتلي وه. په زړه پوري خبره دا ده چي برتانيې په خپل هر تړون کي دا خبره حتماً کړې ده چي دا تړون به نسل پر نسل او تر ابده پوري ټينګ وي. د ابد لغت د لويو قدرتونو په قاموس کي خپل بېل تعبير لري او هغه د دوی په طبيعت پوري اړه لري؛ ابد په قاموس کي حد نه لري خو د لويو قدرتونو له پاره د ابد حد فقط د هغوی خپله حوصله او خپله غوښتنه ده؛ حتی د يوه کال له مارچ څخه تر جون پوري هم د ابد کلمه تغيير کولای سي. او بالاخره هغه ايران ته چي ابدي دوستي يې ورسره اعلان کړې ده د جنګ اعلان ورکوي. د ايران سره د جنګ اعلان خو به د افغانستان د خلکو په تېره بيا د هرات د مظلومو اولسونو په ګټه وو خو د لويو قدرتونو دوستي ښه ورڅخه څرګندېږي.

موږ به بيرته د هرات د خلکو غم لړلي داستان ته وګرځو. په داسي حال کي چي د ايران پاچا د برتانيې له اخطار سره سم د محاصرې د ماتولو په کار لګيا وو يارمحمدخان بيا هم د پيسو د ټولولو او د هرات د خلکو او اشرافو د لوټلو پلان طرح کړ.

پوټينجر وايي چي يارمحمد يوه ورځ ور وغوښتلم او ماته يې وويل چي دی د عسکرو د تنخوا ورکولو له پاره پيسې نه لري او مجبور دی چي دا پيسې له هغو کسانو څخه چي په کور کي يې خزانې جوړې کړې دي واخلي. ده وويل چي د هرات لويان او مشران ډېر کنجوسان دي. ده وويل چي حاجي فيروز خصي غلام کولای سي چي دوه لکه روپۍ د جنګ د لګښتونو له پاره ورکړي او شاه کامران خو لس لکه روپۍ په ډېره آساني تاديه کولای سي مګر يو هم ځان نه ښوروي. يارمحمدخان وويل چي دا ټول په يوه ډول کنجوسان او خسيسان دي. ټول پيسې لري مګر يو هم

تر پنځو روپيو نه تيرېږي. او چي ښځي يې د دوی په مخ کي ورته بې عزته کړې هلته به نو دوی ايله پر خپل حرص او کنجوسی باندي پښېماني وکړي. يارمحمد خان وويل زه نه د عسکرو تنخوا ورکولای سم نه د هغوی د ډوډۍ پيسې لرم. په دې صورت کي څرنګه جنګ ته دوام ورکړم؟ له پوټينجر سره له دغو خبرو څخه يوه ورځ وروسته منشي باشي په شکنجو کي ووژل سو.

يوه ورځ وروسته يارمحمدخان شاه کامران ته وويل چي د عسکرو تنخواوي نه سي ورکولای او د جنګ لګښتونه نه سي پوره کولای نو دا د هغه خوښه ده چي پيسې ورکوي او که ټاکلي سوي کمېټې ته د هدايت سره سم کار کولو ته اجازه ورکوي. هغه کتاب ص ص ۲۷۶-۲۷۷

کله چي د برټانيې استازي سټوډارټ د ايران شاه ته د برټانيې پيغام ورکړ هغه ورته وويل چي ډېر ژر به جواب ورکړي. د ايران د شاه او د روسيې د سفير کونټ سيمونيچ تر منځ په خبرو څوک خبر نه سول خو شاه دوې ورځي وروسته سټوډارټ ته خبر ورکړ چي محاصره به ليري کړي او ورته وې ويل چي موږ له برټانيې سره جنګ نه کوو. دا يې لا هم ورسره زياته کړه چي که داسي خبر وای چي موږ په دې حرکت سره د برټانيې دوستي له لاسه ورکوو هيڅ وخت به دلته راغلي نه وای. د ايران پاچا د (۱۸۳۸م.) کال د سپټمبر پر نهمه د هرات محاصره ماته کړه. هوپکيرک ص ص ۱۸۴-۱۸۵

سټوډارټ وايي کله چي د ايران شاه دا وروستی خبره وکړه نو ما ورته وويل چي شکر دی خدايه چي تاسي اعليحضرت په دې توګه د ايران ګټې په نظر کي ونيولې.

د ايران شاه وويل چي کامران بايد په اينده کي پر خراسان باندي حملې ونه کړي او د هرات مقامات بايد د ايرانيانو له نيولو او د غلامانو په بازارونو کي له خرڅولو څخه لاس واخلي. سټوډارټ د دواړو خبرو ضمانت وکړ او د ايران شاه ته يې وويل چي هغه به په ډېره خوشالي د ايران او هرات تر منځ په خبرو او منځګړتوب کي برخه واخلي. کوريس پانډينس ص ۲۰۳

سره له هغه چي ويتکيويچ د کندهار سردارانو او امير دوست محمدخان ته د روسيې د امپراطور پيغامونه راوړي او له امير دوست محمدخان سره يې له رنجيټ سينګهـ څخه د پېښور د اخيستلو ژمنه کړې وه. د روسيې خارجه وزير حتی د هغه پر پېژندلو باندي منکر سو او سره له هغه چي د روسيې حکومت د هرات په نهه مياشتنۍ اوږده محاصره کي په ټولو انکشافاتو خبروو مګر کله چي د برټانيې خارجه وزارت د روسيې له خارجه وزير نيزلروډ څخه ګيله وکړه هغه پښېمانه سو او وې ويل چي که چيري کونټ سيمونيچ د ايران پاچا پر هرات باندي حملې ته تشويق کړی وي نو زموږ له هغه هدايت څخه يې تېری کړی دی چي ورته ويلي مو وه چي د ايران پاچا پر هرات باندي له حملې څخه منع کړي. هغه کتاب ص ۲۵۰.

## د هغي اعلاميې متن چي د گورنرجنرال دفتر د هرات د محاصرې له ماتېدلو څخه وروسته صادره کړې ده:

د هند گورنر جنرال خوښ دی چي د ډگروال سټوډارټ د مکتوب متن د عمومي معلوماتو له پاره خپروي. سټوډارټ د (۱۸۳۸م.) کال د سپټمبر پر لسمه د هند د حکومت د سکرتر په عنوان داسي ليکلي دي:

زه بايد د برتانيې د حکومت په هدايت د گورنرجنرال دفتر ته وليکم چي د ايران پاچا اعليحضرت محمدشاه د هرات محاصره پرېښودله او سنگ بست ته چي د هرات څخه دوولس ميله فاصله لري تللی دی. اعليحضرت به بيله ځنډه تربت شيخ جام او مشهد ته ولاړ سي او بيا به تهران ته ځي.

اعليحضرت دا کار د برتانيې د حکومت له هغي غوښتني سره سم وکړ چي ما د اگسټ پر دوولسمه ور وسپاره او اعليحضرت هم هغه د اگست پر څوارلسمه ومانه.

د هرات اعليحضرت کامران، د هغه وزير يارمحمد خان او د هرات ټول اولس د برتانيې په دوستي اعتبار لري او ښاغلی پوټينجر او زه د هغوی په هغه خوښي کي ځانونه شريک بولو چي زه يې د رپوټ درکولو افتخار لرم.

د خوشالۍ په دې شېبه کي يې لازمه بولم چي د هرات د محاصرې د ماتېدلو مبارکي د برتانوي هند حکومت او د هغه متحدينو ته ووايم. د ايران پاچا به په خپل ختيځ کي د سيمو ساتنه کوي او پر هند باندي به د هر هيواد د تېري په مقابل کي دغه سيمه تقويه کوي.

د گورنرجنرال دفتر اعلان کوي چي ليفټينيټ الدريد پوټينجر به په کابل کي د شاه شجاع الملک په دربار کي د استازي او وزير تر هدايت لاندي په هرات کي د استازي په حيث مقرروي. دغه ټاکنه د تېر سپټمبر د مياشتي له نهمي څخه نافذه ده. دا هغه نېټه ده چي د ايران پاچا د هرات محاصره ماته کړې ده.

گورنر جنرال خوښ دی چي په دې شېبه کي پوټينجر ته د هغه د خدماتو له کبله ستاينليک ورکوي، چي په هرات کي د اوږدې محاصرې په وخت کي هلته حاضر وو او په هغه وخت کي يې خپل لياقت ښودلی او ټول خطرونه يې پر ځان منلي دي.

د نوامبر اتمه. د گورنرجنرال په امر ويليم مکناټن.

د هرات محاصره ختمه سوه. دا د هرات د اولسونو له پاره یو لوی تاریخي افتخار وو؛ له بده مرغه چي هغوی د جشن او خوښیو له پاره فرصت نه درلود. د هغوی کړاو د پخوا په څېر روان وو. د هرات حکومت د ورو پړانګانو حکومت وو چي نه د چا سر، نه ناموس او نه مال پکښي خوندي وو. موږ به دې غم لړلي داستان ته بیرته را وګرځو خو اوس به یو ځل وګورو چي د هرات د ښار د قلا له دروازو څخه په لیري فاصلو کي څه روان وه.

د هرات د ښار د محاصرې له ختمېدلو سره د افغانستان په لوېدیځ لوري کي استقلال ته یو متوجه سوی خطر لیري سو. خو دا هغه د لېوه او وري کیسه وه چي وری د لېوه له خولې څخه خلاص او د قصاب چړې ته ورغی. انګرېزانو هسي د خدای په جهت ایرانیانو ته اخطارونه نه ورکول او هسي یې د هرات د محاصرې پرسر له هغه هیواد سره خپل د دوستی تړونونه نه فسخ کول بلکي د دوی له لیکونو څخه مو معلومه کړه چي د ایران له خوا د هرات نیول کېدلو د روسیې له پاره د هند د دروازې د پرانیستل کېدلو معنی درلوده.

محمدشاه قاجار تهران ته ولاړ. د روسیې خارجه وزیر نیزل رود انګرېزانو ته ولیکل چي په تهران کي د هغوی سفیر کونټ سیمونیچ په ډیپلوماسي کي له خپل حد څخه تېری کړی دی او هغه یې برطرف کړ. په دې توګه هرات مصوون سو او د هند شمال لوېدیځ سرحد ته د اروپایي قدرتونو له خوا متوجه سوی خطر لیري سو. مګر دې وضعیت د انګرېزانو په نیت کي هیڅ تغییر رانه ووست. د انګرېزانو مغرور ګورنرجنرال د دوست محمدخان د لیري کولو او د شاه شجاع د پاچا کولو فیصله کړې وه.

لارډ آکلینډ، پر افغانستان باندي د حملې د پیل کولو څخه تقریباً یو کال مخکي، خپله فیصله صادره کړې وه او په کابل کي یې د شاه شجاع د پاچاکېدلو په صورت کي د هغه په دربار کي د سیاسي چارو آمر او د هغه تر لاس لاندي تقریباً ټول کسان مقرر کړي وه. د افغانستان په لویو ښارونو او د افغانستان په شاوخوا کي یې تعینات کړي وه، او په دې مسلې کي یې نه په افغانستان کي دننه د عمده تغییراتو او شرایطو بدلېدلو ته کتل او نه یې له مکناټن څخه پرته د چا پر منطق غوږ نیوی.

"لارډ آکلینډ یو کمزوری شخصیت وو چي په اصل کي د خپل سکرتر مکناټن له خوا رهبري کېدی. هغه په خپله نسبتاً ځوان وو، ډېر سخت جاه طلبه وو، په ځان ډېر باوري وو مګر وروسته ثابته سوه چي د دې لوی مسوولیت له پاره یې چنداني کفایت نه درلود. لارډ آکلینډ برنس ته وظیفه

ورکړې وه چې امیر دوست محمدخان ته ووايي چې له هیڅ هیواد سره به د انګلیسانو له خوښې پرته اتحاد نه کوي؛ مګر هغه ته بې دا هم ویلي وه چې امیر ته به په مقابل کې د هیڅ امتیاز وعده نه ورکوې." هینتي ص ۸۹

ستر قدرتونه پر کمزورو هیوادونو باندې د حملې کولو له پاره چنداني پلمې ته ضرورت نه لري او هر وخت د اوبو د خړولو مسوولیت په غاړه کې ور اچوي؛ خو پر افغانستان باندې د برتانوي هند د یرغل څخه څه کم اته میاشتې مخکې د سیملې په نوم صادره سوې اعلامیه ښایي د نړۍ یوه له تر ټولو بې منطقو او بې انصافو اعلامیو څخه وي.

## د هند د جلالتمآب ګورنر جنرال له خوا اعلامیه

د ۱۸۳۸ کال د اکتوبر لومړۍ نېټه، سیمله.

د هند ګورنرجنرال د عالي شورا له توافق سره سم د اباسین په اوردو کې د برتانیې د قواوو د راغونډېدلو حکم صادروي. ګورنر جنرال د هغو علتونو په باب چې د دغه مهم حکم د صادرېدلو سبب سوي دي وايي: دا ټولو ته معلومه ده چې برتانیې په (۱۸۳۲م.) کال کې د سیند له میرانو، د بهاولپور د نواب او مهاراجا رنجیت سینګهـ سره د دې له پاره تړونونه لاسلیک کړل چې د اباسین په اوبو کې د تجارت کولو په منظور کښتۍ چلولو ته لاره هواره سي او برتانیه په مرکزي اسیا کې داسې نفوذ تر لاسه کړي چې په نتیجه کې به یې ټولو ته ګټه رسېږي.

موږ د دغه مقصد او د دغه تړونونو د لا بهتره عملي کېدلو له پاره د افغانستان بالفعل واکمنانو ته هم بلنه په نظر کې ونیوله او د (۱۸۳٦م.) کال په وروستیو شپو ورځو کې مو کپتان برنس د کابل واکمن دوست محمدخان ته واستاوه. د دغه افسر ماموریت تجارتي ماهیت درلود. کپتان برنس لا په لاره کې وو چې ګورنرجنرال ته اطلاع ورسېدله چې د کابل واکمن دوست محمدخان زموږ پر زاړه متحد مهاراجا رنجیت سینګهـ باندې ناڅاپي او بې موجبه حمله کړې ده. د دې بېره موجوده وه چې مهاراجا به د دوست محمدخان دغه حمله بې انتقامه پرې نه ږدي. او دا وېره موجوده وه چې که په هغه سیمه کې چې برتانیه غواړي تجارت او سوداګري انکشاف وکړي یو ځل د جنګ لمبې بلې سي نو دا د برتانیې د تجارت د پراخولو هدف ته تاوان رسوي او په دغه برخه کې به یې ټولې خوارۍ په اوبو لاهو سي. ګورنر جنرال د دغه هدف له پاره کپتان برنس ته وظیفه ورکړه چې له دوست محمدخان سره په دې باب وږغېږي چې که غواړي چې له مهاراجا سره یوې روغې جوړې

ته ورسېږي نو ګورنر جنرال ستاسي سره مرستي ته حاضر دی. مهاراجا د هغه اعتماد له مخي چي د برتانيې په دوستي يې لري وويل چي انتقامي حمله به نه کوي او د برتانيې د منځګړتوب کوښښونو ته به وخت ورکړي.

په دغه وخت کي ګورنر جنرال ته اطلاع ورسېدله چي د ايران پوځ د هرات ښار محاصره کړی دی او په ټول افغانستان کي داسي دسيسې رواني دي چي د ايران نفوذ او قدرت د اباسين څنډو او لا تر هغه هم ها خوا ته سيمو ته پراخ کړي. او د ايران دربار نه يوازي د هغه هيواد په خپله خاوره کي د برتانيې استازو ته سپکاوی کړی دی بلکي د داسي نقشو په عملي کولو لګيا دی چي د هغو تړونونو له روحيې سره چي له برتانيې سره يې لاسليک کړي دي په بشپړه توګه مغايرت لري.

کله چي کپتان برنس په کابل کي ډېر وخت په بې نتيجې کوښښونو تېر کړ نو داسي معلومه سوه چي دوست محمدخان په اصل کي د ايران پر مرستو باندي حساب کړی دی او د هغه هيواد په تشويق له مهاراجا رنجيت سينګهـ سره پر غلط فهمي باندي ټينګار کوي او بې نهايته نامعقولي پلمې جوړوي او ويل يې چي ګورنر جنرال له مهاراجا سره د خپلي زړې دوستی له امله د هغه طرفداري کوي او ځکه نو د هغه پر قضاوت او منځګړتوب باندي حساب نه سي کېدلای. دوست محمدخان د خپلي خاوري د پراخولو له پاره داسي نقشې په نظر کي لري چي د هند په سرحدونو کي سوله او امنيت په خطر کي اچوي او د خپلو دې نقشو د عملي کولو له پاره يې د خارجي مرستو غوښتنه کړې وه. بالاخره يې په افغانستان کي د ايران د نقشو د عملي کېدلو څرګند ملاتړ وکړ. دا داسي نقشه وه چي په هند کي يې د برتانيې ګټو ته خطر پېښاوه. ده په دلايلو کي ری نه واهه او د برتانيې د ګټو يې هيڅ مراعات نه کاوه؛ ځکه نو کپتان برنس مجبور سو چي په کابل کي خپل سفر بې نتيجې پای ته ورسوي.

داسي څرګنده سوه چي د دوست محمدخان او د مهاراجا رنجيت سينګهـ تر منځ د اختلافاتو د حلولو له پاره به هيڅ کوښښ نتيجه ور نه کړي او د دوست محمدخان دښمني ښېخي څرګنده سوه او دا معلومه سوه چي تر څو هغه په کابل کي وي زموږ په ګاونډ کي به سوله او کراري رانه سي او موږ به داسي اطمينان پيدا نه کړو چي زموږ د هند د امپراطوری ګټي به په خطر کي ونه لوېږي.

ګورنرجنرال لازمه بولي چي په دغه ځای کي د هرات محاصرې او د ايران سلوک ته اشاره وکړي. د ايران پوځ، د څو مياشتو له پاره د هرات محاصرې ته دوام ورکړ. ايران پر هرات باندي د

حملې کولو له پاره هیڅ پلمه نه درلوده او چې په تهران کې د برتانیې استازي هر څه ورته ویل دوی غوږ نه وربانديي نیوی او د هغه ټول دلایل او پر ځای منطق یې رد کړل. د هرات خلکو په ډېره زړه ورتیا د خپلې خاورې څخه دفاع وکړه او ګورنرجنرال هیله درلوده چې هغوی خپلې دفاع ته په ډېر زړه ورتوب تر هغه وخته پورې، چې له برتانوي هند څخه مرسته ورته رسېږي دفاع وکړي. ضمناً د ایران د دغه عمل ظاهري اهداف چې د برتانیې ګټو ته د تاوان رسول وه ورځ تر بلې ښه څرګند سول. ګورنرجنرال ته په وروستیو شپو ورځو کې په ایران کې د برتانیې د اعلیحضرت د سفیر ښاغلي مکنایل رسمي لیک ورسېدی او لیکلي یې وه چې د ایران دربار د هغه پر دلایلو باندې غوږ نه نیسي او ده ته پر له پسې سپکاوی کوي نو دی مجبور دی چې د ایران له دربار څخه روان سي او د دواړو حکومتونو تر منځ د اړیکو شلېدل په عامه اعلان کړي. په افغانستان کې د ایران د قواوو د حضور دوام د برتانیې د ګټو پر ضد عمل دی او دا خبره د ایران شاه ته د برتانیې د اعلیحضرت د حکومت له خوا رسماً ابلاغ سوې ده.

د کندهار سردارانو، چې د دوست محمدخان ورونه دي، د ایران د پالیسی ملاتړ کړی دی. هغوی هم په دې ښه خبر دي چې د ایران د شاه دغه عمل په هند کې د برتانیې ګټو ته صدمه رسوي خو پر هرات باندې د ایران د پوځي عملیاتو په جریان کې یې په څرګنده د ایران ملاتړ کړی دی.

له هغه وخته چې زموږ استازی له کابل څه وتلی دی په حالاتو کې داسې ژور تغییرات راغلي دي چې ګورنرجنرال دا لازمه وبلل چې د خارجي مداخلو او په سیمه کې زموږ ګټو ته د متوجه سویو خطراتو د مخنیوي له پاره اقدام وکړي.

په دغه وخت کې د هغه توجه د شاه شجاع الملک د ادعاوو او دریځ خوا ته واوښتله چې د خپلې پاچهۍ په وخت کې یې د خارجي دښمن په مقابل کې د یوه متحد دریځ غوښتنه کوله، چې په هغه وخت کې د برتانیې حکومت هم دا متحد دریځ ضروري بللی وو. له شاه شجاع څخه د افغانستان اوسنیو واکمنانو امپراطوري غصب کړې او هغه اوس د برتانیې تر کنټرول لاندې خاوره کې د یوه قدرمن سیاسي پناه غوښتونکي په حیث ژوند کوي.

د هغو صاحب منصبانو له اطلاعاتو څخه چې افغانستان ته یې سفرونه کړي دي دا معلومه سوې ده چې د بارکزیو مشران د خپلو بې اتفاقیو له امله د دې وړ نه دي چې د برتانیې د حکومت له پاره ګټور متحدین ثابت سي او زموږ سره د خپلې ملي دفاع له پاره د عادلانه او ضروري اقداماتو په کار کې مرسته وکړي. خو بیا هم تر هغه وخته چې دوی زموږ ګټو او امنیت ته تاوان نه وو رسولی نو د

برتانيې حکومت د دوی واکمني منلې او درناوی يې کاوه؛ مګر وضع داسي سوه چي د دې مشرانو په سلوک کي تغيير راغی او زموږ حکومت مجبور سو چي د خپل امنيت د ساتلو له پاره د دوی په مقابل کي اقدام وکړي. که موږ په ختيځ کي د خپلو ګټو په غم کي يو نو په خپل لوېديځ کي داسي ګاونډي ته اړتيا لرو چي د خارجي يرغل په مقابل کي زموږ پولي خوندي کړي؛ زموږ آرامي وساتي نه دا چي له داسي مشرانو سره ملګري سي چي هغوی د فتوحاتو د کولو او د خپلو قدرتونو د زياتولو له پاره زموږ سوله او امنيت په خطر کي واچوي.

ګورنر جنرال له جدي او منطقي څېړنو څخه وروسته دې نتيجې ته ورسېدی چي اوسنی وضع دا حکم کوي چي موږ بايد د شاه شجاع الملک د داعيې ملاتړ وکړو. ځکه چي ډېرو پوهو او آزمېيل سويو کسانو، چي افغانستان ته يې سفرونه کړي دي موږ ته ويلي دي چي هغه په خپلو خلکو کي ډېر زيات محبوبيت لري او په يوه اتفاق يې د هغه د بيرته پاچا کېدلو طرفداري کړې ده. کله چي ګورنر جنرال دې نتيجې ته ورسېدی نو په دې فکر کي سو چي مهاراجا رنجيت سينګه چي د برتانيې يو ټينګ دوست دی هم په دغه اقدام کي راسره ملګری کړو.

ښاغلی مکناټن د تېر جون په مياشت کي د دغه هدف له پاره د هغه جلالتمآب دربار ته ولېږل سو او د هغه د سفر نتيجه د مهاراجا برتانيې د حکومت او شاه شجاع الملک تر منځ درې اړخيز تړون دی چي د هغه تړون په اساس جلالتمآب په خپل قلمرو کي ذمه وهلې ده او ژمنه يې کړې ده چي له شاه شجاع الملک سره به د خپلو نيکونو پر تخت باندي د کښېنستلو په لاره کي همکاري کوي. د دريو واړو دوستان د ټولو دوستان او دښمنان يې د دريو واړو دښمنان دي.

ډېر هغه مواد چي د برتانيې د حکومت او د جلالتمآب مهاراجا تر منځ اختلاف ورباندي موجود وو تعديل سول او اوس ټولو شاوخوا ملکونو ته معلومه سوه چي د تړون مواد د دواړو خواوو د ګټو سره يو شان سر خوري. د مناسبو شرايطو سره سم به د سند د ميرانو استقلال تضمين سي، هرات به د هغه ښار د اوسني واکمن په لاس کي پاته وي، بشپړ درناوی به يې کيږي او د هغو عملياتو په نتيجه کي به چي بشپړ سوي او يا د بشپړېدو په جريان کي دي د تجارت د آزادی او مصوونيت له پاره کار کيږي او د برتانيې نوم او منصفانه نفوذ به په دې توګه ټولي مرکزي اسيا ته ورسېږي او په دې توګه به د هند په مهمه سرحدي سيمه کي کراري راسي او د دښمنانو د دسيسو او تېريو په مقابل کي به يوه داسي پوله جوړه سي چي تل تر تله به پاته وي.

اعلیحضرت شاه شجاع الملک به په داسي حال کي چي خپل پوځیان به يې باندي را څرخېدلي وي خپل وطن ته ورسېږي او د برتانيې پوځ به د خارجي يرغل او داخلي مخالفينو په مقابل کي د هغه ملاتړ کوي. ګورنر جنرال له پوره اطمينان سره دا هيله لري چي د شاه شجاع خپل خلک به هغه د اوسني واکمن پر ځای کښېنوي. او کله چي د ده قدرت باوري او د افغانستان استقلال او د خاوري تماميت خوندي سو نو د برتانيې پوځ به له افغانستان څخه را ووځي. ګورنر جنرال څکه د هغه له پاره تخت نيسي چي په دغه عمل کي يې د برتانيې د حکومت د قلمرو امنيت او کراري مطلب ده. مګر له دې امله ډېر زيات خوشاله دی چي په دې توګه به د افغانستان د خلکو اتحاد او سمسورتيا تضمين سي. برتانيه به د خپلو دغو عملياتو په جريان کي هر وخت عمومي ګټې په نظر کي نيسي؛ د اختلافاتو د حلولو کوښښ به کوي، کوښښ به کوي چي هره خوا خپل تاوانونه هېر کړي او هغه دښمنی هېري کړي چي له ډېره وخته يې د افغانستان د خلکو ښېګڼي او خوښي نيمګړي کړي دي. زه به حتی د هغو مشرانو چي برتانيه يې دغه يرغل ته مجبوره کړې ده او له برتانيې سره يې مخالفت کړی دی، که برتانيې ته تسليم سي او له هغې لاري سره له مخالفته لاس واخلي چي د دوی د هيواد د عمومي ګټې له پاره کيږي، نو زه به يې عزت تضمين کړم او قدر به يې وکړم.

د هند د ګورنرجنرال په امر.

ډبليو. ايچ. مکناټن، د ګورنر جنرال په دفتر کي د هند د حکومت سکرتر.

کوريس پانډينس ص ص ۲۹۹-۳۰۳

اعلاميه وايي چي مکناټن د جون په مياشت کي لاهور ته ليږل سوی دی. د دې معنی دا ده چي پر افغانستان باندي د يرغل کولو پلان بايد له دې څخه مياشت يوه نيمه مخکي طرح سوی وي، تر څو چي لاهور ته هيات ليږل سوی دی. په دومره اوږده اعلاميه کي د روسيې نوم، چي يو خو د ستري لوبي اصلي لوبغاړی دی، او د برتانيې ګټو او امنيت ته د تاوان رسولو توان ورسره دی، نوم قدر هم نه دی اخيستل سوی او په عوض کي ټوله تکيه پر ايران سوې ده چي د فارس خليج ته د برتانيې د جنګي کښتيو له رسېدلو او د برتانيې د اخطار له اورېدلو سره د هرات له محاصرې څخه لاس اخلي.

د برتانيې د حکومت په دې ظالمانه او ضمناً غولونکې اعلاميه کي له يوې خوا ادعا کيږي چي ګورنرجنرال پر شاه شجاع مهربانه سوی او هغه ته هغه امپراطوري بيرته ورکوي چي بارکزيو ورڅخه لاندي کړې ده، خو له مهاراجا رنجيت سينګهـ سره د درې اړخيزي موافقې په وسيله پر دې راتلونکي امپرطور باندي داسي شرايط تحميلوي چي هغه له يوه مستقل پاچا سره نه بلکي د يوه تر لاس لاندي سړي سره مناسب دي. لوستونکو ته دي دا په زړه وي چي د (۱۸۳۸م.) کال د جون په

درې اړخيز تړون کې ټول هغه تحقيروونکي مواد راغلي دي چې د شاه شجاع او رنجيت سينګه د (۱۸۳۳م.) کال په دوو تړونونو کې ذکر سوي وه.

ګورنرجنرال له يوې خوا له شاه شجاع سره د امپراطورۍ وعده کوي او له بلې خوا هرات ته په مستقل حيثيت قايلېږي او دا مهم ښار د افغانستان له لويي بدنې څخه بېلوي؛ او دا امپراطوري چې يو ځای کول يې هم د ده په وس کې وه په وچ زور ټوټې ټوټې کوي. خو ځرنګه چې هغه ګورنرجنرال وو او په ټوله اسيا کې يې د خپل زور او طاقت سيال نه ليدی نو منطق ته يې ډېر لږ ضرورت پيدا کاوه.

مؤرخ سر ويليم کې د برتانيې د آرشيف په حواله، د دغه لښکرکښۍ په باره کې د هند د مسلمانانو د نظر په باره کې ليکي: "کپتان ويډ وايي زه دوې ورځې مخکې د شاه شجاع ليدلو ته ورغلم او هغه راته وويل چې د ډهلي ځينو مسلمانانو راته ليکلي دي چې زه به قرآن ته د يوه معتقد مسلمان په حيث خپل وجدان ته ځرنګه قناعت ورکوم چې د پاچهي د نيولو له پاره له مسيحيانو څخه مرسته اخلم. شاه شجاع وويل چې د دې خلکو پر مذهبي تعصب باندي يې افسوس وکړ او له قرآن څخه يې يو آيت ورته نقل کړ، چې د هغه مقدس کتاب له متن څخه يې د دوی بېخبري ثابتول." کې ص ۳۷۱

"کله چې د ايرانيانو پوځ د هرات د ښار په مخ کې ولاړ وو، کله چې د افغانانو پوځ په نن او سبا کې تسليمېدلو ته نيژدې کېدی. کله چې د کندهار او د کابل واکمنانو د ايران پاچا ته د مرستو له پاره زاری کولې؛ په هغه وخت کې هم د شاه شجاع د بيرته پاچا کولو پلان مشکوک ښکارېدی. خو کله چې د ايران پوځ له هرات څخه پر شا سو بيا نو لارډ آکلينډ ته پر افغانستان باندي د حملې کولو له پاره هيڅ دليل پاته نه سو. په دغه وخت کې نو له اباسين څخه د پوځونو اړول يوه اشتباه او يو جنايت وو. په درې اړخيز تړون کې دا نه دي راغلي چې برتانيه به خپل عسکر د افغانستان تر پوله اړوي. د افغانستان داخل ته د برتانيې د پوځ ورتلل خو نه له شاه شجاع او نه له رنجيت سينګه سره په تړون کې راغلي وه. افغانستان ته د برتانيې د پوځ د لېږلو په باره کې وروسته فيصله سوې ده. کله چې مکناټن د پنجاب له مهاراجا او د کابل له پخواني پاچا سره تر ليدنو کتنو وروسته سيملې ته ستون سو نو ده د خپل ماموريت نتيجه ګورنر جنرال ته وويل نو د ده او د رنجيت سينګه په تړون کې راغلي وه چې د برتانيې حکومت به يوازي يو څو تنه صاحب منصبان د شاه شجاع په کنټرول

کي ورکوي او هغوی به د ده پوځ ورته روزي. له دغه واړه تعهد څخه خبره دې ځای ته ورسېده چي زموږ د پوځ کنډکونه د شاه شجاع پر شاوخوا را وګرځېدل څو هغه پر خپل پلرني تخت باندي کښېنوي. او ده په خپله ویلي وه چي دی غواړي افغانستان ته د یوه مستقل واکمن په حیث داخل سي نه د انګرېزانو په لاس کي د یوه ګوډاګي په توګه.

افغانستان ته د برتانیې د پوځ ننوتل د هند د حکومت په تعهداتو کي شامل نه وه بلکي دا د هغوی خپل انتخاب وو. د سیملې د اعلامیې څرګند هدف په کابل کي د شاه شجاع بیرته پاچا کول وه. مګر په افغانستان کي د یوه موجود سلطنت له منځه وړل کېدلو هغه وخت منطقي اساس درلودی چي هغه حکومت برتانیې ته خطر پېښ کړی او د هند کراري یې په خطر کي اچولې وای. زموږ سره که د بارکزیو سردارانو هر څه دښمني موجوده وه هغه د هرات څخه د محمدشاه د پرشا کېدلو سره پر خپل مخ ولاړه او نوره مهمه نه وه. هغه کتاب ص ص ۳۶۸-۶۹

هینري راولنسن چي له لویه سره د افغانستان د تجزیه کېدلو طرفدار وو، پر افغانستان باندي د برتانوي هند د حملې سره هم مخالف دی او وایي چي کله د ایران پوځونه له هرات څخه پر شا سول او پر هند باندي د ایران او روسیې د ګډ یرغل کولو خطر لیري سو، نو پر افغانستان باندي د یرغل له پاره هیڅ دلیل پاته نه سو. دی وایي د دې حملې پلان د ګورنرجنرال په کمپ کي د کاغذونو د تبادله کېدلو او بې ځایه میرزایي ګانو محصول دی او په دغه اساس د برتانیې پوځ حرکت وکړ.

راولنسن د هرات مقاومت او د هغه ښار استقلال د برتانیې د سفیر مکنایل د سیاسي فعالیت او د هرات خلکو ته د جنګي روحیې او اطمینان د ورکولو او له هرات څخه د انګرېزي صاحب منصب پوټینجر د دفاع کولو برکت بولي او وایي چي د خارک په ټاپو کي د انګرېزانو ځنډنۍ مداخلې د مکنایل او پوټینجر د فعالیتونو په اندازه اهمیت نه درلود. دی وایي شاه هم وویل چي دا محاصره یې د برتانیې سره د دوستۍ له امله او د خپل هیواد د ګټو د ساتلو په خاطر پرې ایښې ده. او ایرانیان خو چي په لاپو کي سیال نه لري ټول دا وایي چي دوی ته افغانانو ماته نه ده ورکړې بلکي انګرېزانو شکست ورکړی دی. راولنسن وایي موږ د ایران په مقابل کي له وسلو او زور څخه کار واخیست او د ایران پر خاوره مو یرغل وکړ نو که د ایران ملت د خپل پاچا سره په یوه عقیده وای او یا یې د هغه پوځ چي هرات یې محاصره کړی وو ملاتړ کولای، نو به یې حتماً د خپل عزت څخه دفاع کړې وای او زموږ هغه د روغي جوړي مخکني فعالیتونه به یې لا بې نتیجې کړي وای. راولنسن ص ص ۵۹-۶۰

مخکې مو دې خبرې ته څو ځله اشاره وکړه چې ستر طاقتونه په کمزورو هیوادونو باندې د یرغل او تیري کولو له پاره دلیل، پلمې او منطق ته ضرورت نه لري او پر افغانستان باندې د برتانیې یرغل هم د همدغو بې منطقیو او بې ځایه غرور په اساس پیل سو. د سیملې له اعلامیې سره د افغانستان د تاریخ یو مهم او خونړی فصل پیل سو. په اسیا کې دا لیرې او له نظره لوېدلي هیواد یو ناڅاپه په نړۍ، په تېره بیا مرکزي اسیا او اسلامي نړۍ کې دونه مشهور سو او د برتانوي استعمار په څېر ستر طاقت په مقابل کې د هغه هیواد د اولسونو مقاومت او مړانې په نتیجه کې د برتانیې د پوځ د ماتې او بشپړې تباهۍ خبرونه او رپوټونه دونه خپاره سول چې افغان اولس په راتلونکو وختونو کې د ډېرو آزادۍ بخښونکو تحریکونو سرمشق وګرځېدی.

د برتانیې ډېرو مهمو سیاستمدارانو، مؤرخینو او لیکوالانو یا له افغانستان سره شخصي عداوت او ژوري دښمنۍ او یا په هند کې د خپلې امپراطورۍ د ګټو د خوندي کولو په خاطر افغانستان ته د یوه دښمن هیواد په سترګه کتل او هیڅ وخت یې نه غوښتل چې دا هیواد یو موټی او غښتلی سي. دوی غوښتل چې افغانستان د قدرت پر دریو او یا حتی ډېرو مرکزونو وېشلی وي څو دوی د یوه قوي او یو موټي دښمن پر ځای له څو کمزورو واکمنانو سره مخامخ وي چې د دوی د یرغلونو په مقابل کې له ځانونو څخه د دفاع کولو توان ونه لري او هر وخت د دوی مرستې ته اړ وي.

هینري راولنسن د افغانستان او برتانیې د لومړي جنګ څخه څه کم پنځه دېرش کاله وروسته هم د افغانستان په باره کې خپل دغه زهرجن نظر په څرګنده وایي:

"د متحد او غیر متحد افغانستان مسئله له ډېره وخته په برتانیه کې د هند د چارو د ماهرانو تر منځ مطرح ده. که موږ په کابل کې داسي واکمن ولرو چې د هغه پر وفاداري باندې بشپړه تکیه وکړای سو نو په دې کې هیڅ شک نه سته چې موږ باید د هغه د قدرت په زیاتولو او ټینګولو کې مرسته وکړو. مګر د افغانانو پر وفاداري باندې څوک حساب کولای سي؟ او دا به څوک تضمین کړي چې د هغوی په سلوک کې د وخت په تېرېدلو او د وضع په بدلېدلو سره تغییر نه راځي؟ ځکه نو زما خپل نظر دا دی چې هرات او کندهار باید له کابل څخه بېل وساتل سي او موږ خپله توجه زیاتره د افغانستان لوېدیځو ولایتونو ته متوجه کړو چې زموږ د هند د پولو امنیت ته ډېر زیات مهم دي. هغه کتاب ص ص ۱۸۶-۸۷.

**ماءخذونه:**

۱: محمود، محمود. تاريخ روابط سياسي ايران و انگليس در قرن ۱۹. تهران ۱۳۵۳

۲: سپهر، محمدتقي لسان الملک. ناسخ التواريخ. تاريخ قاجاريه. تهران ۱۳۷۷

۳: هروي، محمديوسف رياضي. عين الوقايع. تهران ۱۳۶۹

4: Kaye, John William. History of the War in Afghanistan. India, Reprint 1999.

5: Correspondence Related to Persia and Afghanistan. London 1839.

6: Henty, G.A. To Herat and Cabul. Lahore, Pakistan. Reprint 1983.

7: Ferrier, J. P. History of the Afghans. London. 1858.

8: Richards, D. S. The Savage Frontier. A History of the Anglo-Afghan Wars. Great Britain. 1990.

9: Watson, Robert Grant. A History of Persia from the Beginning of the Nineteenth Century to the Year 1858. London. 1866.

10: Rawlinson, Major Gen. Sir Henry. England and Russian in the East. London 1874.

## د کابل د تخت د نیولو له پاره د شاه شجاع وروستی کوښښ

د سیملې له اعلامیې څخه په څرګنده ښکاري چې انګرېزانو پر افغانستان باندې په هر صورت د یرغل کولو او د هغه هیواد د اشغالولو فیصله کړې وه. د سیملې اعلامیه د (۱۸۳۸م.) کال د اکتوبر پر لومړۍ نېټه چې هم له افغانستان څخه د روسانو استازی ویتکیویچ وتلی او هم اېرانیانو د هرات د ښار محاصره پرې ایښې وه، صادره سوه. او دا هغه دوه عمده دلیلونه وه چې د هغو په اساس به انګرېزانو پر افغانستان باندې د یرغل کولو له پاره خپل ځان ته پلمه جوړولای. د سیملې له اعلامیې څخه څه باندې درې میاشتې مخکې د جون پر شپږویشتمه د رنجیت سینګهـ، شاه شجاع او انګرېزانو تر منځ درې اړخیز یا مثلث تړون لاسلیک سو او د هغه تړون په اساس پر افغانستان باندې د متحدو قواوو حمله تصویب سوه. د دې معنی دا ده چې انګرېزانو باید د دې تړون څخه ډېر مخکې د دې یرغل فیصله کړې وي ځکه چې د دولتونو تر منځ د دونه مفصل تړون پر شرایطو باندې د نظر توافق حاصلول په خپله وخت ته ضرورت لري او لږ تر لږه دوې درې میاشتې یې باید نیولې وي. انګرېز مؤرخ جان کې ځکه پر افغانستان باندې د انګرېزانو دغې حملې ته جنایت ویلی دی چې هیڅ ډول منطقي او سیاسي اساس یې نه درلود.

الیکزانډر برنس چې په کابل کې یې د شاه شجاع په حکومت کې د سیاسي سلاکار مقام، چې مکناټن ته ورکول سوی وو، خپل حق باله، پر افغانستان باندې د انګرېزانو د قواوو د یرغل له پاره د لارې هوارولو په مقصد سند ته ولېږل سو او مکناټن په سیمله کې پاته سو، خو د سیملې د اعلامیې د صادرېدلو له پاره منطقي دلایل پیدا او په هغې کې یې درج کړې. د سیملې له اعلامیې سره، چې عمده هدف یې په کابل کې د بارکزیو د حکومت پرزول او د شاه شجاع پاچا کول وه، له لومړۍ ورځې سخت عکس العملونه را وپارول. ځکه چې لومړۍ خو د هرات محاصره ختمه سوې وه او انګرېزانو پر افغانستان باندې د حملې کولو هیڅ دلیل نه درلود او بل دا چې که انګرېزانو د ایران له خوا د هرات محاصره پر افغانستان باندې د حملې کولو پلمه بلله، نو دا خپله غیر منطقي خبره وه چې د ایران پاچا پر هرات باندې حمله کړې ده انګرېزان باید له دوست محمد خان سره جنګ اعلان کړي.

د برتانيې ډېرو مشهورو سیاستمدارانو، چې د هند په چارو کې یې تجربه او تخصص درلود، د دې یرغل په نتیجه کې د یوې فاجعې پېش بیني وکړه. په دې کسانو کې د ولینګټن ډوک لارډ ویلسلي، سر چارلس میتکاف، ښاغلی ایډ مونسټون، مونسټارټ الفینسټون، سر هینري ویل لاک او ښاغلی ټوکر شامل ول. لارډ ویلسلي پېش بیني وکړه چې زموږ ستونزې د برې له بشپړېدلو سره پیل کیږي. او په افغانستان کې زموږ د خوښې او پلان سره سم د یوه حکومت پر ځای کښېنول دا معنی لري چې موږ باید د تل له پاره په هغه هیواد کې پاته سو. چارلس میتکاف ویل چې تر اباسین تېرېدل او د هغې سیمې د وطنونو په چارو کې لاس وهل دا معنی لري چې په لوی لاس، په هغه سیمه کې، روسانو ته د مداخلې بلنه ورکړو. الفینسټون، چې په پوځي برې یې هم باور نه درلود پېش بیني وکړه چې پر تخت باندې زموږ له خوا د یوه ټاکل سوي سړي کښېنول هیڅ ډول نتیجه نه ورکوي او دا یوه بایللې لوبه ده. په خپله د شرق الهند د کمپنۍ مدیره هیات له دې اعلامیې سره سخت مخالفت کاوه. ایکسپیډیشن ص ص ۳۰۲-۳۰۳

مونسټارټ الفینسټون، چې د کابل پاچهي په نوم کتاب یې د څه باندې دووسوو کالو راهیسی د نړۍ د ټولو افغانستان پېژندونکو له پاره تر ټولو معتبر مأخذ دی، په یوه شخصي مکتوب کې ولیکل: "ته اټکل کولای سې چې زه به د کابل په باب څه فکر کوم. دا په یاد ولره چې ما به ستا سره کابل ته د یوه استازي پر لېږلو باندې لا موافقه نه کوله. او دا دی اوس مو په افغانستان کې د یوه دولت د ساتلو وظیفې ته اوږه ورکړې ده؛ فقط لکه دا چې په هند کې زموږ تر لاس لاندې سیمه وي. که ته (۲۷) زره عسکر، لکه چې موږ یې اورو په نظر کې نیول سوي دي، د بولان د درې له لارې کندهار ته واستوې، او هغوی ټولو ته ډوډۍ ورسوې؛ زه په دې کې هیڅ شک نه لرم چې ته به کندهار او کابل ونیسې او شاه شجاع به د کابل پر تخت کښېنوې. مګر په یوه نېستمن، ساړه، قوي او یوه لیرې پراته هیواد کې، چې د افغانانو په څېر سرکښه خلک پکښې اوسېږي، زه فکر کوم چې ناکامي حتمي ده. که بری تر لاسه هم سي زه وېره لرم چې د روسیې په مقابل کې به مو دریځ کمزوری سي. افغانان بیطرفه خلک ول او د یرغلګرو په مقابل کې به یې زموږ د مرستو هرکلی کړی وای. اوس به دوی زموږ سره مخالف او ناراضه وي او له هر هغه یرغلګر سره به چې موږ له افغانستانه باسي متحد سي. ما هیڅ وخت نه دي اورېدلي چې د یوه متمدن او غیر متمدن هیواد تر منځ اتحاد دې درې کاله دوام وکړي او دواړه دې له یوه بل سره دښمنان نه سي. که له افغانانو سره زموږ دغه ډول اتحاد تر اوسه پوري زموږ په مقابل کې نفرت را پارولی نه دی نو له رنجیټ سینګهـ سره زموږ اړیکې او د

هغه د فتوحاتو تضمین به دا کار هم وکړي. له دونه لیري فاصلې څخه به زما نظریات ډېر ځتې او بې معنی ښکاره سي، خو سره له هغه چي هر څه مي اورېدلي دي بیا هم پر خپله عقیده ولاړ یم." کې ص ص ۳۶۳-۳۶۴

د جون په میاشت کي، مکناټن لاهور ته ورسېدی او له مهاراجا رنجیټ سینګهـ سره یې تړون لاسلیک کړ. د دې تړون لومړۍ څوارلس مادې د هغه تړون ټکي په ټکي تکرار دي چي شاه شجاع او رنجیټ سینګهـ په (۱۸۳۴م.) کال کي سره لاسلیک کړی وو. دلته به یې هغه مادې راوړو چي په مخکني تړون کي نه وې راغلي.

۱۵: شاه شجاع الملک دا مني چي د خپل هدف تر لاسه کولو سره به مهاراجا ته دوه لکه نانک شاهي روپۍ یا کلداري ورکوي. دا پیسې به له هغي ورځي څخه تولوي چي د سیکهانو پوځیان د کابل پر تخت باندي د هغه اعلیحضرت د کښېنولو په منظور حرکت وکړي. مهاراجا به له شاه شجاع سره لږ تر لږه پنځه زره سپاره او پیاده عسکر ملګري کوي، چي ټول به مسلمانان وي او د پېښور د شاوخوا علاقې اوسېدونکي به وي. دا عسکر به هر وخت چي د برېټانیې حکومت یې لازمه وبولي د اعلیحضرت شاه شجاع مرستي ته حاضرېږي. او هر کله چي د لوېدیځ په خوا کي کومه مهمه پېښه منځ ته راځي نو دغه پوځیان به مرستي ته حاضر وي. که چېري مهاراجا د شاه د عسکرو مرستي ته ضرورت پیدا کړ نو په هغه صورت کي به د پوځونو د شمېرپه اندازه په لګښتونو کي کمي راځي. په دې صورت کي به هغه وخت هم په نظر کي نیول کیږي چي د شاه له پوځیانو څخه کار اخیستل سوی وي او د برېټانیې حکومت مسوولیت لري چي دغه پورته ذکر سوی رقم به، تر هغه وخته پوري چي دغه تړون نافذ وي، هر کال پر خپل وخت مهاراجا ته ورکول کیږي.

۱۶: شاه شجاع موافقه کوي چي د خپل ځان، خپلو وارثانو او نورو ځای ناستو له پاره د هغو ټولو سیمو د ملکیت له دعوې او مالیاتو څخه تېرېږي چي اوس حاضر د سند د میرانو په لاس کي دي او دا به تر ابده د میرانو او د هغوی د راتلونکو نسلونو په لاس کي وي. دا سیمي به هغه وخت د سند د میرانو ملکیت ګڼل کیږي چي شاه شجاع، د برېټانیې د حکومت په منځګړتوب له هغوی څخه پیسې تر لاسه کړي او له هغو پیسو څخه به پنځلس میلیونه روپۍ مهاراجا ته ورکوي. د (۱۸۳۴م.) کال د مارچ د دوولسمي د تړون څلورمه ماده به منسوخه ګڼله کیږي او د مهاراجا او د سند د میرانو تر منځ به معمولي خطونه او تحفې لیږل، له هغه وروسته جاري ساتل کیږي.

۱۷: شاه شجاع الملک خپل ځان، خپل ولیعهد او راتلونکي نسلونه چي په افغانستان کي به

قدرت ته رسېږي مکلف بولي چي دی به خپل وراره د هرات واکمن نه تهدیدوي او له هغو سیمو سره به غرض نه لري چي اوس حاضر د هغه په قلمرو کي شاملي دي.

۱۸: شاه شجاع د خپل ځان، خپل ولیعهد او راتلونکو نسلونو له لوري وعده کوي چي د برتانیې او سیکهـ د حکومتونو له اجازې او اطلاع پرته به له هیڅ بهرني هیواد سره اړیکي نه ټینګوي او تر خپل وس پوري به د هر هغه قوت سره په وسلو مقابله کوي چي د سیکهانو او یا برتانیې پر قلمرو باندي حمله کوي.

درې واړه قوتونه د برتانیې حکومت مهاراجا رنجیت سینکهـ او شاه شجاع الملک په بشپړ درناوي له پورته موادو سره خپله موافقه ښرګندوي. له دې مادو څخه به هیڅ ډول سرغړونه نه کېږي او په دې توګه نو دا تړون د تل له پاره نافذ دی؛ دا تړون به د دریو واړو قوتونو له مُهر او لاسلیک څخه وروسته له هغې شېبې نافذ وي.

لاسلیکونه: آکلینډ..............

رنجیټ سینګهـ..................

شاه شجاع الملک..............

دا تړون په لاهور کي د (۱۸۳۸م.) کال د جون پر شپږویشتمه چي د سیکهانو د بکرماجیت د (۱۸۹۵م.) کال د اسار له میاشتي سره برابر دی، تر سره سو. کوریس پانډینس ص ص ۲۹۵-۲۹۶

دا تړون چي څومره غیرعادلانه دی او د شاه شجاع لاسونه یې څومره تړلي او هغه ته یې د یوه پاچا په سترګه نه، بلکي د یوه عادي واسال په سترګه کتلي دي، هغه خو ښرګنده خبره ده؛ خو د پروتوکول په حساب هم د شاه شجاع نوم له رنجیټ سینګهـ څخه وروسته راغلی دی او د تړون په پای کي د میلادي کال سره د سیکهانو د بکرماجیت کال ذکر سوی او د مسلمانانو د هجري قمري او یا هجري شمسي کال درک نه سته. او دا په خپله ښیي چي په دې درې اړخیز تړون کي شاه شجاع چنداني اهمیت نه درلود. مهمه خو لا دا ده چي د تړون د لاسلیکولو په وخت کي نه شاه شجاع او لارډ اکلینډ وجود لري. یوازي رنجیټ سینګهـ یې لاسلیکوي او د اکلینډ او شاه شجاع لاسلیکونه وروسته اخیستل کېږي.

دغه تړون او اصلاً د افغانستان په چارو کي دغه ډول ښکاره او غیرعادلانه مداخله که څه هم چي د برتانیې ډېرو پوهانو او جنرالانو وغندله او د تاریکي اینده پېښ بیني یې ورته وکړه مګر د

برتانيې حکومت، که څه هم چي ابتکار يې په لاس کي نه وو اخيستی، مگر د لارډ آکلينډ اقدام يې منظور کړی وو. د اگسټ پر دوهمه هم خارجه وزارت او هم د هند له پاره د کنټرول بورډ له رنجيټ سينگهـ سره ورروستي تړون منظور کړ. خارجه وزير پالمرسټون په تهران کي د ايران د سفير مک نايل له دې نظر سره مخالف وو چي ويل يې د فارس پر خليج دي حمله وسي او د برتانيې عسکر دي د تهران پر لور مارش وکړي. پالمرسټون په عوض کي د افغانستان پر ضد د سترو عملياتو منظوري ورکړه. کله چي سړی د انگرېزانو پلان ته گوري نو داسي فکر کوي چي دوی نه د افغانستان د جغرافيې او غرونو او نه د خلکو په باره کي معلومات درلودل او افغانستان ته يې اصلاً د هيواد په سترگه کتلي نه وه. دوی خيال درلود چي رنجيټ سينگهـ به د افغانستان له لاري پر ايرانيانو باندي حمله وکړي او هغوی به د افغانستان له خاوري څخه وشړي او بيا به نو ټول افغانستان د يوه مشر په رهبري په رسميت وپېژني. پالمرسټون په دې عقيده وو چي افغانستان تر ايران بهتر حايل دی او برتانيه بايد د افغانستان له جغرافيايي موقعيت څخه هغه گټه واخيستلای سي لکه روسيه چي يې له ايران څخه اخلي. پالمر سټون ويل چي موږ بايد پر ايران باندي له حملې کولو څخه ځان وژغورو. ځکه چي په هغه صورت کي به د ايران شاه ولمسوو چي له روسيې سره نيردې سي. دا به د روسيې او برتانيې تر منځ د نښتي سبب سي او په هغه صورت کي به روسيه ځکه په گټه کي وي چي د جگړې ميدان ته ور لنډ دي او اکمالات ژر رسولای سي. والر ص ۱۲۶

انگرېز مؤرخ جورج فاريسټ وايي د برتانيې حکومت لارډ آکلينډ ته ويلي وه چي د افغانستان په چارو کي د جدي مداخلې وخت را رسېدلی دی. لارډ اکلينډ فيصله کړې وه چي په کابل کي بيرته د سدوزيو حکومت ټينگ کړي او هرات له کابل څخه مستقل وي. فاريسټ وايي دوی دا هېره کړې وه چي د افغانستان پر سرکښو او زړه ور قبايلو باندي د انگرېزانو د برچو په زور واکمن نه تحميلېږي او که پر تخت کښېنول سي نو هلته به منفور وي. او لارډ آکلينډ په دې نه پوهېدی چي شاه شجاع يو له تر ټولو نالايقو او کمزورو شخصيتونو څخه دی. فاريسټ ص ص ۱۷-۱۸

سرنيويل چمبرلين، چي په هغه وخت کي اتلس کلن ځلمی صاحب منصب وو او د مکناټن او شاه شجاع له قواوو سره ملگری وو د شاه شجاع په باره کي ليکي: "شاه شجاع يو زوړ سړی دی چي د شپېتو کلونو په شاوخوا کي به وي. ږيره يې تر سينې پوري رسېږي او په طبيعي ډول سپينه ده خو دی يې د ځوان ښکاره کېدلو له پاره توروي. دی په کجاوه کي گرځي چي دوولس تنه يې پر اوږو وړي. پر آسونو سپاره کسان ورسره وي او پياده هم خلک ورسره ځغلي. پيلان، آسونه او په سل

هاوو سپاهیان ورسره وي. دی په حقیقت کي د هند د واکمنانو په څېر ژوند کوي. دی خپله یوه پنځه زره کسیزه قوه لري چي صاحب منصبان یې انگرېزان دي او دا د ده ساتونکي دي. کله چي موږ دی پر تخت کښېناوه نو دا قوه به له ده سره په کابل کي پاتېږي چي دی پر قدرت باندي وساتي. دا نو یوه شانداره وظیفه ده. کشکي تاسي له دې نظام سره زما د څو کلن خدمت ټوله کیسه واوری. فاریسټ ص ۳۱

له رنجیټ سینگهـ سره د تړون له لاسلیک کېدلو څخه تقریباً شل ورځي وروسته، کپټان وېډ، لیفټیننټ مکسن او ویلیم مکناټن په لودهیانه کي د شاه شجاع کورته ورغلل او مکناټن ته د خبرو په جریان کي معلومه سوه چي شاه شجاع د وروستي تړون او افغانستان ته د تللو په برخه کي اندېښنې درلودلې. شاه شجاع، د خپلو خبرو په ترڅ کي مکناټن ته وویل چي که برټانیه ده ته د کابل د اوسني واکمن تر مقام، چي رنجیټ سینگهـ ته هیڅ باج نه ورکوي، کښته درجه ورکړي نو قدرت ته د ده له رسولو څخه به چنداني څه تر لاسه نه کړي. ده وویل چي له ډېره وخته د دغي ورځي په انتظار وم چي برټانیه به مي د کابل تخت ته رسوي. ده وویل چي زه شل کاله برټانیې نازولی یم او عزت یې راکړی دی. اوس باید دوی په دې پوه سي چي په راتلونکي کي د دوی دواړو نوم سره تړلی او بدنامي او نېکنامي دواړو ته یو شان رسېږي. ده وویل چي په دې زمانه کي ښه نوم تر ټولو لوی نعمت دی. نیمه گوله ډوډۍ مي له ښه نامه سره قبوله ده، نه د دنیا نعمتونه چي له ښه نامه سره نه وي. کې ص ۳۲۶

کې وایي داسي شواهد موجود وه چي شاه شجاع نه پر برټانیه او نه پر رنجیټ سینگهـ اعتماد درلود. ده فکر کاوه چي دواړو خواوو د ټولو کارونو ترتیب نیولی دی او دی د هغوی دواړو د اهدافو د تر لاسه کولو له پاره د یوه گوډاگي په څېر استعمالېږي او پر افغانستان باندي د یرغل د ډرامې د رنگینولو له پاره کار ورڅخه اخیستل کیږي. هغه کتاب ص ۳۳۰.

ده غوښتل چي برټانیه د ده پوځیان ورته وروزي او د کابل تخت په دغو پوځیانو ونیسي. ده ویل چي که زه د خپلو وسلو او پوځیانو په زور قدرت ته ورسېږم نو د خلکو په نزد به مي اعتبار زیات سي. ده وویل چي د افغانستان له مشرانو سره یې تماسونه ټینگ کړي دي او یقین لري چي په زرهاوو کسان به ورسره یو ځای سي.

که شاه شجاع، د داسي شرمونکي موافقتنامې له لاسلیک کولو څخه وروسته ، بیا هم په دې

عقیده وو چي برټانیه له هغه سره د یوه دوست او قدرمن مېلمه په حیث مرسته کوي او له ده څخه به د ګوډاګي په توګه کار نه اخلي نو ریښتیا چي ډېر ساده سړی وو.

لکه مؤرخ سرجان کې چي وایي: شاه شجاع له لومړي ورځي ناراض ښکارېدی او څرنګه چي د هغه ټول ژوند د خپلوانو او نیژدې کسانو په بې وفایي او نامردي کي تېر سوی او پر هر چا بې اعتماده سوی وو، نو پر پردیو، په تېره بیا د رنجیت سینګه په څېر دښمن باندي یې خو بېخي اعتماد نه سو کولای. د بلي خوا د پاچهی اشتها او د قدرت لېونتوب هر کار ته مجبوراوه او ده ته معلومه وه چي د انګرېزانو په څېر لوی طاقت له مرستي پرته په هیڅ صورت قدرت ته رسېدلای نه سي او که دی د هغو مرسته ونه مني نو داسي ډېر کسان سته چي تر ده په خرابو شرایطو د انګرېزانو دوستی او د ملاتړ لاسه کولو ته تیار ناست دي.

د انګرېزانو پوځ د (۱۸۳۸م.) کال د ډسمبر پر لسمه له فیروز پور څخه د سند او افغانستان پر لور حرکت وکړ. که څه هم چي انګرېزانو ته معلومه وه چي د سند میران به د دوی د لښکرو په مقابل کي د درېدلو جرأت ونه کړي خو بیا یې هم هغوی ته مخکي له مخکي، په ډېرو ټینګو کلماتو یو خبرداری ورکړ. د سند میرانو ته وویل سول چي که دوی د برټانیې د پوځونو په مقابل کي دوستانه دریځ ولري او که دښمني ورسره وکړي؛ د برټانیې پوځونه به تر اباسین تیرېږي. زموږ حکومت چي موږ ته هر ډول هدایت راکړی دی موږ به هغسي کوو. دا زموږ خوښه ده چي کله او پر کوم ځای باندي له سیند څخه اوړو. که زموږ سره څوک مقاومت وکړي نو دا نه یوازي بې ګټي کار دی، بلکي لېونتوب دی. هر هغه څوک چي زموږ په مخ کي درېږي خپل ځان ته تباهي راولي. د سند میران، که پخوا ښه نه پوهېدل، اوس پوه سول چي دوی د برټانیې د حکومت تر لاس لاندي دي او هسي تش په نوم حکومت ور پاته دی. دوی پوه سول چي هیڅ یې په وس پوره نه دي او که یې پخوا یو څه په زړه کي درلودل نو هغه خیالونه یې هم پرېښودل. کې لومړی جلد ص ص ۳۸۷-۸۸

د بنګال پوځ، چي د ډسمبر پر لسمه یې حرکت را وکړ نهه زره پنځه سوه عسکر او اته دېرش زره نوکران ورسره وه او مالونه یې پر دېرشو زرو اوښانو بار کړي وه.

د (۱۸۳۹م.) کال د مارچ پر یودېرشمه، چي د انګرېزانو لښکر د کوږک تر غره را اوښتی وو، سردار رحمدل خان د کندهار د سردارانو په استازیتوب، مکناټن ته احوال استولی وو او پوښتنه یې کړې وه چي که دی او د ده ورونه تسلیمېږي نو شرایط به څه وي. مکناټن د جنرال کین په مشوره، په جواب کي ورته وویل چي د کندهار سرداران لا څوک دي چي د برټانیې له کنټرول څخه مستقل

وجود ولري. رحمدل خان په عين وخت کي احوال ورکړی وو چي که چيري پنځه لکه روپۍ ورکړي نو د انګرېزانو خدمت ته حاضر دی او که د دوی په مقابل کي هر چا ښورښ وکړ دی به يې ورته وځپي. مکناټن په جواب کي ورته وليکل چي که ته او ستا ورونه د کندهار قانوني حکومت او د هغه صاحب ته بې قيد او شرطه تسليم سې نو زه ستاسي د سلامتی ذمه وهم او ګورنر جنرال به تاسي په ډېر عزت ومني او ستاسي د اوسېدلو له پاره به ځای هم درته وټاکي؛ خو تنخوا به مو په کال کي تر يو لک روپۍ زياته نه وي. مکناټن زياته کړه چي تاسي بايد سمدستي تسليم سی، ځکه چي پوځ کندهار ته در روان دی او د عواقبو مسووليت به ستاسي ورونو په غاړه وي. د انګرېزانو خبر ليکونکی محمد طاهر ليکي چي ما په خپله د انګرېزانو په مقابل کي د يوه عمومي تحريک د وجود احساس وکړ مګر که دغو دريو ورونو ته يو څه اطمينان ورکړه سي نو کندهار به ټول انګرېزانو ته تسليم سي او يو ډز به هم ونه سي. مګر دوی به د کندهار له حکومت سره کار نه کوي او په کال کي به په درې لکه روپيو راضي وي. مِهرا ص ۷۹.

## کندهار

د انګرېزانو پوځونه لا د کوږک له غره څخه را اوښتي نه وه چي د کندهار ښار ته د شاه شجاع سره د انګرېزانو د پوځونو د ملګري کېدلو او پر افغانستان باندي د حملې کولو رپوټونه خپاره سوي وه. کله چي رحمدل خان وويل چي که شاه شجاع د دوی سلامتي تضمين کړي نو دوی د شاه شجاع خدمت کولو ته حاضر دي؛ ملايان ډېر په غوسه سول او د شاه شجاع او د هغه سره ملګرو انګرېزي پوځيانو پر ضد يې د خلکو مذهبي احساسات را وپارول. مکناټن داسي تبليغ کاوه چي په کندهار کي به له وسلو څخه کار نه اخلي. هغه کتاب ص ۶۲.

د مکناټن او شاه شجاع له پوځ سره يو ملګری هندو احوالدار وايي چي کله پوځ کندهار ته داخل سو، او شاه شجاع پر تخت کښېناست نو خلک ډېر ورته خوشاله وه. د شاه پوځ د سرکار له پوځونو څخه مخکي ښار ته ننه ووت او خلکو د خوښی جشنونه وکړل. په لومړي سر کي خلک د هغه په ستنېدلو خوښ ول مګر وروسته ټولو په زړونو کي نفرت ورڅخه کاوه او د سرکار د پوځ له ويري يې څه نه ويل. د ښار مشران له دې امله ډېر خواشيني ول چي شاه شجاع له خارجي پوځونو

سره ښار ته ننوتلی دی. دوی ویل چي شاه شجاع زموږ د وطن لار انګرېزانو ته وښودله او دوی به ډېر ژر د دوی وطن ورڅخه ونیسي. انګرېزان به د دوی وطن د هندوستان په شان ونیسي او خپل منفور قوانین به پکښې جاري کړي. دوی له دغه امله په غوسه وه. دوی ویل چي که شاه له خپلو پوځیانو سره وطن ته راغلی وای نو خبره به ښځي سمه وای. سیتا رام ص ۹۱.

پوځ له فیروز پور څخه تر کندهار پوري له چنداني مقاومت سره مخامخ نه سو. خو ټوله لاره یې په دښتونو، غرونو او درو کي ووهله. ډېر زیات هغه کسان چي له کمپ سره د کاروبار له پاره ملګري سوي ول په لاره کي د لوږو، تندو او ناروغیو له لاسه مړه سول. ویل کیږي چي د دغو مړو شمېر زرهاوو ته رسېدی. څه باندي اووه سوه آسونه تلف سول، اکثر غوایي مړه سول او اوښان خو چنداني ژوندي کندهار ته ونه رسېدل. والر ص ۱۴۵.

هینري ډیورنډ د مشهور مارټیمر ډیورنډ پلار، چي له شاه شجاع سره په ملګري پوځ کي یې د یوه صاحب منصب په حیث برخه درلوده، لیکي: کله چي شاه شجاع له کوږک څخه تېر سو نو پر کندهار باندي یې هغه پخوانی یرغل، چي ماته یې پکښي خوړلې وه، په یاد وو او زړه یې سخت درېږدی. هر آواز ته به یې غوږونه څک سول او له چا څخه یې خپله وېره او وسواس پټولای هم نه سو. د ده وېره هغه وخت کراره سوه چي حاجي خان کاکړ له خپلو سړیو سره ورسره ملګری سو او ده ته یې اطمینان ورکړ چي سرداران له کندهاره تښتېدلي دي او جنګ نه کیږي. شاه شجاع یوه ورځ له انګرېزي پوځ څخه مخکي کندهار ته داخل سو. مشرانو یې ځکه سوږ هرکلی وکړ چي هغوی وضع ته کتل چي لومړی شاه شجاع او وروسته انګرېزان له دوی سره څه ډول سلوک غوره کوي. که څه هم چي تښتېدلو سردارانو په خلکو کي چنداني محبوبیت نه درلود مګر شاه شجاع د خارجیانو د نېزو او توپکو په زور راغلی وو او دا داسي یوه قوم ته چي له خپلواکۍ سره په هغه اندازه مینه لري لکه د خارجیانو له غلامۍ څخه چي نفرت لري، د منلو خبره نه وه. دوی ولیدل چي هغه شاه شجاع چي مخکي په خورا بې آبي له کندهاره تښتېدلی وو دا ځل تر هغه لا په بې عزته ډول د خارجیانو په لاس کي د یوه ګوډاګي په شکل داخلیږي. ډیورنډ ص ۱۵۶.

مؤرخ سرجان کې، د شاه شجاع او انګرېزانو د لښکرو د لومړي بریالیتوب علت بیا هم د افغانستان د سردارانو او نورو قواوو بې اتفاقي بولي. دی وایي که دوست محمدخان او د کندهار سردارانو لاسونه سره یو کړي او یو له بل سره یې دښمني نه پاللای. د خارجي قواوو په مقابل کي یې جهاد اعلان کړی وای او د قلات له محراب خان څخه یې د یرغلګرو پر ضد مرسته غوښتې وای او

په یوه زړه او یوه خوله یې مقاومت کړی وای. دوی به د بولان او کوږک په درو او کوتلونو کې د خارجي پوځونو مخه بنده کړې وای. دوی ښايي د عملیاتو په پیل کې زموږ له قحطۍ او لوږې ځپلي پوځ سره ښه جګړه کړې وای او دا سې تلفات به یې را اړولي وای چې موږ به ژر بیرته حال ته نه وای راغلي. خو لکه چې د قسمت داسې خوښه وه چې زموږ دښمنان یې په هغه وخت کې فلج کړل خو همدغه قسمت موږ تر دې لویو خطرونو ته برابر کړو چې که د عملیاتو په سر کې ورسره مخامخ سوي وای ښايي دونه تاوان مو نه وای لیدلی. کې ص ص- ۴۳۸-۴۳۹.



په کوږک کې انګرېزي لښکر د یرغل پر مهال

د انګرېزانو پوځ په کندهار کې دوې میاشتې پاته سو. په کندهار کې د ګرمۍ په وجه په عسکري کمپ کې د راز راز ناورغیو له لاسه ډېر زیات عسکر مړه سول. د مکناټن خزانه تشه سوه، ځکه چې ده په لومړیو شپو ورځو کې په ډېر خلاص لاس پیسې ووېشلې او چې هر څه پیسې یې وېشلې خلکو نوري او زیاتي غوښتلې. مکناټن له صرافانو او سوداګرو څخه پور ته اړ سو خو پور هم چا نه ورکاوه. پر پوځ باندي د بلوڅانو حملې یوه بله لویه ستونزه وه. دغه یاغي بلوڅان، چې زیاتره د هیچا تر امر نه وه لاندي، د بولان له درو او د بلوچستان له دښتونو څخه د انګرېزانو له پوځ سره ملګري

ول او تر کندهار پورې يې خپلو حملو ته دوام ورکړی وو. د پوځ څخه يې غوايي او اوښان، چې پوځ تر هر څه زيات ضرورت ورته درلود، غلا کول او مالونه يې چورول. ځينو صاحب منصبانو، چې له کمپ څخه دباندې وتلو جرأت يې کړی وو، د خلکو د حملو مزه وڅکله. غلجيان، په خاصه توګه، نه د مکناټن په پيسو او نه د شاه شجاع په وعدو، خپل سول او له کندهار څخه نيولې بيا تر ښار دباندې يې خپلو حملو ته دوام ورکړ. شاه شجاع او انګرېزانو د پيسو تر شيندلو د وعدو شيندل زيات کړي وه، خو هفته به نه وه تېره سوې چې دوی به وعده خلاف سول. د انګرېزانو ستونزې ورځ تر بلې زياتېدلې. کې ص ص ۴۳۶-۴۳۷.

موهن لال د انګرېزانو وعده خلافي يو څه په تفصيل ذکروي او يو ځای وايي چې موږ څکه په خپلو ډيپلوماتيکو کوښښونو کې ناکامه کېدلو چې پر خپلو وعدو باندې د يوه لنډ وخت له پاره هم نه سوای درېدلای. خانانو او قومي مشرانو زموږ په وعدو اعتبار وکړ چې خپل هغه واکمنان يې، چې دوی يې کلونه په خدمت کې وه، پرېښودل خو موږ له هغوی سره خپلې وعدې ماتې کړې. له دوی سره هغه مکتوبونه ورسره وه چې موږ ورته ليکلي وه او د خدمت په بدل کې مو د انعامونو وعدې ورکړي وې؛ کله چې د کندهار سرداران وتښتېدل او موږ يې له خطره بې غمه سولو نو پر خپلو ټولو وعدو پښېمانه سولو. زموږ د وعده خلافيو مثالونه ډېر زيات دي او دا به ډېره ګرانه وي چې پر يوه ځای ټولو ته اشاره وکړو. زه به هره وعده خلافي پر خپل ځای بيان کړم. موهن لال دوهم جلد ص ۲۰۹.

بل ځای ليکي چې موږ د کندهار سردارانو کهندل خان، مهردل خان او رحمدل خان ته پيشنهاد وکړ چې په عزت به مو هندوستان ته ولېږو او هلته به تنخوا درته مقرره کړو. خو دوی څکه زموږ پيشنهادونه رد کړل چې پوهېدل چې زموږ په هيڅ قول اعتبار نه سته نو موږ يوې پوځي قطعې ته وويل چې دوی تر ګرشک پورې تعقيب کړي او ويې نيسي. موږ په دې کار کې هم ناکام سولو. موږ په هر عمل کې څکه ناکامه کېدلو چې لکه هره وعده چې مو قصداً ماتوله دغه راز مو خپل هر کار په لوی لاس خراباوه.

له دغه وخته څخه بيا د جون تر مياشتې پورې، چې پوځ په کندهار کې وو، موږ خانانو او قومي مشرانو ته ليکونه لېږل. هغوی ته مو بلنه ورکول چې شاه شجاع ته بيعت وکړي او د راز راز انعامونو وعدې مو ورسره کولې خو يوه مو هم پوره نه کړه. هغه کتاب ص ۲۱۲

په هغه اندازه چې پر افغانستان باندې د انګرېزانو يرغل غيرعادلانه، ظالمانه او بې دليله وو، په هغه

اندازه يې د خپل لښکر سره داسي ساده او بې عقل سړی را لېږلی وو چي ښايي په هندوستان کي به يې د هغه په څېر لږ کسان درلودل. مکناټن هم په لس هاوو زره بېګناه افغانان د خپلو اشتباهاتو او سادګيو قرباني کړل او هم له خپلو قواوو سره د افغانانو د غضب په اور کي وسوځېدی.

هغه پر خپل انتخاب شاه شجاع باندي دونه مين وو چي په کندهار کي يې له هغه څخه د خپل قام ساړه هرکلي ته د خلکو د بې کچه ميني د اظهارولو په سترګه کتل او فکر يې کاوه چي په افغانستان کي به پر انګرېزي پوځونو باندي يو ډز هم ونه سي. هغه په کندهار کي په دوو مياشتو کي څه باندي درې ميليونه روپۍ په انعامونو او رشوتونو ولګولې خو دوه تنه ريښتوني طرفداران يې پيدا نه کړل، مګر بيا هم پر خپله خبره ټينګ ولاړ وو. مکناټن خپل انتخاب ته دونه خوشبين وو چي ويل يې فکر نه کوي له کندهاره تر کابل پوري به د دوی پر پوځ باندي يو ډز هم وسي؛ نو ځکه يې د پوځ سپه سالار سر جان کين ته پېشنهاد وکړ چي په کندهار کي پاته سي ځکه چي دی فکر نه کوي هيڅ ستونزه به ورته پېښه سي. نيژدې وو چي جان کين د مکناټن خبره منلې او په کندهار کي پاته سوی وای؛ خو د پوځ انجنير تامسن ورته وويل: چي که چيري کومه فاجعه پېښه سي نو په اينګلينډ کي به ټوله ملامتي د پوځ سپه سالار ته متوجه وي او فکر نه کوي څوک به ستاسي دا خبره ومني چي مکناټن په کندهار کي د پاته کېدلو سلا درکړې وه. سرجان کين هم د مکناټن د مشورې په خلاف له پوځ سره ملګری سو. ډيورنډ ص ص ۱۶۲-۱۶۳.

تجربې ثابته کړه چي مکناټن، د تل په څېر، پر غلطه وو او د افغانستان خلکو، په تېره بيا غلجي قبايلو، له قلات څخه تر کابله پوري د انګرېزانو يرغلګر پوځ په مرګانيو ډزو او حملو استقبال کړ. او دې ډزو تر هغه وخته پوري چي د انګرېزانو وروستی عسکر يې له خپلي خاوري ايستلی نه وو دوام ورکړ.

موهن لال وايي: کله چي موږ کابل ته روان سولو نو په لاره کي غلجي قومونه پراته ول او موږ د هغوی قومي مشرانو ته د روغي جوړې، خبرو او په بدل کي د انعامونو بلنه ورکړه، مګر هغوی دونه بې عقلان نه وه چي زموږ پر خبرو يې غوږ نيولای وای؛ ځکه چي په کندهار کي له خانانو او مشرانوسره زموږ په وعده خلافيو خبر سوي وه. غلجيانو خپلي کورنۍ غرونو ته پورته کړې او زموږ پر عسکري کاروان باندي يې غلچکي حملې کولې. موږ دوی ته په وسلو جواب ورکړ او د دوی په زړونو کي مو ډار واچاوه مګر بيا هيڅ وخت چا په موږ اعتماد ونه کړ او نه يې زموږ ليکلو وعدو

ته اعتبار ورکړ. کله چې موږ کلات ونیوی نو غلجیانو زموږ له ویرې افغانستان پرېښود او د سیکهانو سیمو ته وتښتېدل. مګر څرنګه چې سیکهان زموږ متحدین ول موږ له هغوی سره د مذاکراتو له لارې غلجې مشران بیرته لاس ته راوړل او په سزا مو ورسول. هغه کتاب ص ۲۲۰.

## محراب خان بلوڅ

انګرېزان افغانستان ته په لاره کې د محراب خان بلوڅ د واکمنۍ له سیمو څخه را تېر سول. هغه د یوه هوښیار مشر په حیث، چې د خپل قوم ګټې یې په نظر کې درلودلې او د انګرېزانو زور هم ورته معلوم وو، د انګرېزانو د استازي الیکزانډر برنس، چې د ګورنرجنرال له خوا د دغې سیمې او سند د سیاسي چارو د سمبالولو وظیفه ورکړه سوې وه، ډېر زیات عزت وکړ. په خپله برنس هم د هغه د هوښیارۍ صفت کوي او وایي چې خان هم سپېني او هم هوښیارې خبرې کولې. کله چې له محراب خان سره د شاه شجاع خبره یاده سوه نو هغه ورته وویل چې تاسې به شاه شجاع د افغانستان پر تخت کښېنوی، مګر د افغانانو ملګرتوب به تر لاسه نه کړی او په پای کې به ناکام سی. او وروسته یې لا دا هم ورسره زیاته کړه چې شاه شجاع یو نمک حرامه سړی دی چې زما نېکۍ یې ونه منلې د هیڅا به هم ونه مني. محراب خان برنس ته وویل چې که د دوی هدف د شاه شجاع پاچا کول او په قدرت کې ساتل وي نو دوی پر غلطه دي ځکه چې د افغانستان ټول خلک له هغه څخه ناراض دي. ده وویل چې افغانان ټول مسلمانان دي او دا به هیڅ وخت قبوله نه کړي چې د هغوی پاچا د فرنګیانو د پوځ په زور راغلی دی.

محراب خان وروسته هغو تاوانونو ته اشاره وکړه چې د ده په سیمو کې د انګرېزانو د پوځ د تېرېدلو په وخت کې ور پېښ سوي وه. ده وویل چې ستاسې پوځیانو زما په قلمرو کې د تېرېدلو په وخت کې ټول حاصلات تباه کړي دي؛ که څه هم چې دې خلکو هسې هم څنداني څه نه درلودل. هغه اوبه یې چې خلکو کښت او کرونده په کوله ضایع کړې او په دې وچکالۍ کې یې یو بل لوی تاوان اړولی دی. مګر ده وویل چې پر دې ټولو تاوانونو یې صبر کړی دی او خلک یې کرار کړي دي او هیله من دی چې د انګرېزانو او شاه شجاع حکومت به د دوی په حق کې عدالت وکړي.

برنس له خان سره یو تړون هم راوړی وو او هغه یې له خان سره د کتلو په سبا ورځ ور واستاوه. په تړون کې لومړۍ ماده دا وه چې محراب خان به د شاه شجاع حضور ته ورځي او محراب خان

ځکه دا نه سوای منلای چي هغه د انګرېزانو د پروژې په بریالیتوب چنداني باور نه درلود او له دي وېرېدی چي هسي نه انګرېزان به ناکامه سوي او ده به ځان ته دښمنان ډېر کړي وي. په دې تړون کي پر خان باندي د شاه شجاع برتري په ځرګنده ښکاره وه او محراب خان ته یې د کاله یونیم لک روپۍ مستمري مقرره کړې وه او دا شرط یې ورباندي ایښی وو چي خان به د ټولو هغو مالونو او موادو ساتنه کوي چي له شکارپور څخه د روزان، ډاډر، د بولان د درې او شال څخه تر کچلاک پوري له یوه سرحده تر بل پوري ځي او راځي. محراب خان دا تړون زړه نا زړه لاسلیک کړ، مګر هغه یې په هیڅ توګه خوښ نه وو. کې ص ص ۴۰۹-۴۱۱

له هغه لیک څخه چي مکناټن د باغ له کمپ څخه د مارچ پر نولسمه د ګورنر جنرال په نامه لېږلی دی ښکاري چي محراب خان تاریکه اینده په مخکي لري. له دې لیک څخه ځرګندېږي چي ستر قدرتونه د عدالت په کولو کي یوه بل ته ډېر ورته دي؛ څه چي یې پخوا کړي هغه یې پرون تکرار کړي او سبا به یې هم عدالت همدغه ایجابوي.



محراب خان بلوڅ

مکناټن د (۱۸۳۹م.) کال د مارچ پر نولسمه لیکي: "ماته څرګنده سوه چې د خان د حکومت مقامات له حده زیات خواشیني دي. زموږ دښمنان هغوی موږ ته لمسوي او دوی هم د شکایت کولو او نارضاییت د څرګندولو له پاره کافي دلایل لري. د هغوی کښتونه تباه سوي دي او هغه اوبه چې دوی د کښت او کروندې له پاره کار ورڅخه اخیستی زموږ پوځیانو یې مخ اړولی او په خپله کار ورڅخه اخلي. ښایي د دې بدو کارونو د زیاتره برخي مخ به را ګرځېدلای نه سوای مګر نه د دغو تاوانونو د مخنیوي له پاره چنداني اقدام سوی دی او نه هم د خلکو د بیرته راضي کولو او پخلا کولو له پاره ګام پورته سوی دی. په دې سیمه کي خلک هم زموږ له صاحب منصبانو او هم زموږ له عملیاتو څخه نفرت لري او زه وېرېږم چې سرالکیزانډر برنس به زموږ سره د کلات د خان د اړیکو او دوستۍ په باره کي په هسي بې ځایه آوازو وغولېږي او پر هغه باندي به تعرضي عملیات پیل کړي. دا چې دغه ډول اقدامات به موږ ته څه را پېښه کړي پېش بیني یې ګرانه ده. زه له سهاره تر ماښامه لګیا یم چې د نفوذ خاوندان، چې زموږ د عملیاتو په وجه ناراضه سوي دي، بیرته پخلا کړم. مګر هم خلکو ته د رسېدلو تاوانونو د جبرانولو او هم خانانو او مقاماتو ته د رشوتونو ورکولو له پاره باید ډېري زیاتي پیسې ولګولي سي. تاسي جلالتمآب باید باور ولری چې زه به د بیت المال یوه روپۍ بې ځایه ونه لګوم مګر په دې سیمه کي موږ بالکل د بلوڅانو په واک کي یو او چې څه یې خوښه وي هغه کوي. هغه بله ورځ د بلوڅانو مشران زموږ سره دښمنان ول. دوی په یوه ورځ ډېر زیات اولسونه راغونډولای سوای او زموږ کمپونه به یې په بشپړه توګه له منځه وړي وای. له پرون راهیسي د دوی سلوک ډېر بهتر سوی دی. دوی اوس زموږ وقف سوي نوکران دي او د کلات وزیر ژمنه وکړه چې سمدستي به واکمن ته مکتوب ولیکي او هغه ته به مشوره ورکړي چې پرته له قید او شرطه زموږ بشپړ ملاتړ وکړي او زموږ سره دوستي اعلان کړي. سرجان کین د ښارویو په سخت مشکل اخته دی او زه له هغه سره مرسته نه سم کولای؛ فکر کوم چې د بنګال د پوځ مقاماتو د ده په ستونزو کي ری نه دی وهلی... زه همدا نن له کمپ څخه بهر ووتلم او د خلکو کښت او کروندې ته رسېدلي تاوانونه مي وکتل. تاوان بې حده زیات دی. مګر کله چې زه خلکو ولیدلم او ما د هغوی شکایتونو ته غوږ ونیوی او د مرستي وعدې مي ورسره وکړې نو هغوی دونه خوشاله سول چې ما یې مخکي فکر نه سو کولای. د خلکو د نارضاییت بل لوی علت دا دی چې زموږ پوځیانو بې ګناه خلک او حتی بشپړي کورنۍ د غلو په نامه نیولي دي. زما چې څه په وس کي وه هغه مي کړي دي." هغه کتاب ص ص ۴۱۴-۴۱۵

چارلس مېسن په دغه وخت کي په سيمه کي وو او د محراب خان پر قلا باندي يې د انګرېزي پوځ د حملې کولو او د هغه د وژل کېدلو په باب ډېر زيات تحقيق کړی دی. هغه د کلات په نوم يو ځانګړی کتاب ليکلی او په هغه کي داسي نتيجه اخلي چي د کلات محراب خان د خپلو سلاکارانو او نيژدې کسانو محمد شريف، چي يو سيد وو او ملا حسن د دسيسو قرباني سو. د دغو دسيسو په باب تفصيل موږ له موضوع څخه ليري کوي خو لکه څرنګه چي مکناټن هم په خپل ليک کي اشاره ورته کړې ده، اليکزاندر برنس ته دغو دوو کسانو، چي خپل مطلبونه يې درلودل، شيطانتونه کول او بالاخره يې انګرېزان د هغه پر قلا باندي حملې کولو ته ولمسول او ده ته يې وويل چي بايد له خپل ځان او کلات څخه دفاع وکړي. محراب خان هم سنګر ونيوی او له خپلو ټولو ملګرو سره ووژل سو.



چارلېس مېسن

محراب خان، په سيمه کي يو له هغو مشرانو څخه وو چي پر افغانستان باندي د انګرېزانو په يرغل چنداني خواشينی نه وو او هغه يې د خپل قام په ګټه باله. ده فکر کاوه چي انګرېزان، به په دې

یرغل سره، دی د بارکزیو له حاکمیت څخه وژغوري. ده هیڅ فکر نه کاوه چي یوه ورځ به انګرېزان پر ده هم مخ را واړوي ځکه چي ده هغوی ته هیڅ تاوان نه وو رسولی او په خپله خاوره کي یې د بې غمه تېرېدلو اجازه ورکړې وه.

چارلس مېسن د محراب خان په باره کي لیکي: "...ماته خلکو اطمینان راکړ چي کله محراب خان په خپل قلمرو کي د برټانیې د پوځ له تېرېدلو څخه خبر سو نو دی ډېر خوشاله وو او ویلي یې وه چي که یې وزر لرلای نو له خوښۍ څخه به الوتی وای. په هغه وخت کي دی پر حق وو چي د برټانیې د پوځ هرکلی یې کاوه او دا یې فرض کړې وه چي د دې لښکرکښۍ څخه به ده ته کومي ګټي رسېږي. ده فکر وکړ چي نور به د هغو خطرونو څخه چي تل ورسره مخامخ وو، او له هغي وېري څخه چي د کندهار له سردارانو څخه یې درلوده په امان سي. دغه راز به د سند د میرانو له غمه څخه، چي دی همېشه ورڅخه اندېښمن وو، هم بې غمه سي. دی دغه راز په دې مطمئین سو چي په خپله سیمه کي به یې هم قدرت ټینګ سي. دی په دې خیال کي وو چي د ده د سیمي خانان او مشران به چي هر وخت یې د ده قدرت تهدیداوه او ده ته یې ستونزي پېښولې نور نو د ده تابع وي او له ده څخه به د بخښني او رحم غوښتنه کوي. ده په دغه خوشالي کي الیکزانډربرنس ته ولیکل چي د هغه لیدلو ته لېواله دی، مګر هغه ته یې دا هم لیکلي وه چي لیفټیننټ لیچ دي په دغه مجلس کي نه وي ځکه چي له هغه څخه ښه خاطره نه لري. مېسن کلات ص ص ۹۵-۹۶

شاه شجاع د اګسټ پر اتمه د کابل پر تخت کښېناست او په هغه ورځ یې، د کندهار او کابل تر منځ د اوسېدونکو، غلجیانود ښورښ د ځپلو تر څنګ د محراب خان د نسکورولو فرمان هم صادر کړ. جنرال ویلشایر ته یې وظیفه ورکړه چي محراب خان باید د هغه د سرکښیو او د انګرېزانو سره د مخالفت کولو او د هغوی پر پوځونو او کاروانونو باندي د حملو له امله له منځه یووړل سي. سټوک ویلر ص ۴۷

جنرال شایر له منظمو پوځونو سره د اکتوبر د میاشتي په نیمایي کي د قلات شاوخوا ته ورسېدی. محراب خان له انګرېزانو سره هیڅ دښمني نه درلوده او له هغوی سره دښمنی کولو ته د دسیسو په زور راکش سوی وو. خو کله چي خبر سو چي انګرېزان د هغه پر قلا باندي یرغل کولو ته تیاری کوي نو وې ویل چي تر وروستي سړي پوري به مقاومت کوي. د جنرال شایر له وینا سره سم د محراب خان قلا د غزني د قلا په څېر ټینګه او پراخه وه خو د انګرېزانو توپخانې او وسلو ته ټینګېدلای نه سوای. محراب خان او د هغه ملګرو قومي مشرانو او پوځیانو کری ورځ مقاومت وکړ

او د ماپښین په خوا کې قلا فتح سوه. د تلفاتو د دقیق شمېر په باب منابع چوپ دي خو جنرال شایر وایي د محراب خان په دغه پوځي مرکز یا قوماندانۍ کې څه باندې دوه زره عسکر موجود ول او انتظار کېدی چې د زوی کمکي قواوې هم ورته را ورسېږي. له جنګ څخه وروسته، جنرال شایر د څو سوو بندیانو خبره کوي نو د دې معنی دا ده چې باید د تلفاتو شمېر لږ تر لږه تر زرو زیات وي. په خپله جنرال شایر هم په خپل لیک کې خپلو پوځیانو ته د سختو تلفاتو رسېدلو له امله خواشینی دی او وایي چې دواړو خواوو ته درانه تلفات ورسېدل؛ خو وایي چې د تلفاتو دقیق شمېر ورته معلوم نه دی. په دې جنګ کې د محراب خان په شمول شپږ تنه مهم قومي مشران چې د براهوي قوم د بېلو بېلو قبایلو د لښکرو مشرتوب یې کاوه ووژل سول. هغه کتاب ص ۵۰

داچې انګرېزانو به کلات او محراب خان ته، له لومړي سره څه پلان درلود سړی څه نه سي ویلای خو محراب خان یې چې ښایي انګلیسیانو ته یې هیڅ تاوان نه وای رسولی او لا ښایي هغوی ته ګټور ثابت سوی وای، په ډېر بېرحمانه شکل له منځه یووړ. د محراب خان له وژلو او د هغه د قلا له تباه کولو څخه وروسته یې د کلات د ښار د چورولو حکم وکړ. په ښار او شاوخوا کې اووه ورځې چور او تالان روان وو. چور کوونکو ته دوولس لکه روپۍ، جواهرات، قېمتي شیان، توري، توپکونه ، آسونه او وسلې او هر څه په لاس ورغلل. اووه ورځې وروسته یې په ښار کې امان اعلان کړ او د ښار د خلکو په راضي کولو او دلاسا کولو یې بنا وکړه. د محراب خان وراره شهنواز خان براهوي ته یې قلات وسپاره او خپل یو انګرېز صاحب منصب یې ورسره مقرر کړ. عطامحمد ص ۱۲۸

په خپله یو انګرېز منصبدار او مؤرخ دې حملې ته په کرکه ګوري او وایي چې برتانیې د قلات پر یوه شریف خان باندې په حملې کولو او د هغه په وژلو سره جنایت وکړ. دوی د هغه پر ځای باندې خپل یو ګوډاګی مقرر کړ او د هغه زوی یې د قلات د خانۍ له حق څخه محروم کړ او وروسته یې ډېر ژر د خپل جنایت ثمره ولیدله.

د برتانیې د دې عمل نتیجه د دوی په تاوان تمامه سوه او مجبور سول چې د خپل جنایت کفاره ورکړي. انګرېزان مجبور سول چې د خپل ګوډاګي له ملاتړ څخه لاس واخلي او د قلات خانۍ بیرته د محراب خان زوی ته وسپاري. انګرېزانو ولیدل چې څرنګه بلوڅان را پورته سول او په قلات کې یې د دوی استازي ووژل او انګرېزان مجبور سول چې د هغوی د کړاوولو له پاره له کندهار څخه قوه ور ولېږي. ملیسن ص ص ۳۹۶-۳۹۷

ملیسن وایي: انګرېزانو د قلات پر خان محراب خان باندي له دې امله حمله وکړه چي ګواکي هغه سرکښي کړې وه؛ په داسي حال کي چي هغه یو ریښتوني سړی وو او پرته له دې چي زموږ د پوځ سلوک یې په سپینو خبرو غندلی وو بله هیڅ ګناه یې نه وه کړې. هغه کتاب ص ۳۸۶

## د شاه شجاع دوهم ځل پاچهي

هغسي چي انګرېزانو ته د افغانستان په باب غلط معلومات رسېدلي وه او هغوی ته یې د افغانستان نیول آسان ښودلي وه او انګرېزانو په دې رپوټونو د باور کولو حق هم درلود؛ ځکه چي په افریقا او اسیا کي یې تر شل ډېر هیوادونه لاندي کړي او اېل کړي ول. افغانستان به چي د دوی په نظر له خاورو او خټو جوړ سوی کمزوری هیواد وو، خو دوی ته یې ستراتیژیک او تجارتي اهمیت درلود او روسانو او ایرانیانو سترګي ورته خړې کړي وې، ولي له دې نورو هیوادونو سره توپیر ولري او ځرنګه به د دوی د وسلو، منظمو پوځونو او طلاوو په مقابل کي ټینګېږي. دغسي شاه شجاع هم ښایي یا ځان په خپله غولولی او یا د قدرت نشې سترګي ور پټي کړي وې، چي د سیکهانو او انګرېزانو د ټولو توهینوونکو شرایطو سره سره یې د کابل تخت قبول کړ. که هغه پوهېدلای چي حالات به دونه د ده د انتظار په خلاف وي ښایي نیت به یې تغییر کړی وای.

شاه شجاع د (۱۸۳۹م.) کال د اپرېل پر شپږویشتمه پرته له جنګه په کندهار ننووت. له ده سره مکناټن پر څنګ روان وو. په کندهار کي پر تخت کښېناست او د ښار خلکو یې ډېر سوړ هرکلی وکړ. دا ډېره مهمه وه چي د کندهار خلکو دونه مهمي پېښي ته په دونه بې تفاوتي کتل. د انګرېزانو صاحب منصب هیولاک په دې خوشاله وو چي که د شاه شجاع سوړ هرکلی وسو نو لږ تر لږه جنګ خو ونه سو. په ښار کي کراري ده او د ښار خلکو پر چا ډزي ونه کړې. ریچرډز ص ۱۵

که د هغو کسانو رپوټونه چي له پوځ سره ملګري ول وګورو نو داسي ښکاري چي د انګرېزانو پوځ پر دې عملیاتو باندي له سره حساب نه وو کړی. دوی فکر نه کاوه چي په دې هیواد کي به له مقاومته سره مخامخ کیږي، کنه نو له دریو زرو اوښانو څخه، چي له پوځ سره ملګري ول شپېته اوښه به یوازي د یوه جنرال په سامانونو بار نه وای. همدغه جنرال له ځان سره څلوېښت تنه نوکران اخیستي وه. او د ډېرو زیاتو صاحب منصبانو فکرونه له دې امله خراب وه چي ولي یې ښه ډېر عطرونه او کلونیاوي ورسره راوړې نه دي او ولي یې د ښکار تازیان ورسره رانه وستل. هغه کتاب ص ۱۲

خو د بمبي د فرقې قوماندان تورن جنرال سر ویلیم ناټ چې له لومړي سره د کندهار د پوځونو قوماندانۍ او د هغې سیمې اداره ور وسپارله سوه او د افغان او انګلیس د جنګ له ختمېدلو او د انګرېز د پوځ د تباه کېدلو څخه وروسته یې په انتقامي عملیاتو کې عمده رول ولوباوه، د کندهار د آرامۍ په برخه کې بل نظر درلود. جنرال ناټ یوه ملګري ته ولیکل زه فکر کوم چې د افغانستان خلک به خپل هیواد له جنګه پرته تسلیم نه کړي. ځوان صاحب منصب نیویل چمبرلین په هغو شپو ورځو کې له کندهار څخه خپلې مور ته لیکلي وه چې که سړی له کمپ څخه یو میل لیرې ځي نو باید چې زغره یې اغوستې او توپک ورسره وي کنه نو د وژل کېدلو خطر به مني. هغه کتاب ص ۱۵

ویل کیږي چې مکناټن ډېر مغرور، خود خواه او ضمناً ډېر لایق سړی وو. په فارسي، هندي او پنجابي ژبو یې تر انګرېزي هم رواني خبرې کولې خو د افغانستان د تاریخ او خلکو په باب یې تقریباً هیڅ معلومات نه درلودل. همدغه سړی د ګورنرجنرال لارډ آکلینډ سکرتر وو، چې د افغانستان په باره کې تر مکناټن هم بې خبره وو او د افغانستان په باب هره موضوع کې مکناټن د هغه پر فیصله باندې بشپړه اغېزه درلوده. مکناټن کندهار ته د رسېدلو او د شاه شجاع څخه د خلکو د هرکلي کولو په باب خپل نظر او رپوټ لارډ آکلینډ ته ولیکی او یو ځل بیا یې هغه ساده سړی چې په ده یې بشپړ اعتماد کړی وو وغولاوه. مکناټن لیکي:

"مورږ، زه فکر کوم، له هره اړخه نېکمرغه یو. شاه نن سهار په ډېر شان او شوکت ښار ته داخل سو او خلکو یې د ستایلو او مینې د ښودلو تر سرحده تود هرکلی وکړ. زه به وروسته په دې باره کې رسمي رپوټ درکړم. ما څو ځله د خلکو قهر او غوسه هم لیدلې ده، چې چاره یې کېدلای سي. زه فکر کوم چې له خلکو سره د ښه سلوک له لارې به د هغوی غضب کرار کړای سو. ډېر شیان دي چې کشکي مي رپوټ درکړی وای خو دا ګړی فرصت نه لرم. تاسي جلالتمآب له دې خبرې څخه قضاوت کولای سی چې زه دا درې ورځې بهر ته وځم او د ماپښین تر دریو بجو پورې د سبا ناري کولو وخت نه سم پیدا کولای. زه فکر کوم چې دا به له هره اړخه د خلکو په ګټه وي چې په کابل کې د شاه شجاع د قدرت له اشغالولو څخه وروسته زه د پنجاب له لارې سیملې ته ولاړ سم او له رنجیټ سینګهـ سره وګورم او هغه ته د دې ټول جریان په باب معلومات ورکوم او ګونډي د تړون د یوې یا دوو مادو په تعدیلولو یې راضي کړم. ما تر اوسه پورې له اعلیحضرت سره د نوي تړون په باب خبرې کړې دي مګر خبرې مي په دونه لومړنۍ مرحله کې دي چې زه یې تفصیل نه سم درکولای. زه په یوه شي متیقین یم چې مورږ باید دې ته تیار و اوسو چې افغانستان ډېر کلونه کار ته

ضرورت لري او په ډېر وخت کي به څه ورڅخه تر لاسه نه سي او د بیا اباديدلو له پاره ډېرو لګښتونو ته اړتیا لري. اعلیحضرت تر اوسه پوري لا صدراعظم نه دی ټاکلی او زه نه پوهېږم چي د هغه د حکومت شکل به څرنګه وي. د ده نوي طرفداران ټول د مقامونو وږي دي او هر یو مشر یو څه غواړي. ماته په خپله اعلیحضرت وویل: چي خدای تعالی دا دنیا په شپږو ورځو کي جوړه کړه؛ دوی ما غوندي عاجز بنده ته د خپلي پاچهۍ د مسایلو د حلولو له پاره په دغه اندازه وخت هم نه راکوي. زه خوښ یم چي تاسي جلالتمآب ته اطمینان درکوم چي خلک د برتانیې د صاحب منصبانو په مقابل کي ډېر نېک احساسات لري او زه په بشپړ اطمینان ویلای سم چي هیڅ داسي پېښه به منځ ته رانه سي چي زموږ د خوښۍ ورځي دي غمجني کړي. کله چي دوست محمد ته خبر ورسېږي چي په کندهار کي د شاه شجاع څومره تود هرکلی وسو؛ زه فکر نه کوم چي هغه به د خپلو ورونو په څېر ډېر ژر میدان خوشي کړي او حتماً به یو څه مقاومت وکړي. ماته اطلاع رسېدلې ده چي سردارانو له کندهار څخه د وتلو په وخت کي زما پیلان ورسره تښتولي دي او د هیلمند له ژور سیند څخه یې د خپلو ښځو او ماشومانو په تېرولو کي کار ورڅخه اخیستی دی. موږ په هرات کي د خپل سفارت څخه خبر نه دی تر لاسه کړی. که زه له کابل څخه سیملې ته ولاړم نو برنس ته به وظیفه ورکړم چي زما په کفالت په کابل کي کار وکړي او که زه بیرته راستون سوم نو دی به کندهار ته واستوم او هلته به یې د جګړن لیچ پر ځای مقرر کړم" کې ص ص ۲۲۳-۲۲۴

د ګورنرجنرال په عنوان د مکناټن له لیکونو او د هغه له شخصي لیکونو څخه ښکاري چي هغه ریشتیا هم په دې عقیده وو چي په افغانستان کي هر څه پر لار دي او په حقیقت کي ټولي ستونزي د سردارانو نظام منځ ته راوړي وې او خلکو له هغوی څخه شکایت درلود. ده په خپل یوه شخصي لیک کي لیکلي دي چي سردارانو پر ښار باندي داسي سخت کنټرول وضع کړی وو چي د هغوی له اجازې پرته چا یوه ټوټه د پسه غوښي خرڅولای نه سوای. دی وایي سردارانو پر هر څه باندي ډېر لوړ او ظالمانه مالیات لګولي وه او لا یې څو ډوله نور مالیات هم اخیستل. موږ به اوس دغه ټول مالیات خلکو ته معاف کړو. ده په دې لیک کي دغه راز ویلي دي چي د محراب خان د قلمرو یوه برخه به شاه شجاع ته ورکړي ځکه چي محراب خان باید له انګرېزانو سره د دښمنۍ کولو سزا وویني. مهرا ص ۱۰۹

له دې لیک څخه معلومېږي چي انګرېزانو له ډېري پخوا څخه د محراب خان د نسکورولو او له منځه وړلو خیال درلود. دا چي له کومه وخته یې ورته سنجولې وه، موږ اطلاع نه لرو خو د مېسن له

کتاب څخه په ډاګه ښکاري چي هغه انګرېزانو ته په هيڅ توګه تاوان نه وو رسولی او هيڅ ډول دښمني يې نه وه ورسره کړې.

په دغه حال کي چي د مکناټن د ادعاوو په خلاف په کندهار او شاخوا کي د برتانوي عسکرو په مقابل کي د نفرت اور بل سوی وو، يوه بدمرغه پېښه چي په هيڅ ډول شرايطو کي د منلو وړ نه وه منځ ته راغله. د ښار د خانانو او اشرافو د يوې کورنۍ يوه پېغله نجلۍ بهر ته وتلې او يوه انګرېز صاحب منصب په زور يوه نيژدې کارېز ته وړې او په زور يې بې عزته کړې وه. د هغې په چيغو او نارو خلک خبر سول او د نجلۍ کورنۍ ته يې خبر ورکړ. د ښار مشران او سيدان سره راټول سول او د شاه دربار ته يې عرض وکړ. پاچا او انګرېز صاحب منصبانو له خلکو څخه عذر وغوښتی او په ښار کي يې وضع کراره کړه. د ښار خلک نور هم په دې پوه سول چي شاه شجاع هسي په نامه پاچا دی. اصلي قدرت له انګرېزانو څخه دی. هغوی فکر وکړ چي د انګرېزانو د راتګ په سر کي دا حال دی نو وروسته خو به تر دې هم ناوړې پېښېږي. حاجي خان کاکړ او حاجي دوست محمدخان اسحق زی چي د کندهار له سردارانو څخه بېل سوي او له شاه شجاع سره يو ځای سوي وه، د دې پېښي له امله سخت خواشيني سول. البته حاجي خان کاکړ يوازي د هغې نجلۍ د عفت د لوټېدلو له امله نه بلکي له دې امله هم خپه وو چي ولي يې ده ته د وزارت مقام ور نه کړ. هراتي ص ۱۱۷

دې خبرې ته انګرېز خبر ليکونکی هم اشاره کوي او وايي چي حاجي خان کاکړ ته په لومړي سر کي د شاه په دربار کي لومړی مقام او د نصيرالدوله لقب ورکړه سو. حاجي خان او حاجي دوست محمد او يو څو تنه کوچني خانان او قومي مشران د کابل پر لور د لښکر د حرکت کولو په وخت کي يو څه شاته پاته سول او د غزني د فتح کېدلو نتيجې ته منتظر ول. د دوی دغه حرکت خيانت وګڼل سو او موږ پرته له دې چي دوی ته د هغوی خيانت په ګوته کړو د هغوی په دام کي اچولو پلان مو وتاړه. زموږ سياسي نظريات او له خلکو سره عادلانه سلوک په دغه توګه وو. موهن لال ص ۲۱۴

د انګرېزي منابعو په شمول، تقريباً ټول تاريخي متون وايي: چي په کندهار کي د شاه شجاع سوړ هرکلی وسو. دا خبره د کندهار له مشرانو او دراني خانانو څخه پټه نه سوای پاته کېدلای چي شاه شجاع د انګرېزي پوځ په زور راغلی او قدرت ته رسېدلی دی. د کندهار دراني خانان که د

کندهاري سردارانو له ظالمانه حکومت څخه هر څونه په عذاب ول د انګرېزانو په وسیله یې د هغوی نسکورېدل نه غوښتل او په وطن کې یې د انګرېزانو مستقیمه واکمني د خپلو ټولو مذهبي اصولو مخالفه ګڼله. دغه علت وو چې له حاجي خان کاکړ سره ملګرو درانیو خانانو، حاجي دوست محمد خان اسحق زي، محمدتقي خان او نورالدین خان بامیزایي او نور دراني خانان د سفر د سامان د برابرولو په پلمه په کندهار کې پاته سول او څو ورځې وروسته یې په پوځ پسې حرکت وکړ. د شاه شجاع او د انګرېزي پوځ سره له لومړۍ ورځې د هغوی د شاته پاته کېدلو په برخه کې اندېښنه موجوده وه او شاه شجاع ته په یقین سره دا معلومه سوه چې پر دوی باندې د دوست محمدخان هغه تبلیغ اثر کړی دی چې وایي پاچا ته یوازې نوم ور پاته دی او قدرت د نصارا په لاس کې دی. هراتي ص ۱۱۸

## غزني او شاوخوا

انګرېزان د بلوڅو د هوښیار مشر محراب خان او د انګرېزانو د جنرال ناټ له پېش بیني سره سم له لومړیو ورځو چا پر کراره پرې نه ښودل. له کندهار څخه تر کابل په تېره بیا له قلاته تر غزني پوري غلجیو قبایلو چې د انګرېزانو په وعدو یې هیڅ وخت باور ونه کړ، د انګرېزانو پر پوځونو باندې لویې او وړې حملې وکړې. یو ځل خو د غزني په شاوخوا کې، د مهتر موسی په مشری څه باندې دوولس زره کسان را ټول سول او د لښکر پر دواړو خواوو او د لښکر پر وروستیو افرادو او له کمپ سره پر ملګرو کاروباریانو باندې یې حملې پیل کړې. شاه شجاع ټولو هغو کسانو ته چې یا یې د کوم غازي سر راوړی او یا یې بندي راوستلی وي اشرفی ورکولې. یوه ورځ خو یې اتیا تنه بندیان ورته راوستل او د شاه شجاع په حضور کې یې سرونه ورڅخه پرې کړل. هغه کتاب ص ۱۱۹

سرجان کې د دې قتل عام په باره کې لیکي: "دا کیسه ډېره دردوونکې ده. کله چې دا بندیان د شاه حضور ته راوستل سول نو هغوی په لوړ آواز ده ته بد رد وویل او یوه یې، چې تر نورو ډېر په جوش کې وو، د پاچا یو نوکر په چاړه وواهه. پاچا له دغه امله د ټولو د وژلو حکم وکړ.

شاه امر وکړ چې سرونه ورڅخه پرې کړئ او د ده جلادانو په خپل ټول وحشت د ده له امر سره سم کار وکړ. جلادانو په ډېره سړه سینه او منتهی بې پروایي ټول بندیان یو په یو ووژل، تر څو چې ټول ختم سول او ټوټې ټوټې بدنونه یې په وینو رنګ مځکه باندې ولوېدل. مکناټن لږ مخکې د شاه

شجاع په شخصیت کي د هغه د زړه سوي یادونه کړې وه. د شاه شجاع زړه سواندي یوازي د مکناټن په مکتوبونو کي وه بل ځای یې درک نه وو. د ده د زړه سواندی د اثبات له پاره یوازي د دغي صحنې یادول کافي دي. دا یو بد مرغه او تاریک پیل وو. شاه له لودیانې څخه تر دغه ځایه پوري راغلی او له هیڅ دښمن سره مخامخ سوی نه وو. او اوس چي لومړني وسله وال، چي له ده سره یې مقاومت کاوه، د ده په مخ کي ودرول سول نو زړه سواندي پاچا هغوی په ټوله بېرحمي قصابي کړل. دا عمل چي څومره غیر سیاسي وو په هغه اندازه غیر منصفانه وو او همدغه عمل د انتقام ورځ ورسره راوستله. د دغو کسانو شهادت هیڅ وخت هېر نه سو. بالاخره د حساب ورځ را ورسېدله او کله چي زموږ نامقدسه پالیسي په وینو او ایرو کي ډوبه سوه نو په جنازه پسي یې د ساندو پر ځای د غازي ناره پورته سوه." کې ص ص ۴۴۴-۴۴۵

له دې جنایت څخه د شاه شجاع لاسونه هیڅوک نه سي مینځلای. هغه په ډېره بې پروایي، عصبانیت او تلوار د انسانانو د ژوند د اخیستلو فیصله وکړه؛ خو هغسي چي د برتانې لیکوالان او حتی د دغي خونړۍ او بدمرغي پېښي عیني شاهدان څرګندوني کوي او پر دې صحنه باندي اوښکي توېوي هغسي ساده هم نه ده. د دوی پوځي رهبران په دې قتل عام خبر ول او کولای یې سوای چي مخه یې ونیسي؛ مګر هیڅ اقدام یې ونه کړ او حتی دا پېښه یې یو ډول تشویق کړه او د دې خلکو قتلول یې د شاه شجاع خپل حق وباله.

په هغه وخت کي د بمبیي ټایمز د اخبار مسوول مدیر بوییسټ، چي خپل کتاب یې زیاتره د عیني شاهدانو د رپوټونو او مرکو په اساس لیکلی دی، د دې پېښي له یوه عیني شاهد، مېجر مک شیري سره، چي د انګریزي پوځ د عمومي قوماندان ډګرجنرال سرجان کین سکرټر وو مرکه کړې ده او هغه ورته ویلي دي:

"... د ماپښین په خواکي ماته یو رپوټ را ورسېدی چي د پاچا سړیو یو شمېر بندیان نیولي دي او دی غواړي چي ټول اعدام کړي. ما په هغه ګړي پېشنهاد وکړ چي که په دوی کي یو څه انتخاب وسي بهتره به وي ځکه چي ټول ښایي په یوه شان ګناهکار نه وي. ما سمدستي د سرالیکزانډر برنس له لاري د پوځ د عمومي قوماندان ډګرجنرال سرجان کین سره تماس ونیوی او د هغه د نظر غوښتنه مي وکړه. ډګرجنرال وویل چي پرېږده دغه ډول بې لاري بدماشان ټول اعدام او د نورو عبرت سي. ماته د اعلیحضرت له خوا د دې کسانو د اعدامولو په اړه پرله پسې رپوټونه را ورسېدل.

ما اعلیحضرت ته پیشنهاد وکړ چې که څه هم چې ستاسې اراده تر ټولو لوړه ده خو که ځینې په سزا ورسول سي او ځینې خوشې سي بهتره به وي. هغه کسان چې خوشې سوي وي خپلو خلکو ته به د دې سزا په باب معلومات ورکړي او هغوی ته به عبرت سي. اعلیحضرت، زما د ارزو په خلاف، زما مشوره ونه منله. له اته دېرشو کسانو څخه یې یوازې دوه تنه ژوندي پرېښودل. یوه زاری وکړې او بل هم سید وو. په دغسې شرایطو کې، ما نور هیڅ نه سوای کولای. زما دا وظیفه وه چې د پوځ مشر ته خبر ورکړم او ما خپله وظیفه بشپړه کړې وه. بوییسټ ص ص ۱۰۸-۱۰۹

## د غزني محاصره او نیول

ټول هغه کسان چې د غزني قلا یې په هغه وخت کې لیدلې او یاداشتونه یې لیکلي دي وایي چې دوی فکر نه کاوه په لاره کې به د داسې ټینګې قلا سره مخامخ سي. جنرال سرجان کین ایله پوه سو چې په حساب کې یې غلطي کړې او د قلا د ړنګولو وسایل او درانه توپونه یې په کندهار کې پرې اینبی دي. په هغو سپکو توپونو چې له دوی سره ورسره وه د دې قلا نیول غیر ممکن کار وو. که دوی دا قلا پرې اینښې او د کابل پر لور یې حرکت کړی وای نو بیا خو به یې قواوې د دوست محمدخان د دوو زامنو غلام حیدر خان او محمدافضل خان او په کابل کې په خپله د دوست محمدخان تر منځ راغلې وای او سخت تلفات به یې ورکړي وای. له غزني سره نیژدې د محمدافضل خان قواوې پرتې وې چې د سرجان کین په قول یې د حملې په صورت کې د انګرېزانو قواوو ته درانه تلفات رسولای سوای. ښایي افضل خان به پر قلا باندې د انګرېزانو حملې ته منتظر وو او بیا به یې غوښتل چې د شا له خوا پر انګرېزانو باندې حمله وکړي. محمدافضل خان له غلام حیدر خان څخه څو ځله غوښتنه وکړه چې قلا ته د ننوتلو اجازه ورکړي خو غلام حیدر خان اجازه نه وه ورکړې. ویل کیږي چې غلام حیدر خان نه غوښتل د غزني د قلا په جنګ کې، چې ده یقین درلود فتح به یې په نصیب سي، محمدافضل خان هم په افتخار کې ورسره شریک کړي. په دې باره کې هر ډول خبري او اټکلونه سوي دي خو د یوه نظر د اثباتولو له پاره هم اسناد او شواهد نه دي موجود خو دونه ویلای سو چې د امیر دوست محمدخان په زامنو کې محمدافضل خان د جنګ په میدانونو کې ډېر زیات ازمېیل سوی او تر اکبر خان په هیڅ توګه پاته نه وو. او په دې جنګ کې هم د هغه د بې زړه توب خبره نه سو کولای. محمدافضل خان د غزني په جنګ کې برخه وانه خیستله

او کله چې کابل ته ستون سو نوویل کېږي چې امیر له هغه سره ډېر وخت خبرې نه کولې.



د غزني بالاحصار ته انګرېزان د ننوتلو پر مهال

د غزني د قلا فتح کول د انګرېزانو په موجودو قواوو غیر ممکن کار وو. خو لکه څرنګه چې د دغه راز ټینګو او مستحکمو قلاوو سرنوشت په تاریخ کې، معمولاً د قلاګانو په دننه کې، د خاینانو د خیانت له داستان سره تړلی وي؛ د غزني د قلا ځخه هم د سردارعبدالرشید په نوم یو خاین په پټه را ووت او د انګرېزانو کمپ ته یې ځان ورساوه. انګرېزانو ته یې رپوټ ورکړ چې د غزني دریو دروازو ته پخې خښتې کار سوي او نړول یې ډېر ګران دي او یوازې د کابل دروازې ته چنداني خښتې نه دي وهل سوي او کېدلای سي له هغې لارې د غزني ښار ونیسي.

عبدالرشید خان د دوست محمدخان وراره وو او موهن لال څه باندې یو کال مخکې په کابل کې د خپل تجارتي ماموریت په وخت کې له هغه سره اشنا سوی وو. د غزني شاو خوا ته له رسېدلو سره سم یې هغه ته لیک ور واستاوه او د ښو امتیازاتو ژمنه یې ورسره وکړه. عبدالرشید خان هم ځان موهن لال ته ورساوه. هغه له مکناټن او مکناټن له جنرال سېل او انجنیر تامسن سره معرفي کړ. له هغه سره په ریشتیا هم داسې معلومات ورسره وه چې د غزني د ټینګې قلا په فتح کولو کې یې تر هر راز وسلې ښه کار وکړ. کې ص ۴۴۳

لارډ کین او مېجر تامسن له مکناټن څخه وغوښتل چې عبدالرشید خان ته د ټول ژوند له پاره مستمري تنخوا مقرره کړي. د هغه له پاره په میاشت کې پنځه سوه روپۍ مقرره سوې خو په خواشیني سره باید وویل سي چې دې مستمري تنخوا ډېر دوام ونه کړ. موهن لال ص ۲۳۲

د انګرېزي پوځ ځوان صاحب منصب نیویل چمبرلین د غزني د ښار د نیول کېدلو څخه وروسته ورځې په باره کې نسبتاً مفصل یاداشت لیکلی دی او وایي چې د ماپښین پر درېو بجو ډېزې بندې سوې او په سبا سهار زموږ له ټولې او له پنځه دېرشمې ټولې پرته نور ټول عسکر له ښاره وایستل سول. ځرنګه چې د هیڅ شي د اخیستلو اجازه نه وه نو تاسي تصور کولای سی چې په دروازه کې به څه شي هم پراته نه وه. توري، توپکونه، توپنچې، راز راز لباسونه، ورېښم، تمباکو، کشمش، هر ډول غلې دانې او چې څه پر خوله درځې هغه پراته وه او لا هغه کسان هم پراته ول چې د قلا څخه د دفاع کولو په وخت کې وژل سوي ول او خلک پکښې ختل او لوېدل. په دې مابین کې (۱۵۰۰) آسونه د ښار د نیول کېدلو سره خوشي سوي ول او یو عجیب حالت یې جوړ کړی وو. یوې خوا او بلې خوا ته یې ځغستل او لکه وړې سپې خولې یې سره اچولې. زه یې نه سم تشریح کولای چې په ښار کې به څه حال وو. په لارو کوڅو کې ګرځېدل خطرناک وه او یو څه وخت خو ټول انضباط ختم سو او هر چا هر څه کول. عسکرو د کورونو دروازې ماتولې او د چور له پاره په کورونو ننوتل او په دې ډول ډېر زیات عسکر څکه ووژل سول چې له خپلو ملګرو څخه لیرې تللي او ویشتل سوي ول. زه به ټول هغه ظالمانه کارونه چې په هغه ورځ وسول نه درته بیانوم ځکه چې ستاسي به له انسانیته نفرت وسي. خو زه دونه خوشاله یم چې ښځې او ماشومان چنداني نه دي وژل سوي او زه ځکه دې ته تعجب کوم چې هر څوک به کومې خوني ته ننووت نو لس دوولس ډزې به واورېدلې سوې او په دې لړ کې ډېر بې ګناه انسانان قتل سول. کله چې په ښار کې امان اعلان سو نو ټول خلک له کورونو څخه را ووتل او خپلې وسلې یې تسلیم کړې؛ اکثر خوشي سول مګر مشران یې توقیف سول. د دوست محمدخان زوی غلام حیدر خان، چې د غزني قوماندان وو، کپتان ټېلر له شپږو نورو کسانو سره، په یوه وړه خونه کې ونیوی. دی کمپ ته بوتلل سو او ویلیم مکناټن له هغه سره په ډېر احترام سلوک وکړ. دی اوس توقیف دی او احتمال لري چې بمبیې ته به واستول سي او باقي ژوند به هلته تېر کړي. دی د دوه ویشتو کالو دی. ډېر غټ دی او زما درې چنده وزن لري.

د جولای پر ځلېرویشتمه سهار د مړو د ښخولو کار پیل سو او په درېو لویو ارهډونو کې مو واچول. دې کار پوره دوې ورځې وخت ونیوی. زه بیان نه سم کولای چې ښار څومره له انسانانو

خالي وو. یو سا کښ نه لیده کېدی. د کوروونو دروازې ماتي سوي وې او کوروونه له هر څه خالي وه. موږ تر دوو سوو پوري آسونه ښخ کړل چي ځینو یې تر زرو روپیو پوري ارزښت درلودی. دغه راز مو له هره جنسه حیوانان ښخ کړل. فاریسټ ص ص ۴۶-۴۷

په غزني کي د دغه قتل او چور په جریان کي چي د دغه راز فتوحاتو سره تړلي وي، هیڅ کور او هیڅ دوکان له چور څخه خلاص نه سو. داسي کور نه وو چي په وینو نه وو رنګېدلی. له پنځو څخه تر شپږو سوو تنو پوري وژل سوي وه او ځینو صاحب منصبانو خو ویل چي تر زر تنه کم نه دي وژل سوي. د انګرېزانو تلفات یوازي اووه لس تنه وه. غلام حیدرخان د قلا په یوه برج کي پټ وو او کله چي د سالم پاته کېدلو ژمنه ورسره وسوه نو خپله توره یې تسلیم کړه. د هغه د کورنی ټول غړي د انګرېزانو په لاس کښېوتل. ډال ریمپل ص ص ۱۶۸-۱۶۹

غزنی ونیول سو او ډېر ژر په وینو کي ولمبېدی. کله چي یې غلام حیدرخان ونیوی او جنرال کین ته یې راووست، نو جنرال ډیر ښه سلوک ورسره وکړ. خو ده جنرال کین ته وویل چي دی د خپل وطن او خپل امیر له پاره جنګیږي. افغانانو برټانویانو ته هیڅ آزار نه دی رسولی نو تاسي څرنګه دې هیواد ته راغلي یاست او غواړی داسي پاچا پر تخت کښېنوی چي خپل خلک یې نفرت ورڅخه لري. که ته غواړې ما سمدستي وژلای سې او که مي پرېږدې نو هم به تر قیامته ستاسي دښمن پاته سم، ستاسي پر ضد به وجنګیږم او تاسي به ټول له خپل وطن څخه وشړم. سیتارام ص ۹۹

د امیر دوست محمدخان کمپ ته د غزني د سقوط اطلاع په څه باندي څلېرویشتو ساعتونو کي ورسېده. امیر د جنګ شورا راغونډه کړه او هغوی ته یې وویل چي د غزني قلا له خیانته پرته نیول کېدلای نه سوای. ده شاوخوا خپلو ملګرو ته وکتل او ټولو ته یې وویل چي ټول هغه کسان چي نه غواړي زما سره ملګري سي او ما به د بحران په وخت کي یوازي پرېږدي اوس دي له خېمې څخه ووځي. په خېمه کي ناستو کسانو ټولو وویل چي دوی له هغه سره ولاړ دي. امیر نواب جبار خان ته وظیفه ورکړه چي د انګرېزانو کمپ ته ولاړ سي او له هغوی سره وروستي مذاکرات وکړي.

نواب جبار خان د انګرېزانو کمپ ته ولاړ. موهن لال یې څه باندي درې میله مخي ته ور ووت. د الیکزانډر برنس خېمې ته او وروسته یې د شاه خېمې ته بوت. شاه شجاع یې ښه دوستانه او تود هرکلی وکړ. البته د نواب هیڅ پیشنهاد چا ورسره ونه مانه. نواب وویل چي د ده ورور دوست محمد

د شاه شجاع پاچهي مني، مگر لکه څرنگه چي د دوی مشر ورور فتح خان د وزارت مقام درلود دوست محمدخان ته دي هم د وزارت مقام ورکړه سي. مکناټن ورته وويل چي دوست محمدخان بايد تسليم سي او مور به يې د يوه سياسي پناه غوښتونکي په توگه هندوستان ته ولېږو. نواب ورته وويل چي په هغه صورت کي نو دی پوهېږي چي ورور به يې د انگرېزانو په برچو پوري وځړېږي مگر د هغوی لمني ته به لاس وانه چوي. نواب جبارخان د شاه شجاع او انگرېزانو له کمپ څخه روان سو او انگرېزانو ته يې وويل چي دی به هم له خپل ورور سره د هغه په سرنوشت کي ملگری وي. کې ص ص ۴۵۲-۵۳

امير؛ ارغندي د جنگ د ميدان له پاره خوښ کړ. مگر ويې ليدل چي ملگري يې ټول خيانت ورسره کوي او يو ټينگ ملگری نه معلومېږي. ده شاوخوا وکتل له ښي تر کيڼ پوري هري خوا ته خاينان ول. يوازي امير وو چي پر خپله مړانه او هوډ باندي ټينگ ولاړ وو نور نو ټولو خيانت ته ملا تړلې وه. دی پر آس باندي سپور سو. قرآن يې واخيست او په ټول لښکر وگرځېدی. پر ټولو يې ږغ وکړ چي مسلمانان ياست؛ خپل وطن څرنگه فرنگيانو ته پرېږدی. دا خو ستاسي مذهب ته سپکاوی کوي. ده خپل ټول وس تمام کړ مگر په ټول پوځ کي يې يو نارينه پيدا نه کړ، چي د ده غوښتنو، خواستونو او زاريو ته جواب ورکړي. دوست محمدخان خپلو ملگرو ته وويل چي که تاسي فيصله کړې وي چي له شاه شجاع سره ملگري سی نو د فتح خان له ورور سره دا يوه وروستی ځواني وکړئ. زما له څنگه ودرېږی او ماته وگورئ چي زه څرنگه د سپيو فرنگيانو پر سپرو عسکرو باندي حمله کوم. پرېږده چي هغوی ما شهيد کړي او نور نو تاسي پوه سه او خپل مو شاه شجاع. د امير دغي وروستی وينا هم پر چا باندي اغېزه ونه کړه. مړانه د خلکو له زړونو څخه وتلې وه او ميدان ټول له خاينانو، ډارنو او نامردانو څخه ډک وو. امير په ډېره نا اميدي د قزلباشو خوا ته، چي پخوا يې لا له شاه شجاع او انگرېزانو سره د ملگري کېدلو فيصله کړې وه، مخ واړاوه او هغوی ته يې وويل چي ځی له شاه شجاع سره بيعت وکړی او په خپله له ډېرو لږو ملگرو سره پاته سو. توپونه، د جنگ له پاره، لمبر سوي پاته سول او ده د هندوکش خوا ته مخ ونيوی. هغه کتاب ص ص ۴۵۴-۴۵۵

اميردوست محمدخان د خپل دوولس کلن قدرت په وخت کي او د قدرت څخه مخکي، د لومړی ځواني په کلونو کي ثابته کړې وه چي هم يې پر زړه ورتيا او هوښياری باندي حساب کېدلای سي او هم يو خطرناک دښمن دی. په دې خبري هر څوک پوهېدی چي امير به د کابل د تخت د بيرته نيولو او له انگرېزانو او شاه شجاع څخه د کسات اخيستلو له پاره بيرته ميدان ته را

ګرځي. د مکناټن او شاه شجاع له پاره لومړنۍ وظیفه د امیر دوست محمدخان نیول او له هغه څخه د ځانونو بې غمه کول وه.

د هغه د تعقیبولو وظیفه یې مېجر اوټرام ته وسپارله او له هغه سره یې حاجي خان کاکړ ملګری کړ، ځکه چې په بامیان کې یې حکومت کړی او له اوټرام سره د لېږلو له پاره تر ټولو وړ سړی وو. حاجي خان، چې خپل ټول عمر یې په دسیسو کې تېر کړی وو، سره له هغه چې دوست محمدخان له ده سره هیڅ علاقه نه درلوده او حتی د دښمن په سترګه یې ورته کتل، ده نه غوښتل چې داسې بې حسابه کار وکړي چې سبا ځان ته خطر پېښ کړي. حاجي خان په کندهار کې ولیده چې سردارانو لوبه بایللې ده نو له ښار څخه په تېښته ولاړ او له شاه شجاع سره ملګری سو. هغه د انګرېزانو له خوا د غزني په فتح کېدلو مطمئین نه وو ځکه له ټول پوځ څخه شاته پاته کېدی او کله چې غزنی فتح سو حاجي خان د شاه شجاع تر ټولو وفادار خدمتګار سو. حاجي خان ډېر هوښیار سړی وو او دا یې درک کړې وه چې خلک له شاه شجاع او له هغه سره د ملګري انګرېز پوځ څخه نفرت لري او دا نفرت به یوه ورځ په څرګنده دښمني او پاڅون بدلېږي نو یې شاه شجاع او انګرېزانو ته ځان دونه نه نیژدې کاوه چې سبا به د دوست محمدخان، د احتمالي قدرت په وخت کې له سردارانو سره په مقابله جبهه کې درېدلی وي او هیڅوک به مرسته نه سي ورسره کولای.

حاجي خان کاکړ له خپل پلان سره سم عمل وکړ. که څه هم چې د تعقیبوونکي ډلي له پاره د دوست محمدخان نیول ډېر مشکل ځکه نه وو چې له هغه سره ښځې، ماشومان او تر ټولو مهم ناروغ سردارمحمداکبرخان ورسره وو، چې په کجاوه کې یې ورسره نقلاوه. تر څو چې د هغه له پاره یې پیل پیدا کړ او د دوی سفر یو څه چټک سو. حاجي خان په یوه او بله پلمه د انګرېزانو تعقیبي ډله وځنډوله او په دې توګه یې امیر دوست محمدخان ته د تښتېدلو او د شاه شجاع له قلمرو څخه د وتلو او لیري کېدلو فرصت ورکړ. حاجي خان کاکړ، دوست محمدخان ته نجات ورکړ خو دا د ده د ژوند وروستی چال او دسیسه سوه. اوټرام په کابل کې مکناټن او شاه شجاع ته شکایت وکړ او د خپل ماموریت د ناکامی علت یې حاجي خان وباله او ضمناً مکناټن ته څو نور کاغذونه هم په لاس ورغلي وه، چې د حاجي خان کاکړ له خوا د انګرېزانو پر ضد، د افغانانو مشرانو ته لیکل سوي وه. انګرېزانو حاجي خان کاکړ بندي کړ او لږ وخت وروسته یې هندوستان ته واستاوه او بیا یې درک معلوم نه سو.

د هغو افسرانو، چي د امیردوست محمدخان د نیولو له پاره لېږل سوي وه، په یوه رپوټ کي راغلي دي چي په شمالي صفحاتو کي مو د امیر د نیولو له پاره ډېر زیات ډیپلوماتیک کوښښونه وکړل مگر له بده مرغه هیڅ کوښښ مو نتیجه ور نه کړه. رپوټ وایي دا یقیني خبره ده چي د مرکزي اسیا په خلکو کي د عزت او حیثیت خبره ډېره مهمه ده او څوک چنداني تر خپل عزت نه تیرېږي. که څه هم چي هزاره، اوزبکو او د هر توکم خلکو ته مو د کافي زیاتو پیسو پېشنهادونه وکړل مگر داسي څوک مو پیدا نه کړل چي تر خپلي آبرو تېر سي او امیر دي په لاس راکړي؛ که څه هم چي ده خپل ځان داسي کسانو ته سپارلی وو چي مخکي د ده ښکاره دښمنان ول. ستوک ویلر ص ۷۱

## شاه شجاع د کابل پر تخت

د شمال پر لوري د دوست محمدخان له تللو او د جگړې له پرېښودلو سره د کابل میدا ن د برټانیې د پوځونو له پاره خالي سو او هغوی له جنگه پرته دې ښار ته ننوتل. د اگسټ پر اوومه شاه شجاع، له انگرېزي پوځیانو سره د کابل ښار ته داخل سو. له هغه سره پر یوه څنگ باندي مکناټن او پر بل اړخ الیکزانډربرنس روان وو او خلکو له کړکیو او د بامونو له سرونو د هغه ننداره کوله. خلکو په پاچا کي هغومره ری نه واهه لکه د انگرېزانو عسکرو او د هغوی لباسونو او نابلدو سپینو مخونو ته چي متوجه وه. یوه انگرېز صاحب منصب وروسته ولیکل چي دا مراسم د پاچا د هرکلي نه بلکي د یوې جنازې د مراسمو په څېر وه. ښایي بل هیڅ وخت تر دغه بېخونده مراسم نه وي تېر سوي. کې ص ۴۶۱

جنرال کین د بمبې له فرقې سره له کابل څخه هند ته له ستنېدلو مخکي ځوان صاحب منصب هینري ډیورنډ ته، چي له ده سره یو ځای له افغانستانه ووت، یوه ورځ وویل زه باید تاته مبارکي ووایم چي له دې هیواده وځې. زما دا خبره درسره ولیکه چي په دې وطن کي به ډېر ژر یوه لویه فاجعه منځ ته راځي. ریچرډز ص ۲۱

څوک چي په کابل کي د شاه شجاع د هرکلي په مراسمو کي حاضر ول، او خپل یاداشتونه یې لیکلي دي، تقریباً ټول وایي چي په کابل کي د شاه شجاع هرکلی تر کندهار هم سوړ وو او حتی خلکو لږ تر لږه سلام ورته ونه وایه. څه مراسم چي جوړ سوي وه هغه هم د امیر پوځ او دربار جوړ کړي وه. د هغو شپو او د کابل د خلکو د احساس په باره کي یو یاداشت خو وایي چي د کابل

خلک په دې ښه پوهېدل چې شاه شجاع د انګرېزانو د پوځ په زور راغلی دی او چې دا پوځ نن ووځي سبا ته به شاه شجاع نه وي. په کابل کې خلکو په عامه ووېل چې که دا سورکوټي له افغانستان څخه ووځي شاه شجاع هم نه سي پاتېدلای. سيتارام ص ص ۱۰۱-۱۰۲

انګرېز صاحب منصبانو په کابل کې ډېر زيات کار نه درلود. په بازارونو کې ګرځېدل، ښار ته نيژدې شاوخوا ته تلل. ښکارونه يې کول، آسونه يې ځغلول، ټينيس او کرکيټ يې کاوه او افغانانو به يې ننداره کوله. يوه قومي مشر يوه انګرېز صاحب منصب ته د انګرېزانو په برخه کې د افغانانو احساسات ډېر ښه ور ته بيان کړي وه. هغه يوه صاحب منصب ته ويلي وه چې کشکي تاسي موږ ته د د دوستانو په توګه راغلي وای نه د دښمنانو په توګه. تاسي هر يو جلا جلا ښه خلک ياست، خو چې په لښکر راغلي ياست نو نفرت درڅخه لرو. ډال ريمپل ص ۱۹۴

د کابل د اشغال په لومړيو شپو ورځو کې په کابل او نيژدې شاوخوا کې لکه څرنګه چې ځينو کسانو يې انتظار درلود وضع آرامه وه. کابل له جنګه پرته نيول سوی وو او يوازينی سړی چې مقاومت به يې کاوه، امير دوست محمدخان وو، هغه د شمال لوري ته تښتېدلی وو. انګرېزانو له بل چا څخه د مقاومت کولو انتظار نه درلود. صاحب منصبانو فکر وکړ چې په کابل کې يې پاته کېدل دوام کوي نو له هند څخه يې خپلي ښځي را وغوښتلې او د برنس په څېر نورو معتبرو کسانو لا هندی او کشميری نوکراني هم را وبللې. د انګرېزانو عسکري کمپ له فېشني ښځو ډک سو. کانسرټونه او راز راز سپورټونه او سات تېري پيل سول او خلک پوه سول چې پر افغانستان باندي د انګرېزانو يرغل يوازي د شاه شجاع د کښېنولو په خاطر نه وو، بلکي دا يو دايمي اشغال دی؛ او انګرېزان غواړي د تل له پاره پاته سي. والر ص ۱۵۹

سړي ته سوال پيدا کيږي چې انګرېزانو افغانستان ته له راتللو او د دې هيواد له اشغالولو څخه څه مطلب درلود؟ که د دوی مطلب د دې هيواد دايمي اشغال او د روسيې په مقابل کې د دې هيواد دايمي ساتل وه، نو بايد چې د هند په څېر يې لوی پوځي مرکزونه پکښې جوړ کړي او اداري سستم يې په عامه په خپل کنټرول کې اخيستی وای. او که يې مطلب د خپل ګوډاګي شاه شجاع پاچا کول او د دوست محمدخان ليري کول وه نو بيا خو يې بايد خپل هغه پوځي قوت چې افغانستان ته يې راوړی وو په لوی لاس کمزوری کړی نه وای. څکه دوی ته معلومه سوه چې هغسي چې دوی فکر کاوه د دوی ګوډاګي شاه شجاع په هغه اندازه محبوبيت نه درلود.

دوی ولیدل چې په کندهار کې خانانو او عوامو د شاه شجاع ډېر سوړ هرکلی وکړ. دا پوازې مکناټن وو چې هر څه یې په سترګو ګل او ګلزار ورتلل نور نو ټولو هغو کسانو چې د شاه شجاع د هرکلي ننداره یې کړې او خاطرات یې لیکلي دي وایي: چې خلکو د هغه تر څنګ روانو انګرېزي صاحب منصبانو ته په ښه سترګه نه کتل. حقیقت هم دا دی چې د کندهار په سلو کې تر نهه نیوي زیاتو کسانو په ژوند کې اروپایي عسکر او عیسوي مذهبه کسان په سترګو نه وه لیدلي. انګرېزانو ولیدل چې له کندهاره څخه تر کابل پورې څو ځایه له مقاومت سره مخامخ سول او په دې ښه خبر وه چې په لومړي قدم کې یې د بارکزیو یوه لویه قبیله خوابدې کړې او حتی غلیمه کړې ده او هغوی به د خپل اقتدار د بیرته تر لاسه کولو له پاره حتماً تلاښ کوي.



د شاه شجاع دربار، کابل بالاحصار ۱۸۰۹ع

د شاه شجاع زوی شهزاده تېمور له انګرېزي لښکرو سره چې په لودیانه کې د ګورنر جنرال سیاسي استازي کپټان ویډ یې مشرتوب کاوه او د سیکهانو پوځي ملاتړ ورسره وو، د لاهور او پېښور له لارې کابل ته روان وو. د کپټان ویډ او سیکهانو له قوتونو سره، د خیبر په دره کې، څو ځایه

مقاومت وسو او یو شمېر عسکر یې قتل سول. کپتان وېډ د خیبر په دره کې درې پوځي مرکزونه جوړ کړل او لا وېډ ایله جلال آباد ته رسېدلی وو چې د اپرېدیو مشر مصري خان او نورو اپرېدیو قبایلو هغه مرکزونه له منځه یوووړل. د خیبر دره نه پخوا مطمئینه او مصوونه وه او نه له دې وروسته کراره پاته سوه. خو مکناټن، د دې له پاره چې خپل برى وښیي، له کابل څخه د دریو فرقو عسکرو او پنځو شپږو ډېرو قوي جنرالانو په ایستلو سره په لوی لاس خپل قبر وکیندی. سرجان کې دا موضوع ډېره ښه سپړلې ده.

"له شاه سره د خپلو خلکو علاقه نه وه. دی به ښایي په بالاحصار کې ناست وو خو پر افغانانو باندې یې حکومت نه سوای کولای. شاه په خپله په خپل قوت اعتماد نه درلود. ده هیڅ فکر نه کاوه چې د دوست محمد قوت مات سوی او هغه له منځه تللی دی. ده اوس هم هغه په خپلو خیالاتو کې لیدی چې د هندوکش په لمنو کې گرځي او اوزبک پر ځان را ټولوي او بیا د کابل د تخت د نیولو کوښښونه کوي. د برتانیې ډېرو او مهمو پوځیانو په افغانستان کې د انگرېزانو پر پاته کېدلو اعتراض درلود او دا هغه اعتراض وو چې شاه شجاع هم تر یوه ځایه ورسره ملگری وو. په هند کې ډېرو نورو سیاستمدارانو او پوځیانو لا ښایي بل ډول اعتراضونه درلودل او هغوی ته باید هرو مرو توجه سوې وای. مگر د شاه شجاع یوازې پرېښودل دونه خطرناکه اقدام او تجربه وه چې باید په سپکه سترگه ورته کتل سوي نه وای. د شاه ډېر زړه غوښتی چې د انگرېزانو له کنټروله بې غمه وای خو په دې پوهېدی چې که هغوی نه وه دی به څرنگه ځان ساتي؟ د برتانیې پوځیانو هم غوښتل چې له افغانستانه ووځي خو په دې باندې چا باور نه درلود چې شاه شجاع به د دوی له مرستې پرته خپل قدرت وساتلای سي. که دوی شاه شجاع یوازې پرې ایښی وای او هغه خپلو مخالفینو پرزولی او له ملکه شړلی وای نو دا خو د دوی له پاره ډېره لویه ناکامي او د حکومت له پاره لویه بې حیثیتي وه." کې ص ص ۴۶۳-۴۶۴

په دې منځ کې شاه شجاع یو عجیب حالت درلود. شاه شجاع له شاهي قدرت سره نابلده نه وو. هغه د خپل ورور شاه زمان د پاچهی په وخت کې په پېښور کې تقریباً مستقل واکمن وو او بیا د شاه محمود له پرزولو څخه وروسته شپږکاله د افغانستان، پنجاب، سند او بلوچستان پاچا وو. هغه غوښتل چې خپل پخوانی قدرت ولري؛ خو په دې پوهېدی چې پاچهي په یوازې سر ساتلای نه سي او باید چې د انگرېزانو پوځ او مالي مرسته ورسره وي. ده نه غوښتل چې تش گوډاگی و اوسي مگر دا څرنگه ممکنه وه چې قدرت او پاچهي د ده وي او پوځ او مالي زور د برتانوي هند د حکومت وي.

ده باید د مستقل قدرت د ټینګولو له پاره پر خپل قوم او اولسونو باندې تکیه کړې وای خو له خپل قوم څخه په هغه ورځ پردی سوی وو چې له پردیو لښکرو سره وطن ته ستون سو. ملیسن د ده او د مکناټن وضع ډېره ښه تشریح کړې ده:

"شاه شجاع د خپل قدرت د ثبات له پاره په هیڅ توګه د مکناټن ملاتړ او اعتماد له ځان سره نه درلود. دی د قبایلو له لویو مشرانو څخه تل په وهم کې وو. دی د هغوی له قوت، زړه ورتیا او جاه طلبیو څخه تل بېرېدی. ده دا هیڅ وخت نه سوای هېرولای چې دغو خانانو یو وخت څرنګه له قدرته پرزولی وو. د ده غرور دا اجازه نه ورکوله چې هغوی پخلا کړي او جوړه ورسره وکړي. ده هغوی په یوازې سر نه سوای ځپلای، مګر د برټانیې د پوځي قوت په زور یې کوټلای سوای. ده دا قوه مکناټن، په راز راز دلایلو او چلونو، په دې قانع کړ چې باید یوه مجهزه قوه ورسره ولري. ده دا قوه تر لاسه کړه. نو بیا د ده دریځ څه وو؟ ده ته داسې حالت په برخه سو چې تر دې نو خرابېدلای نه سوای. هغه ازادي چې هر انسان مینه ورسره لري، او ده هم طبعاً ورسره درلوده، محدوده سوه. دی د خارجي برچو په زور پر قدرت ناست وو.



وزیر محمد اکبر خان

د مکناټن حالت هم تر ده چنداني بهتر نه وو. هغه چي د خارجي برچو سالار وو، په دولت کي دوهم مقام سو. هغه چي قدرت واخیست نو د ټولو خلکو نفرت ورڅخه کېدی. د هغه پاچا نفرت ورڅخه کېدی چي د ده په توره یې تاج او تخت تر لاسه کړی وو. د خلکو ځکه نفرت ورڅخه کېدی چي ده د هغه پاچا ملاتړ کاوه چي دوی نفرت ورڅخه درلود. په دې صورت کي نو له ټکر څخه هیڅ چاره نه وه." ملیسن ص ص ۳۸٦-۸۷

که څه هم چي افغانانو په کندهار او وروسته د غلجیو په سیمو کي فرنګیانو ته خپل نفرت ښودلی وو خو ځینو یې لکه چي تر ډېره وخته پوري ځیني پېښي تصادفي بللې. د کابل د اشغال څخه لږ وروسته د انګرېزانو یو عالي رتبه صاحب منصب ډګروال هیررینګ د وردګو په ولایت کي لکه په هندوستان یا اینګلېنډ کي په آزاده هوا کي قدم واهه. ملګرو یې څو ځله منع کړی وو خو ده د چا په خوله نه کوله او یوه ورځ یې پر یوه غونډۍ باندي له څو تنو افغانانو سره خبري کولې چي هغوی حملهورباندي وکړه او په چړو یې داسي ټوټې ټوټې کړی وو چي مړی یې له پېژندلو ایستلی وو. ډال ریمپل ص ۱۹٦

دا یوازي لارډ اکلېنډ، مکناټن، جنرال الفینسټون او ځیني نور ساده ګان نه وه چي د افغانستان اشغال او ساتل یې اسانه کار بللی وو؛ بلکي داسي ښکاري چي دا په انګرېزانو کي یوه عمومي عقیده وه. انګرېزانو د اشغال په لومړیو ورځو کي ولیدل چي د وطن هره طبقه خلک یې مخالف دي او یوازي هغه کسان یې طرفداري کوي چي د دوی په اشغال او د شاه شجاع په واکمني کي یې سمدستي او عاجلي ګټې درلودلې. مګر بیا یې هم ځانونه په زور غولول او فکر یې کاوه چي هر څه مخ پر سمېدلو دي او د هغه چا پر خبرداریو یې، چي د افغانستان حالات یې په بل نظر کتل غوږونه کاڼه او سترګي ړندې کړي وې.

د انګرېزي پوځ اعلی قوماندان جنرال کین چي د افغانستان د اشغال په لومړیو ورځو کي یې د هند پر لور د وتلو په وخت کي ځوان هینري ډیورنډ ته ویلي وه ته خوشبخته یې چي له دې هیواد څخه وځې ځکه چي زه دلته یوه فاجعه راتلونکې وینم. همدغه جنرال، د غزني د قلا او ښار له فتح کولو څخه وروسته خپل ټپیان او ناروغان چي تر کابل پوري یې سفر نه سوای کولای په غزني کي پرېښودل او دغه راز یې د توپچي یوه وړه قطعه د شاه شجاع له دوو سوو سپرو سره هلته ځای پر

ځای کړه. فاریسټ لیکي چې دا یوه وړه قطعه وه او د داسې یوې مهمې قلا د ساتلو وظیفه ورکړه سوې وه چې شاوخوا دښمنان وربانديي را ګرځېدلي ول. پوپلزي پاڅون ته تیار ولاړ وه او غلجي خو ځکه په غوسه وه چې له کندهار څخه تر کابل او له کابل څخه تر جلال آباد پورې یې د لارو کنټرول له لاسه نه ورکاوه. په دغه وخت کې کرنل هیررینګ له کندهار څخه کابل ته د پوځ له خزانې سره را روان وو او د غزني او کابل په منځ کې یې له خپل کمپ څخه یوه څه لیرې قدم واهه چې پښتنو ټوکر ټوکر کړ. نیویل چمبرلېن وایي چې د سپټمبر پر اووه لسمه کپتان اوټرام د کمپ له دېرش میلي څخه خبر راکړ چې کرنل هیررینګ وژل سوی او دی د قاتلانو د تعقیبولو له پاره مرستې ته ضرورت لري. د نیویل وورور کرافورډ چمبرلېن چې له پنځو سوو عسکرو سره د اوټرام مرستې ته ورغلی وو، لیکي: "یاغیان د خپلو مورچو په قوت باوري وه او پر موږ باندي یې د ټوپکو ډزې پیل کړې. د دوی مشرانو توري ځلولې او هندوستاني عسکرو ته یې نارې وهلې چې مخ ته راسی. زموږ عسکرو دوی شاوخوا محاصره کړل او دې لوړو غونډیو ته په ختلو کې له سختو ستونزو سره مخامخ سول. سره له هغه چې دوی په ښو مورچلونو کې ځای نیولی وو مګر موږ بشپړه ماته ورکړه. ډېر یې ووژل سول او ۱۲۰ تنه مو، چې ځیني یې زخمیان ول، ژوندي ونیول. فاریسټ ص ص ۴۹-۵۰

انګرېزانو ولیدل چې په کندهار کې یې په لومړۍ هفته کې پر دوو صاحب منصبانو باندي په ارغنداو کې حمله وسوه او یو یې په تورو او چړو ووا‌ژه . له کندهار څخه تر غزني پورې یې د زرهاوو غلجیو مقاومت او حملې ولیدلې او په وردګو کې یې د خپل ډګروال قتلېدل او په غرونو کې مقاومت ولیدی؛ خو بیا یې هم فکر کاوه چې وضع به نن او سبا ته کراره سي. دوی په دغو خیال پلوونو کې ډوب وه او نه یوازې یې له احتیاطه کار وانه خیست بلکې هر څه تېرۍ چې یې په وس کېدی هغه یې وکړ.

د کابل خلکو په حقیقت کې د نفرت حق درلود او هغه قومي مشر چې هر څوک وو حقیقت یې ویلی وو. چې موږ تاسې فرنګیانو، هر یوه، ته په ښه سترګه ګورو خو ستاسې له لښکر څخه نفرت لرو. لومړۍ خو نه د کابل او نه د کندهار خلکو فرنګیان لیدلي ول او داسې خو یې بېخي فکر نه وو کړی چې یوه ورځ به د دوی پاچا د فرنګیانو د لښکر په زور پر تخت کښېنول کیږي او د خلکو د خیر او شر فیصلې به د هغوی په لاس کې وي. له هغوی سره ځیني داسې کارونه راغلل چې د خلکو پر مذهبي احساساتو برسېره د هغوی پر عنعناتو او کلتور باندي حمله وه.

استعماري قدرتونه چې هر هيواد ته ځي نو له ځان سره اداري فساد، قومي بې اتفاقي او فحشاء وړي. د دې مثالونه دونه زيات دي چې موږ له موضوع څخه ليري كوي. تقريباً ټول تاريخي متون په دې عقيده دي چې فرنګيانو ډېر ژر په كابل كي فحشاء پيل كړه او شكايتونه يې د انګرېزانو تر عالي رتبه مقاماتو او شاه شجاع پورې ورسېدل. البته هيچا د چا پر شكايت غوږ ونه نيوی.

د شاه شجاع ځينو طرفدارانو او خيرغوښتونكو هغه ته له دې ناحيې شكايت وكړ او ورته ويې ويل چې په كابل كي د فاحشه ګريو بازار دومره تود سوی دی چې د فرنګيانو عسكر په سپينه ورځ ښايستې ښځې پر آسونو سپروي او قشلو ته يې بيايي. دې ښځو ډېرښايسته او قېمتي لباسونه اغوستي وي او څوك نه پوهېږي چې دا د اشرافو له كورنيو دي او كه له ټيټو او بد اخلاقو كورنيو څخه راځي. دوی پاچا ته وويل چې ستاسي دښمنان په دې موضوع كي ستاسي پر ضد كار اخلي او وايي چې زموږ پاچا د دغو بدكاريو مخه نه سي نيولای. شاه شجاع مكناټن ته شكايت وكړ او هغه په ډېره بې پروايي ورته وويل چې كه زه صاحب منصبان له دې كار څخه منع كړم نو هغوی به په راز راز نورو ناروغيو اخته سي. هراتي ص ۱۲۴



د مكناټن د ژوند د وروستيو وختونو يو انځور چې د جېمز آټكېنسون لخوا كښل سوی

سیتارام وايي سره له هغه چې د خلکو له فرنګيانو څخه ښه نه راتلل خو ډېر اشراف د هغوی ملګري سول. د اشرافو د کورنیو ښځو له فرنګيانو سره پټې رابطې ټینګې کړې. دی وايي سره له هغه چې د دغي مسلې په ارتباط په کابل کي څو ځله فرنګيان په چړو زخمیان سول او ډېزي وربانديي وسوې، خو فحشاء منع نه سوه او ډېرو کسانو د خپلو سیاسي او مادي ګټو له پاره خپلو ښځو ته اجازه ورکوله چي له فرنګيانو سره ولاړې سي. سیتا رام ص ۱۰۳

دا خبري دونه ډېري سوې چي د افغانانو حوصله یې تنګه کړه. په دې سلسله کي د امیردوست محمدخان وریرې شاهجهان بیګم له کپتان رابرټ وار برټن سره واده وکړ او د نکاح شاهدان یې برنس او لیفتینینټ سترټ ول. له دغي ښځي څخه د انګرېزانو مشهور صاحب منصب ډګروال سررابرټ وار برټن وزېږېدی، چي د هند په شمال لوېدیځه صوبه کي یې په ډېرو مهمو جنګونو کي برخه اخیستې ده. دغه راز په قلات کي د انګرېزانو سیاسي استازي لیفتینینټ لینچ د ولو خان په نوم د شمولزو د یوه لوی خان له لور سره واده وکړ؛ چي د افغانانو له پاره په هیڅ توګه د منلو کار نه وو. ډال ریمپل ص ص ۱۹۹-۲۰۰

که څه هم چي دا خو د حلالي نکاح خبري وې خو د افغاني کلتور له پاره حتی اوس هم د زغملو نه دي. مګر د دې ترڅنګ د ښځو د تښتول کېدلو او د انګرېزانو کورونو ته، چي ډېر یې د ښار په مرکز او د خلکو په منځ کي وه، د ښځو د تګ راتګ کیسې په افغانستان کي د "یک زاغ و چهل زاغ" په ډول خپرېدلې او د خلکو سره یې د انګرېزانو څخه موجود نفرت لس چنده کاوه.

موهن لال په دې برخه کي ډېرو بدو کیسو ته اشاره کوي. عطامحمد تاریخ سلطاني او ډېر نور متون د انګرېزانو سره د افغانانو د مخالفت او دښمنۍ د زیاتېدلو یو لوی علت دغه بولي. په دې منځ کي د الیکزانډر برنس کور ډېر مشهور وو.

د انګرېزانو د اعمالو په مقابل کي د خلکو نفرت دونه عام سو چي حتی سردار سلطان محمدخان چي د انګرېزانو سره په دوستي مشهور وو، امیر دوست محمدخان ته یو لیک واستاوه، چي د انګرېزانو لاس ته ولوېدی، او په هغه کي یې لیکلي وه چي زه تاته نه سم ویلای چي دې فرنګیانو زموږ په وطن کي کوم ظلمونه ونه کړل. ځیني خلک په عامه عیسیویان سوي دي او ځینو فحاشیو ته مخه کړې ده. غله دانه ډېره ګرانه سوې ده. خدای دي دغه لعنتیان زموږ له هیواده وباسي. د دوی له څرګندېدلو سره زموږ له وطنه دین او حیا دواړو کوچ کړی دی. ډال ریمپل ص ۲۱۲

په اینګلینډ کي د برنس دغه د رسوايي کیسې خپرېدلې او هغه په دې مسئله کي تر ټولو لوی

تېرې کوونکې ګڼل کېدې. برنس په دې پوهېدی چې په افغانستان کې له ښځو سره د غیر مشروع اړیکو درلودل څه عواقب لري او په دې هم پوهېدی چې په دغه اړه خپرو سویو رپوټونو کې د ده نوم تر ټولو زیات یادېږي، بیا یې هم دوام ورکاوه. والر ص ۱۵۹

هغه انګرېزصاحب منصبان چې د خلکو د ښځو او مینځیانو په تښتولو او پټولو کې یې لاس درلود د برنس له لوري حمایه کېدل او برنس ته چا څه ویلای نه سوای. له مشهور عبدالله خان اڅګزي سره د برنس اړیکي له ډېره وخته ښه نه وې، خو کله چې د هغه یوه ښایسته مینځه یوه انګرېز صاحب منصب خپل کور ته ورځخه یووړه نو عبدالله خان خپل وراره د برنس کور ته د شکایت له پاره واستاوه او هغه منفي جواب ورکړ، حتی تهدید یې کړ. د ناظر علي محمد ښځه له یوه بل افسر سره ولاړه او د هغه په کور کې ورسره اوسېدله. په دې کیسه هر څوک خبر ول خو برنس د چا پر شکایت غوږ ونه نیوی. په دغه ارتباط ټولې قضیې برنس ته راجع کېدلې او هغه به د خپلو انګرېزي صاحب منصبانو طرفداري کوله. دا شکایتونه دونه زیات سول چې په عامه توګه د انګرېزانو او په خاصه توګه د برنس پر ضد د افغانانو، په تېره بیا هغو مشرانو او اشخاصو چې عزت یې لوټل سوی وو، د عام نفرت او قهر سبب سو. موهن لال دوهم جلد ص ص ۳۹۳-۳۹۸

په کابل کې د مکناټن له وژل کېدلو او د انګرېزانو د پوځ له تباه کېدلو څخه څه باندې یوه میاشت وروسته شاه شجاع لارډ اکلینډ ته په یوه لیک کې د همدغې موضوع په باب تقریباً همدغه خبرې ولیکلې. ده هغه ته لیکلي وه چې څو څو ځله مې مکناټن ته وویل چې په کابل کې د انګرېزانو صاحب منصبان د خلکو ښځې عسکري چوڼۍ ته بیایي او ما پخپلو سترګو لیدلې دي او له دې څخه به یوه ورځ یوه لویه هنګامه جوړه سي، خو هغه زما پر خبره غوږ ونه نیوی. شاه شجاع وایي ما مکناټن ته وویل چې ما هغه خلک چې له دغې ناحیې څخه یې شکایتونه کول ترټلي او ورته ویلي مي دي چې د انګرېزانو نوم به نه بدوی او که د هر چا ښځه چا په زور ورځخه بوتله ما ته دې خبر راکړي چې زه تحقیق وکړم. کې ص ۳٦٤

## د شاه شجاع اداره

که څه هم چې د شاه شجاع د ادارې په نوم خو څه موجود نه وه، خو څرنګه چې هغه په کابل کې پاچا وو نو موږ مجبور یو چې د هغه د ادارې په نوم یې یاده کړو. هغه وضع چې پر افغانستان باندې

د انګرېزانو د یرغل او د شاه شجاع له پاچا کېدلو څخه وروسته منځ ته راغله، په حقیقت کې، شاه شجاع هم نه غوښته او نه یې آرزو درلوده. مؤرخ سرجان کې لیکي: "شاه شجاع په خپله په ډېر غرور او اطمینان د هغه لښکر تشکیلېدلو ته کتل چې په افغانستان کې به د ده د پاچا کېدلو په وخت کې ورباندې راګرځېدلی وي، مګر تل دا اندېښنه ورسره وه چې هسې نه هغه انګرېزي صاحب منصبان چې اوس د لښکر د تنظیمولو وظیفه ورسپارله سوې ده ټول کنټرول په خپل لاس کې واخلي او دی له هغې خپلواکۍ څخه محروم کړي چې ده یې دا دونه موده تلاښ کاوه. دا ډېره ګرانه خبره وه چې مونږ د یوه زاړه پاچا له پاره ټوله کارونه وکړو او هغه دې په پای کې وواېي چې دا ټول کارونه ګویا ده کړي او باید واک هم دی ولري... انصاف خو دا دی چې ده باید ځان ته کتلي وای. دی په لودهیانه کې یو عادي سړی وو. هیڅا یې د یوه مقام په حیث درناوی نه کاوه. دلته هلته به روان وو او چنداني چا نه پېژاند. ځیني کسان به ښایي پوهېدل چې هغه یو وخت د افغانستان پاچا وو او اوس د برټانیې له حکومت څخه د میاشتي څلور زره روپۍ د خپلي نالایقۍ په وجه او د بخت د ګرځېدلو د جبران په توګه تر لاسه کوي. تر دې ها خوا ته نو د ده په باره کې څوک په هیڅ نه وه خبر. دی یو ناڅاپه د لودهیانې له خاورو او دوړو څخه راپورته سو او د یوه پاچا او د ټرونونو د لاسلیک کوونکي په حیث وپېژندل سو چې د برټانیې د حکومت له ګورنرجنرال او د پنجاب د پاچا سره په مساوي حقوقو کښېني. هغه یو ځل داسې مقام ته ورسېدی چې له هرې خوا توجه ور واوښتله" کې ص ص ۳۴۹-۳۵۰

که څه هم چې د شاه شجاع له لومړنیو مکتوبونو او فرمانونو څخه چې په (۱۸۴۰م.) کال کې یې لیکلي دي، ښکاري چې هغه له خپل وضعیت څخه راضي دی او فکر کوي چې دی یو مستقل پاچا دی. له یوه لیک څخه یې، چې د باجوړ د خانانو، مشرانو او خلکو په نامه یې لیکلی دی داسې ښکاري چې د خلکو هغه آوازې یې اورېدلي دي چې وایي شاه شجاع د انګرېزانو په ملاتړ قدرت ته رسېدلی دی او دا هیواد د انګرېزانو تر کنټرول لاندي دی. خو دی وایي چې مونږ د شرایطو د تقاضا سره سم د انګرېزانو په مرسته کندهار او کابل ونیوی. انګرېزان د هغه په اداره کې د یوه وېښته قدر اختیار نه لري او هیڅ ډول مداخله نه کوي. دی لیکي چې اکثر انګرېزان د وخته له افغانستان څخه وتلي او باقي پاته به هم ووځي. خو له هغه لیک څخه یې، چې تاریخ نه لري او د مکناټن په عنوان یې لیکلی دی، په څرګنده ښکاري چې په چارو کې د انګرېزي صاحب منصبانو او حتی د کښتني رتبې د افسرانو له مداخلې او خپلې بې صلاحیتۍ څخه سخت ناراض دی.

شاه شجاع ليکي: چي له لويه سره دوست محمد ويله چي د حکومت ټول اختيار د صاحبانو په لاس کي دی، مگر موږ دا آوازې ردولې او خلکو هم زموږ پر خبرو غوږ نيوی؛ مگر اوس وضع داسي حال ته رسېدلې ده چي دی د هيڅ شي اختيار نه لري او ټول خلک يېويني. ده مکناټن ته وليکل چي که چيري تاسي وغواړی چي زه په هيڅ شي کي غرض ونه کړم او په يوه کونج کي کښېنم، زه به دا کار وکړم او د دوستانو له خوښي پرته به عمل ونه کړم ځکه چي زما مال، ملک او نوم ټول د دوستانو دی. شاه شجاع ليکي چي تېره ورځ يې د سپرو عسکرو رسم گذشت ليدی او يو نوی ځوان صاحب منصب يې چي پر ښه آس سپور وو او ښه لباس يې اغوستی وو د پوځ له پاره انتخاب کړ او امر يې وکړ چي د هغه نوم د لښکر په سپرو کي شامل کړل سي. ټريوور صاحب وويل چي د هغه نوم دي نه ليکل کيږي او ما هم خپل امر بيرته واخيست. شاه شجاع وايي حاضرينو دا حال وليدی او يوه بل ته يې وکتل. دی ليکي چي ستاسي هر ډول خوښه وي هغه سمه ده، خو پرده ښه شی ده. او دغه ډول اجراآت دواړو خواو ته تاوان لري. کهزاد ص ص ۴۵۱-۴۵۳

ويليم کې تر پايه په دې عقيده دی چي لومړی خو بايد انگرېزانو د افغانستان په چارو کي دغه ډول مداخله کړې نه وای او چي بيا يې مداخله وکړه او سړی يې پاچا کړ نو بيا خو يې بايد يو څه اختيارات ورکړي وای. ډاکټروالټر بيليو هم په دغه عقيده دی او ليکي: چي موږ يو پاچا د خپلو نيکونو پر تخت باندي کښېناوه. ټول مراسم او تشريفات مو پر ځای کړل، عسکر مو په رسم گذشت ورته تېر کړل او بيا مو نو ټول قدرت او صلاحيت ورڅخه واخيست او حتی د هغه داسي غوښتنو ته مو چي ډېر لږ اهميت به يې درلود غوږ ونه نيوی. بيليو وايي: موږ هيڅ وخت دې حقيقت ته متوجه نه سولو چي د يوه خپلواک ملک د پاچا غرور ته بايد په دغه ډول سپکاوی ونه کړو. بيليو ص ص ۴۱-۴۲

لوی استعماري قوتونه له خپلي خوښي او گټو سره سم، هر ډول تبليغ روا بولي. کله کله له خپلو کمزورو گوډاگيانو څخه دومره لوی خلک تراشي چي اسمان ته يې وخېژوي او بيا چي زړه يې سي بيرته يې له مځکي وولي او چي هر څه بد کارونه وي د هغو ټولو مسؤليت وربانديي تاوان کړي. مکناټن کابل ته له رسېدلو څخه يو کال وروسته د (۱۸۴۰م.) کال د اگسټ په مياشت کي شاه شجاع ته ټول لقبونه ورکړل چي د يوه لوی او عادل پاچا سره ښايېږي. هغه وليکل چي شاه شجاع پرته د پنجشنبې له ورځو نور هره ورځ د دووساعتونو له پاره په درباركي حاضرېږي او د خلکو شکايتونو او عرضونو ته غوږ نيسي او عدالت کوي. که څه هم چي د عدالت په قايمولو کي د هيڅا

لحاظ او خاطر ته نه ګوري خو په عین وخت کي ډېر زړه سواندی او مهربان انسان دی. شاه شجاع ټول هغه صفتونه لري چي له یوه محبوب سلطان سره ښایي. څرنګه چي له شاه شجاع سره له ډېره وخته پېژنم نو ویلای سم چي د هغه په ټول قلمرو کي به د ده د لیاقت ساری نه وي.

همدغه مکناټن یو کال وروسته د سپټمبر پر لومړی نېټه، چي لا په کابل کي پاځون پیل سوی نه وو، شاه شجاع ته دونه په غوسه دی چي له هغه څخه ټول هغه صفتونه چي له یوه پاچا سره ښایېږي بېرته واخیستل؛ هغه یې یو بې ارادې، بې زړه او بې واکه سړی وباله او لیکي چي شاه شجاع لکه یوه زړه ښځه نور په هیڅ توګه د خپلو خلکو اداره کولو ته جوړ نه دی. بوییسټ ص ص ۲٦۳-۲٦۴

سړی نه پوهېږي چي مکناټن ولي د خپلو انګرېزي صاحب منصبانو او حتی د خپل تر ټولو عالي رتبه او نیژدې سلاکار الیکزانډر برنس پر مشورو او رپوټونو باندي او په حقیقت کي پر ټولو هغو رپوټونو باندي غوږونه کاڼه اچول او ردول یې چي په افغانستان کي د انګرېزانو د مداخلې او یا د شاه شجاع د حکومت د کمزوري ادارې په مقابل کي د خلکو د عکس العملونو په باره کي ورته لیکل کېدل. برنس که څه هم چي مکناټن ته ډېر زیات رپوټونه ولیکل خو کابل ته د انګرېزي قواوو له رسېدلو څخه وروسته یې په یوه مفصل رپوټ کي تقریباً هر څه ورته بیان کړي وه؛ خو مکناټن د هغه له مکتوب سره، چي ښایي لاس به یې هم پکښې وهلی وي خپل دلایل هم یوځای کړي او د هغه رپوټ یې په هر ځای کي جلا جلا رد کړی او د ګورنرجنرال دفتر ته یې لېږلی دی.

دی وایي برنس په خپل مکتوب کي زموږ د ستونزو او د هغو پټو دښمنانو د خطر په باره کي چي دغه ګړی شاه شجاع ورسره مخامخ دی لیکنه کړې او زه یقین لرم چي تر حد تېرې یې کړې دی.

مکناټن وایي شاه شجاع پر تخت باندي د کښېنستلو سره سم ټولو ستونزو ته توجه وکړه او هرې خوا ته یې پوځیان ولېږل. هم یې د سرکښو غلجیو او هم یې د قلات د خاین مشر محراب خان د ځپلو له پاره قواوي واستولې. شاه شجاع د همدغو عملیاتو تر څنګ د دوست محمدخان دسیسو ته هم بشپړه توجه وکړه او دغه راز یې خپله وظیفه وبلله چي جلال آباد ته هم یو سفر وکړي.

مکناټن وروسته لیکي چي د دغو عملیاتو په ترځ کي اعلیحضرت ته د خیبر د قبایلو د ښورښ اطلاع ورسېده او ده ایله دا ښورښ د خبرو له لاري کرار کړی وو چي په کونړ کي ښورښ پیل سو. موږ د کونړ د سیدانو عزیزخان او نورو ناراضي مشرانو سره خبري پیل کړې. او لا اعلیحضرت له جلال آباد څخه روان سوی نه وو چي د باجوړ د قبایلو د ښورښ خبر ورته را ورسېدی. دغه

اعلیحضرت مجبور سو چي د غلجیو د ځپلو له پاره دوهم ځل پوځونه ولېږي او دا ستونزه لا هواره سوې نه وه چي د کویټې او قلات په ګاونډ کي یې نا کراریو توجه ور واړوله.

مکناټن زیاتوي چي دا ټولي ستونزي تر یوه کال په کم وخت کي منځ ته راغلي دي او شاه شجاع د دې ستونزو په هوارولو کي دومره فعال دی چي ستړتیا بېخي نه پېژني. مکناټن د شاه شجاع د نورو ستونزو تر څنګ دې خبري ته هم یو ډول په زړه پوري، اشاره کوي چي زموږ دښمنان غواړي خلکو ته داسي ذهنیت ورکړي چي د چارو اداره او واک زموږ په لاس کي دی او په دې توګه یې د افغانستان مذهبي خلک موږ ته چي د بېل مذهب او بېل کلتور څښتنان یو په غوسه کړي دي.

مکناټن په دغه لیک کي چي زیاتره د شاه شجاع او د هغه د ادارې د دفاعې شکل لري، لیکي دا زما اصول دي چي پر هغو ټولو وړو شکایتونو باندي غوږونه کاڼه واچوم چي ماته راوړل کیږي او زیاتره یې د دې هیواد د قانوني پاچا په نیمګړتیاوو کي شمېرل کیږي. زه وایم دا زموږ ډېره په ګټه ده چي په ټول ملک کي د اعلیحضرت درناوی وسي.

مکناټن لیکي سره له هغه چي زه د مناسبي لاري پیدا کېدل ستونزمن بولم خو اعلیحضرت ته مي هر وخت پېشنهاد کړی دی چي یو لائق او مستعد وزیر پیدا کړي او په لګښتونو کي هم له خپلو عایداتو سره سم سلوک وکړي. بوییسټ ص ص ۲۸۶-۹۱

د ګورنرجنرال په عنوان د مکناټن له لیکونو او د هغه له شخصي لیکونو څخه ښکاري چي هغه ریشتیا هم په دې عقیده وو چي په افغانستان کي هر څه پر لار دي او په حقیقت کي ټولي ستونزي د سردارانو نظام منځ ته راوړې وې او خلکو له هغوی څخه شکایت درلود. ده په خپل یوه شخصي لیک کي لیکلي دي چي سردارانو پر ښار باندي داسي سخت کنټرول وضع کړی وو چي د هغوی له اجازې پرته چا یوه ټوټه د پسه غوښي خرڅولای نه سوای. دی وایي سردارانو پر هر څه باندي ډېر لوړ او ظالمانه مالیات لګولي وه او لا یې څو ډوله نور مالیات هم اخیستل. موږ به اوس دغه ټول مالیات خلکو ته معاف کړو. ده په دې لیک کي دغه راز ویلي دي چي د محراب خان د قلمرو یوه برخه به شاه شجاع ته ورکړي ځکه چي محراب خان باید له انګرېزانو سره د دښمنی کولو سزا ووینی. مهرا ص ۱۰۹

له دې لیک څخه معلومېږي چي انګرېزانو، له ډېري پخوا څخه، د محراب خان د نسکورولو او

له منځه وړلو خیال درلود. دا چې له کومه وخته یې ورته سنجولې وه، موږ اطلاع نه لرو خو د مېسن له کتاب څخه په څرګنده ښکاري چې محراب خان انګرېزانو ته په هیڅ توګه تاوان نه وو رسولی او هیڅ ډول دښمني یې نه وه ورسره کړې.

که سړی په افغانستان کې د انګرېزانو، په تېره بیا مکناټن او برنس، اعمالو ته وګوري نو داسې ښکاري لکه دوی چې کارونه په وچ زور خرابول او په لوی لاس یې خلک پاڅون ته لمسول. موهن لال هم په دغه عقیده دی او وایي هر څونه چې خلک کرارېدل موږ په هغه اندازه داسې کارونه کول چې پر خپل پوځ باندې مو د دوی باور کماوه. موږ نه په خپله د چارو اداره په لاس کې واخیستله او نه مو شاه شجاع الملک ته اداره پرېښودله. انګرېزانو له پاچا سره په لومړي سر کې موافقه کړې وه چې د هغه په اداري چارو کې به مداخله نه کوي مګر په پټه یې په هر کار کې لاس واهه او په ښکاره یې د بېطرفۍ نقاب اغوستی وو. دی وایي په دې توګه مو هم پاچا له ځان څخه خوابدی کړ او هم مو خلک له ځانونو څخه ناراض کړل. دی وایي دا ډېره خواشینونکې ده چې موږ ټولي پیسې او امتیازات هغو دسیسه کارو او نالایقو خلکو ته ورکړل چې د ضرورت په وخت کې مو په هیڅ درد ونه لګېدل او هغه خانان او مشران مو خوابدي کړل چې د خطر په وخت کې مو حساب پر کولای سوای. موهن لال ص ص ۳۱۳-۳۱۴

دی وایي سره له هغه چې د شاه شجاع د وزیر ملا شکور حافظه دونه کمزورې سوې وه چې نه یې د پرون خبري او نه یې لیدلي سړي په یادېدل مګر له شاه سره زموږ د تړون په معنی ښه پوهېدی او دې حقیقت ته متوجه وو چې موږ په اداري چارو کې د مداخلې کولو حق نه لرو او دې مداخلې ته نه ملا شکور او نه شاه په ښه سترګه کتل. هغه کتاب ص ۳۱۵

شاه شجاع، له لومړي ورځې، د خپل مقام په برخه کې شکایتونه درلودل او نه یې غوښتل چې ده ته د یوه عادي ګوډاګي په سترګه وکتل سي. دی پوهېدی چې نه خپل خلک او نه انګرېزي صاحب منصبان هغه ته درناوی لري. ده څو ځله مکناټن ته په دې باره کې شکایتونه وکړل مګر داسې ښکاري چې د هغه څه په وس کې نه وه. مکناټن د ګورنرجنرال دفتر ته، په تېره بیا له جنرال ناټ څخه شکایت کاوه چې هم شاه شجاع ته په سپکه سترګه ګوري او هم د هغه ټولي کورنی ته. مکناټن څو ځله، جنرال ناټ ته په کندهار کې لیکلي وه چې د شاه شجاع د زوی شهزاده تېمور دربار ته چې په کندهار کې ګورنر دی، ورسي مګر جنرال ناټ د هغه امر نه وو منلی. مکناټن له دې ناحیې څخه ډېر خواشینی دی چې انګرېزي صاحب منصبان شاه شجاع ته په سپکه سترګه ګوري.

دی وایي سره له هغه چي څوک صاحب منصبان د شاه شجاع درناوي کولو ته مجبورولای نه سي خو لږ تر لږه هغه ته باید اضافه سپکاوی ونه کړي. والرص ص ۱۸۳ -۱۸۴

شاه شجاع څو ځله الیکزانډر برنس ته شکایت وکړ چي له دې ناحیې څخه سخت کړېږي. ده برنس ته وویل چي یو د باور سړی هم ورپاته نه دی. څوک چي دلته موجود دي یا تاسی ته زما شیطانت کوي او یا ماته ستاسي. ده برنس ته ویلي وه چي تر دغه ځای یې په لودیانه کي ډېر اختیارات درلودل او دا به له ده سره احسان وي چي که حج ته د تللو اجازه ورکړه سي. موهن لال ص ۳۸۷

شاه شجاع یو ځل مکناټن ته شکایت وکړ چي زه خپل محافظین او په بالاحصار کي مقرر سوي عسکر نه پېژنم او نه یې په وظایفو خبر یم. هغوی ماته د یوه پاچا په سترګه نه ګوري. څوک چي په بالاحصار کي وظیفه لري باید لږ تر لږه دونه پوه سي چي هغوی زما تر امر لاندي دي او د هغوی دغه ډول سلوک په ټولنه کي زما اعتبار خرابوي. ډال ریمپل ص ۲۰۶

شاه شجاع په یوه عجیب حالت کي ژوند کاوه. په دې کي شک نه سته چي هغه یو کمزوری سړی وو خو د هغه شاو خوا هم عجیبو خلکو نیولې وه. څوک چي یې دښمنان او مخالفین ول د هغو شمېر چاته څرګند نه وو او سړی ویلای سي چي د اولس ټول مشران یې مخالف ول خو څوک چي ورته نیژدې وه نو که ټول نه وي اکثریت یې غوړه مالان ول او هر یوه په هر کار کي خپلو ګټو ته کتل. هغه داسي فکر کاوه چي ټول جهان یې غلیم دی او په دښمنانو کي ژوند کوي.

یوه ورځ یې مکناټن ته، په بالاحصار کي، چي هغه خدای په اماني ورسره کوله وویل: ما څو ځله د خپلو خلکو د لاسه شکایت درته کړی او خپل اولس ته مي بد ویلي او هغوی مي ټول بد خلک بللي دي. زه به دا دی یو لیک درته وښیم او ته به په خپله وګورې چي زه په څنګه خلکو کي اوسېږم. شاه شجاع، مکناټن ته یو لیک وښود چي د ده د ړانده ورور شاه زمان مهر ورباندي لګېدلی او سردار سلطان محمدخان ته یې بلنه ورکړې وه چي کابل ته راسي او شاه شجاع، چي وطن یې د کفارو په لاس ورکړی دی، له تخته لیري کړي او پاچهي شاه زمان ته وسپاري. کې ص ۵۶۱

دا چي دا لیک به څومره ریښتیا وو د دې خبري معلومول یو څه ګران دي، خو شاه شجاع هغه منلی او خپل مشر او سکه ورور ته یې، سره له هغه چي تر مرګه یې د هغه درناوی کاوه، د یوه دښمن په سترګه کتل.

له هند څخه بهر د انګرېزانو د لښکرو د حملو په باره کي د هغه وخت د پوځي رپوټونو په اساس ترتیب سوي کتاب کي د شاه شجاع د شخصیت ډېره ښه ارزونه سوې ده.

"چي د شاه شجاع په باره کي خپلي خبري را لنډي کړو نو ویلای سو چي هغه نه خپلو متحدینو او نه خپلو خلکو ته وفادار وو. هغه یو کمزوری مخلوق وو چي په ډېر ستونزمن حالت کي یې ژوند کاوه. دی ډېر ژر د ګوډاګي حالت څخه ستړی سو او غوښتل یې چي یا سم پاچا سي او یا بیرته لودیانې ته ولاړ سي او په آرامه یو څو شپې ژوند وکړي. هغه ته ټولو د شک په نظر کتل او هیچا مینه نه ورسره لرل. شاه شجاع نه قهرمان وو او نه یې قهرماني کولای سوای. دی د برتانیې د حکومت په خوښه، د لودیانې له دوړو او خاورو څخه را پورته سوی وو او دا طبیعي خبره ده چي په هر کار کي یې هم باید خپل او هم د برتانیې د حکومت خیال ساتلی وای. له هغه څخه دا انتظار نه سوای کېدلای چي د ګوډاګي له حالت څخه دي یو دم یو قوي پاچا ورڅخه جوړ سي." ایکسپیډیشن ص ۴۰۶

که څه هم چي د شاه شجاع وزیر ملا عبدالشکور خو به چنداني د کار او فعالیت سړی نه وو؛ ځکه چي ویل کیږي هم ډېر زوړ او هم یې حافظه خرابه وه مګر لږ تر لږه د شاه شجاع باوري سړی وو او که لیري کېدلای نو باید چي د ده په سلا او امر لیري سوی وای او نوی وزیر محمدعثمان خان نظام الدوله، چي د شاه زمان د وزیر رحمت الله خان وفادار خان زوی وو د خپل پلار په څېر نالایقه، غوړه مال او دسیسه کار سړی وو او د شاه شجاع او انګرېزانو په مقابل کي د ورځ په ورځ نارضاییت د زیاتېدلو یو علت وو، هم انګرېزانو انتخاب کړی او وزیر کړی وو. په دې برخه کي له شاه شجاع سره چا سلا قدر هم نه وه کړې او هغه پوه سوی وو چي که یې تر پرون پوري څه قدرت درلود هغه یې هم له لاسه ورکړ. محمدعثمان خان یوازي د کابل د اداري په کنټرول او د شاه شجاع په بې وسه کولو بسیا نه سو بلکي خپل زوی عباس یې هم په کندهار کي د شاه شجاع د زوی شهزاده محمدتېمور سره د مرستیال په حیث مقرر کړ او ټول اختیارات یې ورڅخه واخیستل.

شاه شجاع دونه بې قدرته سو چي چاته یې له بیت المال څخه یوه پیسه د محمدعثمان خان له اجازې پرته نه سوای ورکولای. د هیڅ ډول دعوې د حلولو او هیڅ ستونزي د لیري کولو توان یې نه درلود. کله چي به چا عریضه ورته وکړه نو ده به د عریضې په پای کي ورته ولیکل چي "امر کیږي". شاه شجاع د دې یوې کلمې له لیکلو پرته، چي پوهېدی هیڅوک عمل هم نه په کوي هیڅ ډول واک نه درلود. هراتي ص ۱۳۲

له مکناټنه پرته، چې هر څه يې په نظر ګل او ګلزار ورتلل نور نو اکثرو انګرېزي صاحب منصبانو د اوضاع ورځ په ورځ خرابېدل ليدل او خپلو دوستانو او کله کله يې مقاماتو ته په ليکونو کې خپله وېره او انديښنه ښکاره کول. خو شاه شجاع، د خپل لومړي ځل پاچهۍ په ډول دوه ځله ژمی په جلال آباد او لغمان کې تېر کړ او ګواکې دی هم، سره له هغه چې له اداري وضعيت او خپلې بې واکۍ څخه يې شکايت درلود، نسبتاً بې غمه وو.

کله چې مکناټن، رابرټ سېل او نورو انګرېزي صاحب منصبانو خپلې مېرمنې او ماشومان له هندوستان څخه را وغوښتل نو شاه شجاع خو لا پاچا هم وو بايد چې خپلې مېرمنې او اولادونه يې رابللي وای. شاه شجاع له يوې خوا په خپلو مېرمنو پسې ديغ سوی وو او له بلې خوا دا وېره ورسره وه چې په پنجاب کې د رنجيت سينګهـ له مرګه سره، وضع ورځ په ورځ خرابېدله؛ ده ويل هسې نه چې يوه ورځ موضع دونه خرابه سي چې د کورنۍ رابلل به ورته غير ممکن سي. خو د شاه شجاع د کورنۍ رابلل د نورو په څېر عادي خبره نه وه.

جورج براډ فوټ او کولين ميکنزي ته وظيفه ورکړه سوه چې له لوديانې څخه د شاه شجاع او د هغه د ورور شاه زمان له کورنيو سره تر کابل پوري ملګري سي او ساتنه يې وکړي. د شاه شجاع او شاه زمان په حرم کې تقريباً شپږ سوه ښځې وې. له ماشومانو او نوکرانو سره يې شمېر تقريباً شپږ زرو ته رسېدی. له دوی سره د شاه شجاع خزانه، د کور قيمتي سامانونه او هر څه ورسره ملګري وه او د نقلولو له پاره يې پنځلس زرو اوښانو ته اړتيا درلوده. له دوی سره يوازې پنځو سوو عسکرو ته د ملګري کېدلو او ساتلو وظيفه ورکړه سوې وه. دا لوی کاروان په داسې وخت او شرايطو کې د پنجاب له سيمې څخه تېرېدی چې هلته ناکراری پيل سوې او لا ورځ په ورځ پسې زياتېدلې. دا لوی کاروان، چې خبرونه يې په سيمه کې تيت سوي وه د هرې ډلې او مشر له پاره د هغه کاروان د وهلو او غنيمت تر لاسه کولو تمه پيدا کړې وه. له دې کاروان سره په لاره کې د پنجاب عسکر هم ملګري سول چې د ميکنزي له پاره يې د ډاډ پر ځای انديښنه زياتوله. خو کاروان تقريباً پرته له کومې لويې پېښې تر کابل پوري را ورسېدی او پر بالاحصار باندې يې واړول. ډال ريمپل ص ص ۲۴۱-۲۴۰

هغسې چې شاه شجاع يې ښايي فکر کړی وو، د هغه حرم په ډېر خيريت او اسانه کابل ته ونه رسېدی. د هغه له مېرمنو سره لوی ملګری کاروان، د سيکهانو په سيمه کې تېرېدی او د پنجاب

امنیت، د رنجیت سینګهـ له مړیني وروسته، هره ورځ مخ پر خرابېدلو وو. کاروان په لاره کي څو ځله تهدید سو او یو ځل خو سیکهانو په یوه حمله کي د ښځو څخه زېورات او جواهرات ولوټل. مګر کپتان براډ فوټ هغوی ته اخطار ورکړ چي که په لسو دقیقو کي ټول زېورات او لوټ کړي مالونه بیرته حاضر نه کړي نو د انګرېزي پوځ د حملې انتظار دي وباسي. د ده له غوښتني سره سم عمل وسو او زېورات یې بیرته ورته راوړل. یو ځل خو لا د شاه شجاع د یوې مېرمني اوښ غوزار سو او د هغه مېرمن په کجاوه کي تر اوښ لاندي سوه. هغه دونه سخته زخمي سوه چي څو ساعته وروسته وفات سوه. بوییسټ ص ص ۲۶۵-۶۶

د شاه شجاع د حرم ښځینه او نارینه نوکرانو او ساتونکو له شمېر څخه سړی اټکل کولای سي چي د نېستمن کابل پر عایداتو باندي به یې څومره لوی بار ایښی وي. او دا بار د داسي یوه پاچا کورنۍ ایښی وو چي وطن ته یې پرته له شره هیڅ ډول خیر نه وو رسولی.

میکنزي په جلال آباد کي وضع له نیژدې ولیدله او چي د انګرېزانو په مقابل کي یې د خلکو نفرت ولیدی نو هک پک سو. کله چي هغه کابل ته ورسېدی نو له مکناټن او برنس سره یې وکتل او خپل بیان یې ورته وکړ. مکناټن خو د میکنزي پر خبرو بېخي غوږ ونه نیوی او برنس هم تقریباً هغه ته مشابه نظر درلود او ویل یې چي ټول شیان کرار کرار سمېږي. میکنزي له دې کتني څخه ډېر مأیوس سو او په کلکته کي یې خپلي خسرګنۍ ته ولیکل چي په افغانستان کي وضع ډېره سخته خرابه ده. زموږ زړه ورو ملګرو ته یا باید تقویتي قواوي را ولېږلي سي او یا باید ټول دلته هلاک سي. ډال ریمپل ص ۲۴۲

## امیر دوست محمدخان د عمل په میدان کي

دوست محمدخان، چي د (۱۸۳۹م.) کال په اګسټ کي بخارا ته تښتېدلی وو، د بخارا امیر یې یو څه وخت ښه قدر وکړ. دا چنداني معلومه نه سوه چي د بخارا امیر ولي له هغه سره خپل سلوک بدل کړ. هغه یې بندي کړ او حتی د وژلو هڅه یې وکړه. خو د خپلو خلکو له وېري یې داسي یو سړی په یوه اسانه نه سوای وژلای چي کفارو یې پاچهي ورڅخه اخیستې او هغه د اسلام مځکي ته بناه راوړې وه. دوست محمدخان، یو کال وروسته، له بخارا څخه وتښتېدی او خُلم ته یې ځان ورساوه. د خُلم والي سمدستي مالي او پوځي مرسته ورسره وکړه او د انګرېزانو له پاره یې په شمالي سیمو او

کوهستان کي اوربل کړ.

د (۱۸۴۰م.) کال له اوړي حتی له پسرلي څخه د هیواد له بېلو بېلو برخو څخه د ناکرارۍ آوازې او رپوټونه را رسېدل. د گورنرجنرال دفتر ته د کابل د ادارې، شاه شجاع او د افغانستان په هره برخه کي د نا آرامیو او نارضایتیو رپوټونه ورتلل او کله چي به هغوی له مکناټن سره تماس ونیوی ده به، له معمول سره سم، ټول رپوټونه رد کړل. د (۱۸۴۰م.) کال د اگسټ پر څلورمه یې د گورنرجنرال سکرتر کالوین ته ولیکل:

"زما له پاره دا ډېره دردوونکې ده چي حکومت د هغو کسانو رپوټونو ته توجه کوي چي له سهاره تر ماښامه بې کاره ناست دي او د کیسو له جوړولو پرته بل هیڅ کار نه لري. دوی څکه په شاه شجاع او د هغه په حکومت پوري د دروغو کیسې جوړوي چي دوی د دغه حکومت په خاطر په داسي یوه هیواد کي بند پاته دي چي د شرابو ویالې نه پکښي بهېږي. شاه د مشرانو په پخلا کولو کي خپل ټول وس کوي. دی په ډېر صبر او حوصله ټولو شکایتونو او عرضونو ته که څه هم ډېر به نامعقول هم وي غوږ نیسي او هیڅ یو بې جوابه نه پرېږدي. تاسي ته ویل سوي دي چي شاه شجاع داسي واکمن دی چي نه په چا باور لري، نه چاته انعام ورکوي او نه سزا ورکوي. دا خبري ټولي چټي او بې ځایه دي او هره یوه پر خپل ځای ردېږي. ما د اعلیحضرت په باره کي خپل نظر درته ویلی دی او نور څه نه سم وربانديږ زیاتولای. زه په دې عقیده یم چي دی په خپله پاچهي کي تر ټولو لایق سړی دی. ددې هیواد د عایداتو تاریخ په څو کلمو کي خلاصه کېدلای سي. څه پیسې چي لاس ته راځي هغه په ملایانو او جوماتونو، په عسکرو او د اعلیحضرت د کورنۍ په لگښتونو لگول کیږي. چي زه نیم ساعت وخت پیدا کړم دا ټول به ټکي په ټکي درته تشریح هم کړم. ته پوهېږې چي موږ په ټینگه ژمنه کړې ده چي د افغانستان په داخلي چارو کي به لاس نه وهو. او زما خپله مشوره هم دا ده چي موږ باید په دې لومړیو شپو ورځو کي داسي کار ونه کړو چي خلک هسي بې ځایه وپاروو..." کې ص ص ۵۳۳

مکناټن که د گورنرجنرال دفتر ته هر څونه د افغانستان په باره کي د خیریت رپوټونه ورکول، کله کله مجبورېدی چي ریښتیا هم ووایي. په لومړي سر کي خو ریښتیا هم هر ځای، په نسبي صورت، خیریت وو خو وروسته هم په ختیځ کي د غلجیو سیمو، هم له کندهاره تر کابله د غلجیو علاقو او په شمال کي د کوهستان او بامیان سیمو اور واخیستی. مکناټن خپل دفترته ولیکل: "د باجگاه سره

نیژدې حالات سم نه دي، ځکه چي د ګورکه کنډک صاحب منصب یو نالایقه سړی دی. د ده په یوه ټولۍ کي دیرش ځلوېښت تنه وژل سوي او زخمیان سوي دي. زه د دې موضوع په باره کي چنداني فکر نه کوم. لارډ د کارونو د سمبالولو له پاره ورغلی دی. میګریګور هم په خپل ماموریت کي پاته راغلی دی. یو توپ یې له لاسه ورکړی دی او نه ماتېدونکي عسکر یې پر شا سوي دي. دا ټول شیان چي پر یوه ځای پېښ سي نو د سړي حتماً چرت خرابېږي. مګر انشاءالله! د کمپنی نصیب به پر دې ټولو ستونزو غالب سي. هغه کتاب ص ۵۴۶

یوه هفته وروسته داسي څرګنده سوه چي حتی د پایتخت په ګاونډ کي هم یاغیانو د شاه شجاع د حکومت د نسکورولو له پاره د عملیاتو نقشې جوړي کړي دي. یوه رپوټ خو لا ویل چي سیکهانو، له ډېري لیري فاصلې څخه، له دوست محمدخان سره دسیسې پیل کړي دي. د اګسټ پر نولسمه مکناټن د ګورنرجنرال دفتر ته ولیکل:

"موږ یو لیک را ګرځولی دی چي که صحیح وي او زه د هغه د جعلي ثابتولو له پاره دلیل هم نه لرم چي له متن څخه یې ښکاري چي ډېرو مشرانو په کابل کي د یوه ښورښ له پاره تیاری کړی دی. په دې لیک کي په مشخصه توګه راغلي دي چي نونهال سینګهـ د دغه ښورښ سره د مالي مرستو د کولو ژمنه کړې ده. زه اوس شاه شجاع ته ورځم او په دې باره کي چي څه باید وکړو سلا ورسره کوم." هغه مخ

**مکناټن د سپتمبر په میاشت کي د ګورنرجنرال دفتر ته ولیکل:**

"تن د سپتمبر پر دریمه رپوټ را ورسېدی چي ټول ترکستان د فرنګیانو پر ضد وسلو ته لاس اچولی دی. دا یقیني ده چي ایبک د دوست محمدخان قواوو ته په لاس ورغلی دی او احتمال لري چي کوډ رینګټن سیغان ته پر شا سي. یوازي په باجګاه کي زموږ عسکرو یو کوچنی بری تر لاسه کړی دی او په دغه مي خپل زړه خوشاله کړی دی." هغه کتاب ۵۴۸

مکناټن د سپتمبر پر پنځمه لارډ اکلینډ ته ولیکل: "موږ دغه ګړی واورېدل چي له کابل څخه د آمو تر سیند پوري ټول هیواد د دوست محمدخان په طرفداري پاڅېدلی دی. زموږ پوځیانو د بامیان خوا ته عقب نشیني کړې ده او که دښمن هلته هم حمله ورباندي وکړي زما سره ډېره اندېښنه نه سته، مګر د دوی تاکتیکونه ښایي توپیر ولري. کوهستان پاڅون ته تیار دی او ټول ښار له خاینانو او ناراضي کسانو څخه ډک دی. زموږ توجه ښایي په عین وخت کي په مختلفو ځایونو کي ښورښونو ته واوړي." هغه کتاب ص ۵۴۹

بریالیتوب ډېر خوشاله نه سو؛ د هغې سیمي ښورښونو وارخطا کړی او له شاه شجاع څخه یې غوښتي وه چي د شمالي د سیمي د خانانو او مشرانو په نوم د پخلاینې لیکونه او فرمانونه ولېږي گوندي یو څه وضع کراره کړي. کهزاد ۴۶۳



امیر دوست محمد خان

موهن لال رپوټ ورکوي چي شاه شجاع الملک خپل د دربار یو مهم سړی منصور خان چاوس باشي زموږ سره واستاوه څو په شمالي سیمو کي د مشرانو ملاتړ تر لاسه کړي او دغه راز د هغو سیمو د وضعیت په باره کي اطلاعات برابر کړي. شاه شجاع دغه راز د مکناټن څخه وغوښتل چي د دغه هدف له پاره یو څه پیسې هم ورکړي. مگر وروسته معلومه سوه چي اعلیحضرت د دې پیسو ډېره برخه په خپل درد وهلې او خپلي خزانې ته یې انتقال کړي دي. موهن لال وایي غلام خان پوپلزي، چي له لومړي سره زموږ ملگری او موږ ته یې په دغه بحران کي ډېر زیات خدمتونه کړي وه، د یاغیانو دوه مهم مشران خواجه خانجي او خواجه عبدالخالق، شاه شجاع ته، په بیعت کولو

راضي کړل او له میرمسجدي خان سره یې هم خبري کړي وې؛ مگر پرته له دې چې غلام خان پوپلزي ته څوک اطلاع ورکړي، زموږ قواوو، د اکتوبر پر دریمه سهار وختي، د میرمسجدي خان پر قلا باندي حمله وکړه او د تل له پاره یې زموږ دښمن کړ. موهن لال دوهم ټوک ص ص ۳۴۸-۳۵۰

په دغه حمله کي د میرمسجدي خان ملگري ډېر ښه وجنگېدل او انگرېزانو چي هر څونه کوښښ وکړ قلا یې فتح نه کړه خو میرمسجدي خان دونه سخت زخمي سو چي مقاومت یې کولای نه سو. هغه په شپه کي له قلا څخه وتښتېدی او ځان یې نجراب ته ورساوه. انگرېزانو په جلگه کي د مسجدي خان قلا تباه کړه. څو ورځي هلته معطل سول او د هغي سیمي خاني او مشرتوب یې د مسجدي خان یوه رقیب خواجه پادشاه ته وسپاره.

د انگرېزانو پوځونه د اکتوبر پر اتمه د چاریکار خوا ته ولاړل او فکر یې کاوه چي گوندي د دوست محمدخان له قوې سره به مخامخ سي مگر امیر د نجراب خوا ته خوځېدلی وو. هر څومره چي د مجاهدینو روحیات غښتلي کېدل په هغه اندازه د شاه شجاع په لښکرو ماته گډېدله او د هغه له پوځ څخه د عسکرو تښتېدل پیل سول. د ضابط مول د ټولی ټول کوهستاني عسکر له دوست محمدخان سره یو ځای سول. د یاغیانو یو غښتلی مشر میردرویش خان چي د بابا قشقار په قلا کي پروت وو د سردارمددخان د مور د امیردوست محمدخان د خور په غوښتنه او ننواتو له دوست محمدخان سره ملگری سو. موهن لال وایي دا ښځه د خپل ورور امیردوست محمدخان په څېر چالاکه او هوښیاره وه او ماته رپوټ ورسېدی چي دغه ښځه په بامیان کي د خپل ورور د ماتي څخه وروسته پر مشرانو گرځېدله او هغوی ته یې قرآن په لمنه کي اچاوه او د انگرېزانو پر ضد یې پارول او له دوست محمدخان سره ملگري کېدلو ته یې هڅول. موهن لال ص ص ۳۵۱-۳۵۲

میرمسجدي خان او د مجاهدینو نورو مشرانو دوست محمدخان ته چي دا وخت په تاشقرغان کي وو، بلنه ورکړې وه چي په شمالي کي د دوی سره یو ځای سي. په دغو شپو ورځو کي د انگرېزانو او مجاهدینو تر منځ په توتم دره کي، د علیخان د قلا پر شاوخوا، په یوه خونړي جنگ کي انگرېزانو ته ډېر سخت تلفات ورسېدل او په دې عملیاتو کي د هغوی یو مهم جنگي صاحب منصب کپتان ایډورډ کانلي ووژل سو. کهزاد ص ۴۵۵

الیکزانډر برنس له شاه شجاع څخه وغوښتل چي د کوهستان او نجراب د مشرانو په نوم فرمانونه او لیکونه ورته را ولېږي څو هغه د مشرانو په دلاسا کولو کي کار ورڅخه واخلي. شاه شجاع هم د

هغه له غوښتني سره سم د میرمسجدي خان، محمدشاه خان، نایب سلطان محمدخان، میرسیدخان، نواب خان، میرخواجه خان، رجب خان او کرم خان او دغه راز د نجراب د پاڅون د مشرانو په نامه لیکونه ور ولېږل؛ هغوی ته یې عفوه اعلان کړه او له دربار سره یې د همکاری کولو او د پاچا د اطاعت کولو غوښتنه ورڅخه وکړه. البته دې لیکونو څکه ګټه ونه کړه چې خلکو پر شاه شجاع باندي اعتماد له لاسه ورکړی وو او دا وخت لا دوست محمدخان هم له هغوی سره یو ځای سوی او د هغوی په مقاومت کي یې نوې ساه پو کړي وه. هغه کتاب ص ۴۶۴

## دوست محمدخان او د پروان درې جنګي عملیات

انګرېزانو په دوست محمدخان پسي دلته هلته کتل. د هغه د پوځي فعالیت ټاکلی ځای یې پیدا کولای نه سوای. د هغه وجود او د هغه قوت دواړه معما وه. مکناټن خو یو ځل ولیکل چي سړي ته د هغه د قواو شمېر هم نه معلومېږي. څوک وایي لس زره تنه ورسره دي څوک وایي ټول لښکر یې شپېر سوه تنه دی. بالاخره د انګرېزانو غښتلي او زړه ور صاحب منصبان په پروان دره کي په خپله د امیر دوست محمدخان سره مخامخ سول. یوه صاحب منصب چي په دې جنګ کي یې برخه درلوده په خپلو یاداشتونو کي لیکلي دي: "افغانان د تپې پر یوه اړخ او برتانوي پوځیان یې پر بل اړخ وه. دوست محمدخان زموږ سپاره عسکر ولیدل چي پر مخ ور روان وه، او له هغې شېبې یې له خپل مغز څخه د پرشا کېدلو فکر لیري کړ. د قوي افغانانو د سپرو یوه وړه ډله ورسره وه، خو د آسونو یې چنداني مزه نه وه، او ده له حمله کوونکو سره د جګړې تیاری وکړ. د ده څنګ ته له یوه تن سره شین بیرغ ورسره وو او له هغه ځایه څخه معلومېدله چي دوست محمدخان به چیري ولاړ وي. ده د خپل آس کیزه راکش کړه او بیا یې نو خپله سپینه لونګی له سره لیري کړه. د خپلو عسکرو په مخ کي سرتور ودرېدی او پر خپلو ملګرو یې بږغ وکړ چي د خدای او رسول په نامه لعنتي کافران د اسلام له خاوري و شړئ. په زوره یې ناره کړه چي په ما پسي راځئ او کنه، زه نور ولاړم او پر ورک مي وشمېرئ. افغان سپاره آرام خو په ډېرو متینو ګامونو را پر مخ سول. انګرېزي صاحب منصبانو چي په حمله کي یې زموږ د قواوو رهبري کوله ځانونه خزه کړل. ځایي عسکر لکه پسونه داسي وتښتېدل. افغان سپرو چي د انګرېزانو د سپرو عسکرو بې زړه توب ولیدی نو مخ ته راغلل او خپل دښمنان یې پسي واخیستل او سم یې د برتانوي عسکرو پر مورچو باندي حمله وکړه. تر څو چي

زموږ د توپونو مخې ته را ورسېدل. د افغانانو تورو او نېزو زموږ په سپرو عسکرو لو ګډ کړ. ضابط براډ فوټ او ضابط کریسپین يې ټوټې ټوټې کړل. ډاکټر لارډ په مرمۍ ولګېدی او یوه بل افغان يې د خنجر په واري کار ورتمام کړ. تورن فرېزر او تورن پونسون بې، چې په زړه ورتوب کې يې د روم د افسانو تر قهرمانانو اړولې ده، ډېر سخت ټپيان سول. هغوی اوس هم ژوندي دي او خپل د هغې ورځې داستان چې غرور او سپکاوی دواړه پکښې ځرګند دی بیانولای سي.

زموږ د پوځونو د ستون مخې ته، چې زموږ ملي بيرغ رپېدی افغانان د ميدان د مېړونو په څېر څو شېبې ودرېدل او په آرامه له میدانه ووتل. سر الیکزانډر برنس دې فاجعې ته حیران تللی وو او سرویلیم مکناټن ته يې ولیکل چې موږ پرته له دې چې خپلې قواوې ټولې کابل ته را وبولو او خپل ټول پوځيان په یوه مرکز کې را غونډ کړو بله لاره نه لرو." هغه کتاب ص ص ۵۶۴-۵۶۵

برنس مکناټن ته ولیکل چې ټولې قواوې په مرکز کې را غونډې کړي او بله چاره نه لري. خو په دغه وخت کې دوست محمدخان بل فکر کاوه. هغه پوه سو چې پر انګرېزانو باندي د ده بریالیتوبونه به هغوی نور هم په غوسه کړي او نوري قواوي به را وغواړي او د ده له انګرېزانو سره جنګ په وس پوره نه دی. خو هغه ښه جنګېدلی وو او په هغه ورځ يې په دونه زړه ور توب فتح کړې وه چې چا ګوته ورته نيولای نه سوای. انګرېزان نه پوهېدل چې دوست محمدخان د هغې ورځې له جنګ څخه وروسته چېري ولاړ او د راتلونکې له پاره څه پلانونه لري؛ خو دوست محمدخان د هغه وروستي جنګ په سبا د ماښام په وخت یوازې له یوه بل سپاره سره د کابل په ښار کې، چې مکناټن خپله د آس سورلي کوله، حاضر سو. هغه سپاره د مکناټن پوښتنه وکړه او کله چې مکناټن ورته وویل چې زه په خپله یم نو سپاره ورته وویل چې امیر راغلی دی. مکناټن دونه وارخطا سو چې نابوبره يې له خولې چيغه پورته سوه چې کوم امير؟ هغه جواب ورکړ چې دوست محمد. او له دې خبري سره دوست محمدخان حاضر سو او مکناټن ته يې وویل چې زه غواړم ستاسي دولت ته ځان تسلیم کړم. د مکناټن له پاره دا پېښه دومره حیرانوونکې وه چې نه پوهېدی څه ووايي. امیر خپله توره هغه ته تسلیم کړه خو مکناټن په ډېر احترام د هغه توره بیرته ورکړه. دوست محمدخان خپلو اولادونو ته هم ولیکل چې د ده لاره تعقیب کړي او لږ وروسته، د مشر زوی محمدافضل خان په شمول، ډېر نور اولادونه ورسره یو ځای سول.

دوست محمدخان، انګرېزانو ته د خپلې تسلیمۍ په باب چاته هيڅ نه دي ويلي او انګرېزانو هم

په دې باره کې پرته له دې چې ووايي دوست محمدخان په ځان کې د نوري مقابلې توان نه لیدی نو ځکه تر دې وروستي جنګ وروسته يې ځان تسلیم کړ بل څه نه دي لیکلي. خو فیریه وايي چې له دوست محمدخان سره په هغه وروستي جنګ کې، چې په پروان دره کې يې وکړ، له ځان سره یوازي اتیا تنه ملګري درلودل. داسي انتظار کېدی چې هغه به خپلو حملو ته دوام ورکوي خو په هغه شپه د انګرېزانو جاسوسان د امیر د کوچني پوځ منځ ته ورسېدل او پیسې يې ووېشلې او له امیر څخه ملګري جلا سول. ضمناً انګرېزانو اعلان وکړ چې د امیر پر سر باندي يې ډېر زیات انعام ایښی دی او دې نبلیغ له هر چا سره دا تمه پیدا کړه چې که امیر انګرېزانو ته په لاس ورکړي نو شتمن به سي. امیر دوې درې شپې وروسته یوازي پاته سو او په غرونو کي پټ ګرځېدی او بالاخره يې ځان مکناټن ته تسلیم کړ. فیریه ص ۳۳۹

که څه هم چې فیریه خو د معمول په څېر خپل مأخذ نه ښيي، خو لیکنه يې یو څه د تأمل وړ ښکاري. دا چې دوست محمدخان به په خلکو باور نه درلود او له خپل اولسه به يې د هر ډول ناروا کار تمه درلوده دا ډېره بې ځایه خبره نه ده ځکه چې له هغه سره خپلو وروڼو او نیږدې کسانو ډېر زیات خیانتونه کړي وه او امیر د هر ډول او پر هر چا باندي د بې باوری حق درلود. خو دا چې د دوست محمدخان د دونه څرګندي فتح په ماښام دي د انګرېزانو جاسوسان د دوست محمدخان د کوچني پوځ منځ ته ورغلي او هلته به يې پیسې وېشلي وي یو څه له امکانه لیري ښکاري. او یوه خبره لا دا چې ټول متون وايي دوست محمدخان د پروان درې د جنګ په سبا ځان مکناټن ته تسلیم کړ او فیریه وايي چې هغه درې شپې په غرونو کي یوازي ګرځېدی. په هر صورت، دوست محمدخان هوښیار سړی وو او څرنګه چې فاتح نه محاکمه کیږي او هغه بالاخره میدان ګټلی دی نو موږ يې هم پر دغه عمل ډېره تبصره نه کوو.

دوست محمدخان لس ورځي په کابل کي پاته سو او په هغو لسو ورځو کي د کابل ټول مشران ورته راغلل او هر یوه يې جلا جلا قدر وکړ. امیر هم د دوی ټولو درناوی وکړ او له ټولو سره يې په ډېره آزادي خبري کولې. کپتان نیکلسن د دوست محمدخان د ساتونکي او ترجمان په حیث حاضر وو. هر چا چې په دغه وخت کي دوست محمد لیدلی دی دا به ممکنه نه وي چې د هغه او شاه شجاع شخصیتونه يې سره مقایسه کړي نه وي او له هره پلوه يې دوست محمدخان تر شاه شجاع بهتر نه وي بللی. کي ص ص ۵۶۵-۵۶۸

انګرېزانو ته د امیر دوست محمدخان د تسلیمېدلو موضوع د مرحوم کهزاد په شمول ډېرو افغاني

مؤرخینو غندلې او دا یې د هغه داسې اشتباه ګڼلې ده چې د بخښلو وړ نه ده. دوی وایي چې امیر په دې کار سره د مجاهدینو تحریک له ناکامۍ سره مخ کړ او انګرېزانو ته یې په کابل کې د یوه کال نور پاته کېدلو مهلت ورکړ. کهزاد ص ۴۷۴

امیر دوست محمدخان انګرېزانو ته د تسلیمېدلو د فیصلې په باب هیڅ وخت هیڅا ته څه نه دي ویلي او دا سِر یې له ځانه سره ګور ته وړی دی. مګر د هغه په باره کې داسې قضاوت کول څکه یو څه بې ځایه او حتی ظالمانه دی چې لومړی خو د امیر دوست محمدخان له تسلیمېدلو سره نه پاڅون پای ته ورسېدی او نه په خلکو او مشرانو ماته ګډه سوې ده او تاریخ ثابته کړه چې نهضت ورځ تر بلې قوي سو او د پاڅون د میدان وروستی او تر ټولو مهم رهبر او قوماندان د ده زوی سردار محمداکبر خان وو.

تاریخ شاهد دی چې له کابل څخه تر جلال اباد پورې د انګرېزانو د پوځ د بشپړ تباه کېدلو او له هیواده څخه د هغوی د وتلو وروسته که بیا هم امیر دوست محمدخان ځان کابل ته نه وای رسولی نو د قدرت پر سر داخلي جنګونو به دوام کړی وای او د سر او مال د تاوانونو د اندازې په باب یې هیڅ چا نه اټکل کړی او نه یې کولای سي.

دا هم د امیر دوست محمدخان د توري او تدبیر برکت وو چې بیرته یې د افغانستان د شمال ټولې علاقې تر کنټرول لاندې راوستلې او کندهار او هرات یې د کابل سره یو ځای کړل. که دوست محمدخان نه وی نو دا هیڅوک نه سي ویلای چې دې سیمو ته به څه پېښه سوې وای. که نور هیڅ نه وي نو سړی دونه ویلای سي چې د هرات اینده لږ تر لږه نامعلومه وه.

امیر دوست محمدخان هم د خپل وطن سره مینه او هم یې د توري په میدان کې خپل زړه ورتوب او هم یې تدبیر د عمل په میدان کې آزمېیلی او ثابت کړی وو. که له هغه سره وطن پالنه، او د توري او تدبیر کمال نه وای او ټولو مشرانو منلی نه وای نو دا به چنداني ممکنه نه وای چې محمدشاه خان غلجی، امین الله خان لوګری، نواب محمدزمان خان او نورو مشرانو دې د هغه مشرتوب منلی وای.

## مکناټن د امیر دوست محمدخان له تسلیمېدلو وروسته

مکناټن په کابل کې د امیر دوست محمدخان د اوسېدلو په وخت کې څو ځله له هغه څخه وغوښتل چې له شاه شجاع سره ووینې مګر دوست محمدخان ونه منله. حتی کله چې شاه شجاع هغه ته د مېلمستیا په ډول ډوډۍ ور ولېږله امیر هغه جواب کړه او دا شاه شجاع ته د یوه افغان په حیث تر ټولو لوی سپکاوی وو. دوست محمدخان مکناټن ته وویل چې زه له شاه شجاع سره کار نه لرم. زه کابل ته د دې له پاره نه یم راغلی چې هغه ته بیعت وکړم بلکې راغلی یم او تاسې ته مې ځان تسلیم کړی دی.

شاه شجاع له مکناټن څخه وغوښتل چې د دوست محمدخان خېمې ته یو قاتل ور واستوي او هغه ووژني او که نه وي نو لږ تر لږه ړوند یې کړي. خو مکناټن د هغه غوښتنه ونه منله. ډال ریمپل ص ۲۲٦

امیر دوست محمدخان د نومبر پر دوولسمه له یوې قوې عسکري قطعې سره هندوستان ته واستول سو او مکناټن دوې میاشتې وروسته هندوستان ته ولیکل:

زه هیله لرم چې له دوست محمدخان سره به سخاوتمندانه سلوک وسي. د ده قضیه د شاه شجاع سره پرتله سوې ده او ما دا استدلال اورېدلی دی چې وایي له ده سره باید تر شاه شجاع بهتر سلوک ونه سي. مګر یقیناً د دې دوو کسانو قضیې یو شان نه دي. شاه شجاع پر موږ باندې هیڅ حق نه درلود. له تخته څخه د هغه په پرزېدلو کې موږ هیڅ لاس نه درلود. مګر له دوست محمد څخه مو، چې موږ ته یې هیڅ آزار نه وو راکړی پاچهي اخیستې ده. هغه یوازې زموږ د پالیسی قرباني سو. کې ص ٥٦٨

په هغه وخت کې له کابل څخه د انګرېزانو یو خبر لیکونکی له دوست محمدخان سره د ملګرو کسانو او د هغوی د شمېر په باب رپوټ ورکوي، چې سړی حیران ورته پاتېږي او حتی زړه ته یې نه لوېږي. له امیر دوست محمد خان سره (۳۴) ښځینه، (۴٦) د کورنی نور غړي، (۱۲۰) مینځیانې، (۵۲۴) نارینه نوکران او (۵۲) غلامان ملګري ول چې ټول ټال (۷۷٦) تنه کېدل. پر دې برسېره له امیر سره خپل پوځي ملګري او د هغوی نوکران هم ملګري ول چې شمېر یې (۲۳۸) ته رسېدی. مهرا ص ۳۹۷

له دې څه باندې زرو تنو له پاره یو سیاسي استازی ټاکل سوی وو او هغه ته امر سوی وو چې امیر ته ژر تر ژره له کمپ څخه حرکت ورکړي.

د دوست محمدخان له تسلیمېدلو سره، مکناټن داسې فکر وکړ چې ټول مسایل حل سوي وي. له خوښۍ څخه یې پښې ځمکې ته نه ورتللې او فکر یې کاوه چې اوس نو باید ټول هغه کسان له ده څخه بخښنه وغواړي چې د ده پر خبرو یې غوږ نه نیوی او د افغانستان وضع یې خطرناکه بلله. مکناټن د گورنرجنرال دفتر ته ولیکل: "د دوست له تسلیمېدلو سره وضع داسې کراره سوې ده چې زه اوس د هیڅ شي څخه اندېښنه نه لرم. هغو صاحب منصبانو چې تر پرونه پورې یې له ډېره کاره شکایت کاوه اوس له بې کاره په عذاب دي. زما وروستی اطلاع وایي چې دوست صحي سالم پېښور ته رسېدلی دی او کورنۍ یې جلال آباد ته را ورسېده..." کې ص ۵۷۰

مکناټن د گورنرجنرال خصوصي سکرتر ته ولیکل چې موږ تر اوسه پورې له ځانونو څخه د دفاع په غم کې وو او بل هیڅ کار ته فارغ نه وو مگر اوس دا دی بې غمه سولو او د اداري او اقتصادي اصلاحاتو په برخه کې به اقدامات کوو. ده وروسته ولیکل چې موږ باید ډېر ژر د اصلاحاتو انتظار ونه لرو. اوس حاضر لا وضع داسې ده چې دا هیواد ډېرو زیاتو مالي مرستو ته اړتیا لري. ده ولیکل چې په دې هیواد کې خلکو له ډېرشو کالو راهیسې (ولې ډېرش کاله ؟) مالیات نه دي ورکړي او هر وخت د برچې او عسکرو په زور ورڅخه اخیستل سوي دي. دې خلکو د مالیاتو د ورکولو عادت بېخي هېر کړی دی او د هغوی پر لار کول او له هغوی څخه منظم مالیات اخیستل وخت ته ضرورت لري. هغه کتاب ص ۵۷۱

مکناټن له لومړي سره د افغانستان په تباه کولو او له امیر دوست محمدخان سره جنگ ته د گورنر جنرال او په نتیجه کې د برتانیې په تشویقولو کې لوی لاس درلود. کله چې افغانستان ته داخل سو نو هم یې د شاه شجاع څخه د قدرت په اخیستلو او هم یې د بې کارو، مفسدو او غوړه مالو عناصرو په مقررولو کې لوی او عمده لاس درلود. چا چې د افغانستان په باب واقعیتونه لیکل؛ ده فکر کاوه چې د ده پر ضد دسیسه کوي. په داسې حال کې چې دی په خپله هم د ځان او هم د ټولو دښمن وو.

په دغه وخت کې چې مکناټن د گورنرجنرال دفتر ته د خوښۍ لیکونه لېږل او دوست محمدخان هندوستان ته پر لارې وو، په همدغه وخت کې د افغانستان په هره سیمه کې ناکراری راوني وې او

ورځ په ورځ يې زور اخيستی.

شاه شجاع هند ته د دوست محمدخان له روانېدلو څخه وروسته د ژمي د تېرولو له پاره جلال آباد ته حرکت وکړ. په جلال آباد کې مېجر ميګريګور شاه شجاع ته درې ليکونه وښودل چې د هغه مهرونه او لاسليکونه ورباندې موجود وه او د کوهستان له خلکو څخه غوښتنه پکښې سوې وه چې د انګرېزانو پر ضد جهاد ته ملا وتړي او له خپلې خاورې څخه يې وباسي. شاه شجاع په دې ليکونو کې له غازيانو سره خپل بشپړ ملاتړ ښودلی وو. شاه شجاع دا ليکونه وليدل او په دې کې يې هيڅ شک نه درلود چې مهر او لاسليک دواړه د ده وه. ډېر سخت وارخطا سو او يوه ورځ وروسته يې خپل منشي ميرزا ابراهيم ور وغوښت او قضيه يې ورته بيان کړل. ميرزا ابراهيم د مکتوبونو له لوستلو څخه وروسته وويل چې دا نور مکتوبونه دي او د غرض خاوندانو د مکتوبونو متنونه پاک کړي او ستاسي مهرونه او لاسليکونه يې پرې ايښي دي او بيا يې نو ستاسي په نامه خپاره کړي دي. کله چې شاه شجاع مکناټن ته قضيه بيان کړه نو د هغه هم زړه ته ولوېده او ټولو نورو انګرېزي صاحب منصبانو ته يې اطمينان ورکړ چې د شاه په برخه کې شک او بدګومانۍ ته اجازه ور نه کړي.
هراتي ص ۱۲۹

انګرېزانو له دې پېښې څخه مخکې هم د شاه شجاع په باره کې شکونه درلودل او ښايي د نظام الدوله عثمان خان رپوټونو به يې نور هم شکونه زيات کړي وي؛ خو له دې پېښې څخه وروسته يې شکونه نور هم زيات سول. البته دا ادعا يو څه له امکانه لېرې ښکاري چې له نن څخه څه کم دوه سوه کاله مخکې دي په افغانستان کې چا داسې مواد پيدا کړي وي چې د يوه مکتوب متن په داسې شکل پرې مينځي چې د مګريګور او مکناټن په سويه خلک دي هم د هغه په جعل کاريو پوه نه سي.

سرجان کې فکر نه کوي چې شاه شجاع دې، په داسې حال کې چې په کابل، کندهار او نورو لويو او وړو ښارونو کې دي د انګرېزانو پوځونه پراته وي او شاه دي په افغانانو کې هم طرفداران ونه لري د داسې يوه عمل جرأت کړی وي. دی وايي سره له هغه چې د شاه شجاع زمونږ څخه ښه نه راتلل او په دې خوشاله وو چې انګرېزان مات سي او دی د هغوی له حاکميته پرته پر هيواد باندې حکومت وکړي؛ خو هغه داسې يو سړی وو چې تل د نورو په لاسونو کې لوبېدلی وو او غوښتل يې چې ځان د ټولو دوست وښيي او خپله ګوزاره وکړي نو سړی د داسې يوه زړه ور اقدام تمه نه سي ورڅخه کولای. کې وايي شاه شجاع له انګرېزانو سره هيڅ خواخوږي نه درلوده او يوازې د هغوی

له پیسو سره یې مینه درلوده. دی د انګرېزانو د مرستو په اهمیت پوهېدی مګر په زړه کې یې ویل چې کشکي دا مرستې له لیرې ورته رسېدلای. د ده زموږ دوستي خوښه وه خو موږ یې په وطن کې خوښ نه وو. کې وایي زه د ځینو کسانو دا خبره نه منم چې وایي شاه شجاع یو نمک حرام سړی وو او د انګرېزانو احسان یې ونه مانه. دی وایي تربل هر چا شاه شجاع په دې حقیقت ښه پوهېدی چې موږ هغه د خپل مطلب د پوره کولو له پاره د کابل پر تخت کښېنولی دی او د هغه په غم کې هیڅ وخت نه وو. کې ص ص ۳۸۲-۳۸۳

## هرات او کندهار

انګرېزان یوازې په کابل کې د قومي مشرانو د مخالفت له ستونزې سره مخامخ نه وه بلکې په شمالي سیمو کې ټول اولسونه د هغوی پر ضد را پاڅېدلي ول، په ختیځ او لوېدیځ کې غلجي قومونو، د انګرېزانو د یرغل له لومړی ورځې، د پاڅون بیرغ پورته کړی وو، هرات بېخي بېل حیثیت درلود او انګرېزانو هم غوښتل چې هلته خپلې دسیسې رواني کړي. کندهار او شاوخوا سیمې له لومړۍ ورځې په ښور کې وې او تقریباً یوازې مکناټن وو چې پر دې ټولو خبرونو او پېښو یې غوږونه په لوی لاس کاڼه اچولي وه.

په (۱۸۳۸م.) کال کې چې اېرانیانو د هرات محاصره پرېښودله نو د هغه ښار خلک، چې د محاصرې په وخت کې له هره اړخه له ستونزو سره مخامخ سوي ول، په تېره بیا د لوږې له مشکل سره هم مخامخ ول. کرنل سټوډارټ او مېجر پوټینجر د هرات د خلکو د دغه لومړنۍ ستونزې د حلولو له پاره لېږې بډ وهل او په دې توګه یې قحطۍ ځپلي خلک د یارمحمد له خوا د اوزبکو د غلامۍ بازارونو ته د وړاندې کېدلو څخه وژغورل. یارمحمدخان له دغه ډول اصلاحاتو سره له لویه سره مخالف وو ځکه چې هم یې په هرات کې د ده مطلقه قدرت ته صدمه رسوله او هم یې د ده د انسان پلورلو غیر انساني تجارت تاواني کاوه. که څه هم چې کرنل سټوډارټ او پوټینجر شاه کامران او نورو مهمو مشرانو ته تنخواوې مقررې کړې مګر په خپله یارمحمدخان ناراض وو. کرنل سټوډارټ یې څو ځله سپک کړ او هغه مجبور سو چې له هراته ووځي او په ضمن کې هغه ته د بخارا ماموریت هم سپارل سوی وو. پوټینجر هم له یارمحمدخان سره په همدغه ستونزه اخته وو.

کله چي پوټینجر پوه سو چي یارمحمد د هغوی هیڅ ډول غوښتني نه مني نو پر دوی باندي یې تنخواوي بندي کړې. فیریه ص ۴۰۴

لارډ آکلینډ مېجر ډي آر سي ټاډ ته د هرات د چارو د سمبالولو وظیفه ورکړه او کله چي هغه هرات ته ورسېدی نو له هغه ولایت سره یې د کمپنۍ د مرستو په بدل کي د یوه تړون د لاسلیکولو غوښتنه ورڅخه وکړه.

۱: اینگلینډ به د هرات استقلال تضمینوی، د هغه ولایت مشرانو ته به تنخواوي ورکوي خو دوی به د غلامانو خرڅول او رانیول بندوي.

۲: د هرات حکومت به، له نورو بهرنیو قدرتونو سره، د برتانیې د استازي له مشورې پرته، تماس نه ټینگوي.

۳: برتانیه به، له محاصرې څخه مخکي، د هرات د کلني عاید په اندازه پیسې د هرات حکومت ته ورکوي او دغه راز به د ځمکو د بیرته آبادولو او خلکو په کار اچولو له پاره مالي مرستي کوي. د برتانیې استازو په ډېره لږه موده کي د هرات د آبادلو له پاره ډېري زیاتي پیسې ولگولې. هغه کتاب ص ۴۰۷

یارمحمدخان د انگرېزانو له خوا دونه زیاتو مرستو او نغدو پیسو حیران کړ او سمدستي یې د غوریان د قلا چي لا د اېرانیانو په لاس کي وه حاکم ته ولیکل چي زما له خوا زړه بې غمه کړه او د اېران حکومت ته اطمینان ورکړه چي د برتانیې د استازي شیطانتونه به پر ده باندي اغېزه ونه کړي او د هرات د مقاماتو پر ملگرتوب دي حساب وکړي. د یارمحمد دغه سلوک د هغه تړون څخه چي ده له انگرېزانو سره لاسلیک کړی وو ځرگنده سرغړونه وه او ټاډ پوه سو چي یارمحمدخان غولولی دی. هغه تر دغه وخته پوري په هرات کي تر دوه سوه زره پونډه زیاتي پیسې لگولي وې او هیڅ گټه یې نه وه ورته کړې. ډیورنډ ص ۲۹۷

سرجان کې وایي له انگرېزانو سره د هرات د مقاماتو د تړون له لاسلیکولو څخه ایله څو هفتې تېري سوي وې چي یارمحمدخان د مشهد له گورنر آصف الدوله سره تماس ونیوی او هغه ته یې ولیکل چي دی او د هرات ولایت د ایران د حکومت تابعیت مني او هغه ته یې بلنه ورکړې وه چي له افغانستان څخه د انگرېزي کفارو په ایستلو کي مرسته ورسره وکړي. تر دغه وخته پوري برتانیې د هرات حکومت ته اته لکه روپۍ ورکړی وې او چي کال نوی سو نو دوولس لکه روپۍ یې نوري

ورکړي.

سرجان کې وایي مېجر ټاډ خبر سو چي یارمحمدخان د برتانیې پر ضد د ایران سره د لاس یو کولو پیشنهاد کړی دی نو مکناټن ته یې ولیکل چي له داسي حکومت سره چي هیڅ ډول پرنسیپ ته عقیده نه لري او پر هیڅ ژمنه باندي نه درېږي د اړیکو ساتل او مرستي کول هیڅ ګټه نه کوي. کې ص ۵۱۶

کله چي مکناټن په هرات کي د یارمحمد له دې خیانت څخه خبر سو نو د هرات پر ضد یې د تعرضي عملیاتو توصیه وکړه او وې ویل چي هرات باید د شاه شجاع له قلمرو سره وتړل سي. مګر لارډ اکلینډ له دې پیشنهاد سره مخالف وو او ویل یې چي یارمحمدخان باید وبخښل سي او د هغه د خوشالولو له پاره باید نوري پیسې هم ورکړه سي. نو انګرېزانو هرات ته د پوځ د لېږلو پر ځای د پیسو لېږلو ته دوام ورکړ او یارمحمدخان له ایران سره خپلو لیکونو او دسیسو ته دوام ورکړ. مکناټن لارډ اکلینډ ته ولیکل:

"څرنګه چي موږ له هرات سره د یوه دښمن په څېر سلوک نه کوو او په دې لاره کي کوم شرط هم نه اېږدو نو زه فکر کوم چي زموږ له پاره یوازینی لاره دا ده چي که موږ غواړو چي د یارمحمد زړه وساتو او هغه له ځان سره ملګری کړو نو بهتره به دا وي چي هغه ته له کاله دوه یا درې لکه روپۍ ورکړو، په دې شرط چي یوه قوه راته وساتي چي هر کله زموږ په کار وي هغه حاضره وي. کامران ډېر عمر نه لري او بهتره به دا وي چي موږ اوس لا د هغه له مرګه وروسته عمل کولوته پېش بین واوسو. که چیري د هغه له مرګه وروسته د هغه د زامنو تر منځ د قدرت پر سر جنګونه پیل سول نو د هرات ښار چي اوس د بیا اباديدلو خوا ته روان دی بیرته به د داخلي جنګ له خطرونو سره مخامخ سي. نو بهتره لار دا ده چي یارمحمد د شاه شجاع له خوا حکومت وکړي او د کامران کورنۍ ته تنخوا ورکړه سي. دا هغه لاره ده چي زه هیله لرم په هغه ولایت کي جریانات هغې خوا ته حرکت وکړي. هغه کتاب ص ۵۲۰

کله چي سړی په هغه وخت کي د انګرېزانو د سیاستمدارانو دغه راز نظرونه او لیکونه لولي نو حیران سي چي هغوی څه ډول پالیسي درلوده. د هغوی د پالیسی اساس یوازې پر رشوت او په پیسو او طلاوو د خلکو پر را نیولو باندي ولاړ وو. په داسي حال کي چي په یوه هیواد او سیمه کي د بې ایمانه خلکو رانیول او استخدامول ډېر اسانه دی مګر په بې ایمانه خلکو د وطن او اولس ساتل او د

خپل پلان عملي کول، د غیر ممکن تر سرحده ګران کار دی.

په همدغو شپو ورځو کي انګرېزانو ته د یارمحمدخان هغه لیک په لاس ورغی چي د ایران شاه ته یې لېږلی او په هغه کي یې لیکلي وه چي له انګرېزانو څخه مو ښې ډېري پیسې واخیستلې او هرات مو په آباد کړ خو موږ خپلې ټولي هیلي د ایران په حکومت پوري تړلي وې. نور نو لارډ آکلینډ هم له یارمحمدخان څخه نا امیده سو او له هغه سره یې د روغي جوړي د کولو او په هغه باندي د پیسو لګولو له تاکتیک څخه لاس واخیست. هغه کتاب ص ۵۲۱

یارمحمدخان عجیب سړی وو. هغه په افغانستان کي په ټوله وضع ښه خبر وو. هغه پوهېدی چي نه انګرېزان پر هرات باندي د حملې کولو توان لري اونه د ایران پاچا د هغوی له ویري پر هرات باندي راتللای سي نو ځکه یې له دواړو خواوو سره روابط پالل او د تړون او پیمان له ماتولو څخه یې هیڅ شرم نه کاوه. هغه له میجر ټاډ څخه دونه پیسې غوښتلې چي هغه یې د ورکولو او حتی منلو صلاحیت نه درلود. بالاخره یې ټاډ د خپلو مامورینو په مخ کي سپک کړ او هغه ته یې وویل چي تا د کمپنۍ څخه د هرات په نوم ډېري پیسې اخیستي او ټولي دي په خپل درد وهلي او هرات ته دي لږه برخه ورکړې ده. دغه راز یې میجر ټاډ په دې تورن کړ چي له شاه کامران سره یې د ده د پرزولو له پاره دسیسه کړې ده. بالاخره یې مېجر ټاډ ته وویل چي نور نه غواړی دی او د ده مامورین په هرات کي ووینې او باید چي ډېر ژر له هراته ووځي.

یارمحمدخان په دغه وخت کي وویل چي غواړي پر کندهار باندي حمله وکړي او د دې له پاره چي خپل نیت ثابت کړي نو خپل ورور شیرمحمدخان یې د ایران د پاچا محمدشاه دربار ته له ډېرو سوغاتونو سره واستاوه. هغه ته یې وویل چي هرات ستاسي تابع دی او دی غواړي چي پر کندهار باندي لښکرکښي وکړي نو د ایران مرستي ته ضرورت لري. خو دا ښکاره خبره وه چي ده نه پر کندهار باندي حمله کوله او نه یې هرات ایرانیانو ته سپاره، بلکي غوښتل یې چي له ایران څخه هم د انګرېزانو په څېر یو څه پیسې وشکوي. مېجر ټاډ ته یې د هرات څخه د وتلو له پاره آسونه برابر کړل او د هرات تر پولي پوري یې خپل د کاکا زوی فتح خان ورسره واستاوه. فیریه ص ۴۱۷

## يارمحمدخان او کامران

يارمحمدخان له مېجرټاډ او انګرېزانو سره ځکه ستونزه درلوده چې يو خو يې له کامران سره د ده د له منځه وړلو له پاره دسيسې کولې او بل يې له ايران سره د ده د اړيکو ټينګولو مخه نيوله. يارمحمدخان داسې يو سړی وو چې غوښتل يې هغه څه وکړي چې زړه يې غواړي او داسې څوک يې نه وو خوښ چې هغه د ده د نقشو، اعمالو او شتمن کېدلو مخه ونيسي او يا ستونزې ورته پېښې کړي. او چې کله يې انګرېزان له هرات څخه وايستل نو ايله چې خپل کار ته خوشې سو او لاسونه يې آزاد سول.

يارمحمدخان له هرات څخه د انګرېزانو د ايستلو احسان د خراسان پر حاکم آصف الدوله باندې واچاوه چې هر وخت يې له هرات څخه د انګرېزانو د ورکېدلو غوښتنه کوله. يارمحمدخان آصف الدوله ته ور وفهمول چې اوس نو پر کندهار باندې د يرغل کولو له پاره د هغه مرستې ضرورت لري او آصف الدوله هم شپږ توپونه او څو زره توپکونه ور واستول. يارمحمدخان د نورو مرستو غوښتنه وکړه؛ خو آصف الدوله پوهېدی چې يارمحمدخان بس نه لري او تر ابده د مالي او پوځي مرستو غوښتنه نه کوي او احسان هم نه مني نو هغه ته يې نوري مرستې ونه لېږلې.

کامران پوه سو چې نور د يارمحمدخان له لاسه د ژغورل کېدلو لارې پاته نه دي؛ نو يې له خپلو څلورو زامنو سکندرميرزا، نادرميرزا، زمان ميرزا او سعدالملوک ميرزا او د حاجي فيروزالدين د لمسي يوسف ميرزا سره جرګه وکړه او د قلا پر خوا يې حرکت وکړ. په قلا کې پنځه سوه عسکر ول چې د کامران طرفداري يې کوله او دغه راز د يوه کال له پاره د ژوند کولو له پاره مواد او تر اندازې زياتې وسلې او مهمات موجود وه. يارمحمدخان قلا محاصره کړل او د توپونو ډزې يې ورباندې پيل کړې. کامران خپل يو استازی کندهار ته واستاوه او له انګرېزانو څخه يې د مرستې غوښتنه وکړه. انګرېزانو ته د کامران دوستي او د يارمحمدخان دښمني ثابته وه او غوښتل يې چې له کامران سره مرسته وکړي مګر دا وخت يعني د (۱۸۴۱م.) کال د پسرلي په موسم کې په کندهار او شاوخوا کې شورشونو زور اخيستی وو او انګرېزانو نه سوای کولای چې هرات ته عسکر ولېږي.

يارمحمدخان پر قلا باندې د توپونو ډزو ته دوام ورکړ. په قلا کې کامران او د هغه طرفدارانو پنځوس ورځې مقاومت وکړ او بالاخره، د توپونو د ډزو په اثر د قلا يو دېوال ونړېدی او خندق هم

له شگو او خښتو ډک سو او د یارمحمدخان عسکر قلا ته ننوتل. یارمحمدخان د خلکو په مخ کي له کامران سره ښه سلوک وکړ. هغه یې قصر ته بوت او د هغه څلور زامن یې له ښار څخه لیري واستول. څو ورځي وروسته یې کامران هم د کهسان قلا ته چي د هرات په شپږدېرش میلي کي پرته ده واستاوه. له کامران څخه یې د هغه د خزانې او جواهراتو د تر لاسه کولو له پاره شکنجې پیل کړې. د کامران هغي مېرمني ته یې چي فکر کېدی د ده خزانې ورسره دي او په تېره بیا هغه واسکټ چي شپاړس میلیونه روپۍ یې ارزښت درلود او ټول له قیمتي غمیو او الماسو ډک وو د تر لاسه کولو له پاره شکنجې ورکړې. یارمحمدخان د کامران له دغي مېرمني څخه ډېر څه تر لاسه نه کړل او په خپله کامران ته یې څه باندي یوه میاشت راز راز شکنجې ورکړې. او بالاخره یې په زیندی وواژه او په هرات کي یې خاورو ته وسپاره.

د کامران ځواني مېرمني یې پر خپلو صاحب منصبانو او دوستانو ووېشلې او د هغه څلور لوڼي او نسبتاً زړې مېرمني یې پر ترکمنو باندي خرڅي کړې او هغوی د خرڅلاو له پاره خیوا او بخارا ته یووړې. د کامران زامن، یوسف میرزا او د کامران د کورنی نور هغه غړي چي ایران ته په تېښته بریالي سول خپل ځانونه د ایران د پاچا دربار ته ورسول او د ایران پاچا محمدشاه د ایران د پاچاهانو د همېشگي پالیسی سره سم هغوی ته پناه ورکړه څو یوه ورځ په افغانستان کي کار ورڅخه واخلي. فیریه ص ص ۴۷۱-۴۸۰

د فیریه په قول د هرات خلک ځکه د یارمحمدخان له حکومت څخه خوشاله وه چي د کامران له ظالمانه اداري څخه بې غمه سول او امنیت یې خوندي سو. یارمحمدخان د هرات مطلق کنټرول په خپل لاس کي واخیست او د وزیر صاحب کبیر په نوم بلل کېدی. له خپل قدرت څخه یې ډېر کار اخیست او ډېر زیات اصلاحات یې راوستل. کله چي خپل قدرت یې ښه ټینگ کړ نو له ظلم څخه یې لاس واخیست حتی له هغو کسانو سره یې چي له ده سره مخالف ول هم ښه سلوک کاوه مگر پر غلو او قاتلانو یې هیڅ رحم نه کاوه. کرني او تجارت ته یې ډېره توجه وکړه او پر غنمو او د ژوند پر ضروري شیانو باندي یې ډېر لږ محصول اخیستی او په دې توگه یې هم ځان او هم خلک شتمن کړل. ټول هغه سرکښ خانان او قومي مشران یې چي د ده حکومت ته یې غاړه نه ایښودله یو په بل پسې تابع کړل او څوک چي نه قانع کېدل د هغو پر ځای باندي یې خپل الکوزي چي د ده د باور وړ وه، مقرر کړل. هغه کتاب ص ص ۴۸۰-۴۸۱

کله چي د ایران پاچا محمدشاه د هرات محاصره پرېښودله نو د برتانیې له استازي ډگروال

سټوډارټ سره يې ژمنه وکړه چې د برتانيې ټولې غوښتنې به پوره کوي. په دې غوښتنو کې لومړۍ دا وه چې د ايران پاچا به د افغانستان د خاورې په هيڅ برخه دعوه نه کوي او له ټولو اشغال کړو سيمو څخه به خپل پوځيان باسي او دوهمه غوښتنه دا وه چې د ايران شاه بايد هغه سپکاوى جبران کړي چې د هغه هيواد مقاماتو د برتانيې د سفير استازي ته کړى دى.

د لومړۍ غوښتنې مهمه برخه خو پوره سوې وه او هغه دا چې د ايران عسکرو د هرات محاصره پرې ايښې او په دې توگه د ايران او د برتانيې تر منځ د احتمالي جگړې او اړيکو د خرابېدلو مخه نيوله سوې وه. مگر د ايران پوځيانو دغه گړى هم د غوريان قلا چې د شهزاده کامران له عسکرو څخه يې نيولې وه، په کنټرول کې درلوده او دغه راز يې د فراه، سبزوار او کرُخ اشغال ته چې ټولې د افغانستان خاورې وې دوام ورکړى وو. واټسن ص ۳۲۰

د برتانيې حکومت له ايران څخه غوښتل چې د هغه هيواد صدراعظم دې د برتانيې د سفارت استازي ته د سپکاوي له امله ليکلې بخښنه وغواړي. د ايران دربار دا غوښتنه ونه منله او د پاچا او مکنايل تر منځ اړيکې ډېر خراب سول. د ايران پاچا د برتانيې له حکومت څخه له دې امله سخت خواشينى وو چې د هرات د نيولو په برخه کې يې د هغه هيواد نقشه ناکامه کړې وه. هغه کتاب ص ۳۲۳

د ايران شاه له دې څخه مخکې خپل سفير حسين خان د برتانيې دربار ته لېږلى وو او له برتانيې څخه يې غوښتې وه چې مکنايل له ايران څخه ور وغواړي. د ايران شاه د دغه ياداشت کاپي، روسيې، فرانسې او ترکيې ته هم لېږلې وه او پکښې ليکلي يې وه چې له ده سره د برتانيې د حکومت سفير او په خپله د برتانيې حکومت خورمه ظلم کړى دى. په ياداشت کې دې حقيقت ته اشاره سوې وه چې د هرات خلکو د ايران حکومت، په لوى لاس، ولمساوه او حملې ته يې مجبور کړ. ښاغلي مکنايل د ايران له شاه سره دا خبره منله چې د هرات حکومت د ايران اتباع تښتولي او په خيوا او بخارا کې يې د غلامانو په بازارونو کې خرڅ کړي دي. مکنايل ويل چې د ايران حکومت له دغه امله پر هرات باندې د حملې کولو حق درلود مگر د هرات حکومت ته د سزا ورکول دا معنى نه لري چې د ايران حکومت د هرات ښار اشغال کړي او خپله خاوره يې وبولي.

د ايران شاه تر دې لا هم يوه عجيبه خبره او استدلال کاوه او ويل يې چې زموږ د وروستيو عملياتو هدف د روسيې له پاره تر کابل پورې د لارې پرانيستل وه او پر افغانستان باندې يې

لښکرکښي په نظر کي نه وه بلکي غوښتل يې چي خپل اتباع له غلامۍ څخه وژغوري.

د ایران شاه په یاداشت کي سوګند یاد کړی وو چي پر هرات باندي په حملې کي يې په هیڅ توګه برتانیې ته د تاوان رسول مطلب نه وه. ده لیکلي وه چي یقین لري د انګلستان ملت به خپل حکومت ته اجازه ور نه کړي چي پر چا باندي دونه ظلم وکړي او که هغوی هم مرسته ونه کړه نو دی به مجبور وي چي د یوه لوی غره سیوري ته کښېني.

د ایران شاه د خپل تهدید سره سم، د لوی غره سیوري ته دمه سو او څو هفتې وروسته د ایران صدراعظم د روسیې خارجه وزیر نیزلروډ ته لیک واستاوه او په هغه کي يې ورته ولیکل چي د برتانیې حکومت پر ده باندي څونه فشار اچولی دی. ده لیکلي وه چي زه ستاسي جلالتمآب څخه هیله کوم چي یو څل خو زموږ وضع هم وګوری. تاسي یو وخت لیدلي دي چي پر یوه چا باندي دونه لوی ستم سوی وي؟ تاسي لیدلي دي چي لوی پاچا دي، پرته له دې چي له چا سره له تړون څخه سرغړونه وکړي، څوک خپل هدف ته له رسېدلو څخه منع کړي. ده لیکلي وه چي موږ په څونه خواریو خپل یو یاغي سوی ولایت د تسلیمېدلو پولي ته ورساوه او په دغه وخت کي يې زموږ مخه ونیوله. هغه ولایت چي پر له پسې يې د خراسان او سیستان خلک وژلي، تښتولي او د غلامانو په بازارونو کي خرڅ کړي دي. د ایران صدراعظم لیکلي وه چي د هغه هیواد هیله لري چي روسیه به د دې لوی ظلم څخه د ژغورلو په لاره کي مرسته ورسره وکړي، ځکه چي پر دې هیواد باندي دا ظلمونه د روسیې سره د دوستی ساتلو په ګناه کیږي. د ایران صدراعظم، د لیک په پای کي تیاری ښودلی وو چي په دغه موضوع کي د روسیې حکمیت مني.

د ایران سفیر حسین خان ویانا ته ولاړ او له هغه ځایه څخه يې برتانیې ته سفر وکړ. د برتانیې خارجه وزیر پالمرستن ورته وویل چي ایران به د افغانستان ټولي اشغال کړي سیمي خوشي کوي او د برتانیې له حکومت څخه به د هغه هیواد د سفیر استازي ته د سپکاوي کولو له امله لیکلي بخښنه غواړي. هغه کتاب ص ص ۳۲۳-۳۲۹

## کندهار او شاوخوا سیمي

د کندهار په لوېدیځ کي د غلجیو قبایل چي د انګرېزانو حکومت فکر کاوه کرار سوي دي، بیا را پورته سول او ټوله سیمه يې ناکراره کړه. جنرال ناټ څو ځله د هغوی د ځپلو له پاره قواوي

واستولې؛ غلجیانو به تلفات هم ورکړل خو نه یوازې به کرار نه سول بلکې تر پخوا به نور هم په قار سول.

براهویان چې انګرېزانو یې خان په ډېره نامردي او پرته له هیڅ دلیله قتل کړی وو د کلات په شاوخوا کې را وپارېدل. د محراب خان یو کشر زوی یې مخ ته واچاوه او په ډېر لږ وخت کې یې کلات ونیوی. د انګرېزانو استازی لیفټیننټ لفډې یې وواژه او په کلات کې د انګرېزانو له خوا کښېنول سوي خان شهنواز خان استعفی وکړه.

مګر مکناټن په ختیځ او لوېدیځ کې د غلجیو ورځ په ورځ زیاتېدونکو ښورښونو د بلوچستان په کلات کې د انګرېزانو ناکامی په کوهستان کې د خلکو ښورښونو او په کابل کې د سردارانو او مشرانو نارضاییت ته کتل او هیڅ پېښي له خوبه ویښ نه کړ. ده بیا هم ویل چې د شاه شجاع تر سیوري لاندي وطن سمېږي او بیا یې هم لارډ اکلینډ او د هغه سکرټرانو ته لیکل چې د وارخطایي له پاره هیڅ دلیل نه سته. کې لومړی جلد ص ۵۳۱

په دې ښورښونو کې د زمینداور د اخترخان علیزي ښورښ تر ټولو خطرناک او کله کله به تر ټولو پراخ سو. اخترخان یو ځل د کندهار له مقاماتو سره جوړه وکړه او بیرته یاغي سو. مکناټن دونه عصبي وو چې په کندهار کې یې مېجر راولنسن ته ولیکل چې که یې اخترخان په لاس ورغی نو شهزاده ته دې ووایي چې اعدام یې کړي. ده ولیکل چې د هغه د نیولو له پاره دې لس زره روپۍ انعام کښېښودل سي.

که په کابل کې د انګرېزانو څخه د خلکو عمومي نفرت د الیکزانډر برنس او نورو انګرېزي صاحب منصبانو فحشاء او تر حد تېریو د شاه شجاع بې وسی او د هغه د وزیر ملا عبدالشکور او وروسته د نظام الدوله محمدعثمان خان اداري فساد او بې ادارګیو په وچ زور پاڅون ته شرایط برابرول؛ نو په کندهار کې هم وضع تر دې ښه نه وه. شاه شجاع له کندهار څخه کابل ته د روانېدلو په وخت کې خپل دوهم زوی فتح جنګ د ګورنر په حیث مقرر کړ. فتح جنګ په کندهار کې ټول هغه کارونه چې د خلکو د مخالفت سبب کېدی وکړل. جنرال ناټ د هغه د بدي اداري، بې ځایه ظلمونو او حتی د خلکو پر ناموس او عفت باندي تېریو له لاسه څو ځله کابل ته شکایتونه واستول او بالاخره کابل ته وبلل سو.

د (۱۸۴۰م.) کال د نومبر پر دوهمه چې په کابل او کندهار کې یو ډول کراري راغله او په تقریباً

یوه کال کې چنداني د یادولو پېښې ونه سوې؛ شاه شجاع هم خپل کشر زوی صفدر جنګ په کندهار کې د ګورنر په حیث مقرر کړ او له کاله یې (۱۷۰۰) سټرلینګ پونډه تنخوا ورته وټاکله. بویسټ لیکي چې د شاه شجاع په زامنو کې له شهزاده تېمور څخه پرته نور ټول سپک او بې ارزښته کسان ول او چې څه بد اخلاقي وې هغه یې ټولې کولې. صفدر جنګ ډېر ظالم انسان وو. له خلکو څخه یې پیسې اخیستلې او که به چا نه ورکولې د شکنجو په زور یې ورڅخه تر لاسه کولې. خپله تنخوا یې چې په میاشت کې (۱۴۰) پونډه کېدله په ظلم او تېریو له کاله(۱۰۰۰۰) پونډو ته ورسوله. بویسټ وایي یو ځل یې یو تاجر په یوه وړه پلمه ونیوی شکنجې یې ورکړې او چې تر څو یې خپلوانو درې سوه پونډه ورکړې نه وه خوشي یې نه کړ. داسې د شرم کارونه یې وکړل چې سړی نوم نه سي ورکولای او په دې کې یې دونه افراط وکړ چې هر ډول سرحد یې مات کړ.

بویسټ وایي سیاسي استازي د هغه په چارو کې د مداخلې اجازه نه درلوده او خلکو دا ټولې بدۍ له انګرېزانو بللې. د پخواني او اوسني واکمن د کورنیو تر منځ دونه زیات توپیر موجود وو، چې په هیڅ توګه د مقایسې وړ نه وه. د دوست محمد خان زامن په ښه سلوک او اخلاق په مړانه، توره او په عقل کې داسې کسان ول چې هر اروپایي ورسره مخامخ سوی او لږه ګوزاره یې ورسره کړې ده نو په ښه نامه یې یاد کړي دي.

بویسټ لیکي چې د شاه شجاع د زامنو دغه راز بد سلوک او تر حد تېریو له هغه څخه خلک خوابدي کړل او د ده ټینګو طرفدارانو یې نه یوازې دفاع نه سوای کولای، بلکې پر ضد یې را پورته سول. د ډسمبر د میاشتې په نیمایي کې په ټوله لوېدیځه سیمه کې ناکرارۍ پیل سوې او د وسله والو پولیسو اته سوه کسیزه قوه چې دوه توپونه هم ورسره وه د هیلمند د سیند پر غاړه له خلکو څخه د مالیاتو اخیستلو له پاره واستوله سوه. دښمن حمله ورباندې وکړه ځلور، پنځه سوه تنه یې ورڅخه ووژل او توپونه یې ور څخه واخیستل.

بویسټ لیکي چې له دې څخه وروسته د اخترخان سړیو د ساروان کلا په علاقه کې د شاه شجاع د قواوو پر یوه قوماندان محمدعلم خان باندې حمله وکړه. قوه یې ماته کړه او توپونه او سامان یې ټول د یاغیانو لاس ته ورغلل. د اخترخان دې بري د هغه طرفداران زیات کړل او له هغه څخه یې یو زورور قوت جوړ کړ. بویسټ ص ص ۲۶۷-۶۸

دا وخت غلجیانو او درانیانو دواړو د شاه شجاع او د هغه د ملاتړ کوونکو په مقابل کې وسلو ته

لاس اچولی وو. د افغانستان ټوله لوېديځه سيمه په ډېر خطرناک حالت کي وه. راولنسن هر وخت مکناټن ته خبرداری ورکاوه چي دا خطر ډېر لوی معلومېږي او دا ناکراري ورځ تر بلي زياتېږي. مکناټن نه يوازي دا خطر نه ليدی بلکي راولنسن ته د (۱۸۴۱م.) کال د جون د مياشتي پر ديارلمسه يو اوږد ليک ولېږی او په دغه برخه کي يې د هغه ټولي خبري رد کړې.



کندهار په ۱۸۴۱ کال کي

"ستا د جون د اوومي ليک نن سهار را ورسېدی. زما نه خوښېږي چي ستا سره خواشينونکي بحث وکړم؛ مگر تاته ښه معلومه ده چي زه له لومړي سره ستا سره سپيني خبري کوم او تاته مي پرله پسې ويلي دي چي زه ولي په ځينو شيانو خپه کېږم. زما او ستا د اختلاف موضوع ښايي يوه مسئله وي او هغه دا چي ته اوسنی وضعي ته ډېر بدبين يې او خطرونه وينې او هغه خبرونه او آوازې منې چي له دغه نظر سره دي مرسته کوي. موږ دغه گړی کافي ستونزي لرو او نور دې ته اړتيا نه سته چي د ستونزو شمېر په لوی لاس زيات کړو. ما تازه هغه ليک ولوست چي ښاغلي ډالاس، ښاغلي جانسن ته ليکلی دی او په هغه کي وايي چي د وطن وضع ورځ په ورځ مخ په خرابېدلو ده. دغه ډول بې خونده او بې کاره افکار زموږ اوسني وضعيت ته ډېره صدمه رسوي. او هر څونه چي دا افکار تکرار

سي زه په هغه اندازه زیات عکس العمل ښیم. زه پوهېږم چي دغه افکار د افغانستان په دغه برخه کي ټول دروغ او غلط دي او زه ولي په هغو باور وکړم. که خبره ستا په سیمه کي د توخو د قبیلې د ښورښونو سي، نو هغه خلک خو هر وخت په ښورښونو لگیا وي او یا دا چي اخترخان د یو شمېر لغړیانو سره هلته ورغلی او خلک پاروي. ما مخکي هم ویلي دي چي دلته داسي څه نه سته چي ښایي پېش بیني سوي به نه وي او یا دي موږ ته ډېر لږ تاوان هم را ورسوي. موږ به داسي احتیاطي اقدامات کوو چي غلجیان موږ ته تاوان را ونه رسوي او د اوس حاضر له پاره دغه کافي ده. موږ باید باقي پاته ستونزي او حالات وخت ته پرېږدو. د اخترخان په باره کي به درته ولیکم چي په جانبازانو پسي احوال ولېږه او د شپې یې مارش کړه او پر اخترخان باندي د شا له خوا حمله وکړي. دغه فساد جوړونکی ونیسی او لکه هامان دونه لوړ یې وځړوی؛ او ښایي نور داسي څوک ونه لرې چي هلته ورانکاري درته وکړي. که لازمه وه زموږ د قواوو د راغونډولو په وخت کي دي جانبازان په عملیاتو لگیا وي. ما مخکي درته ویلي دي چي زه به هیڅ وخت د اخترخان د سر پر راوړلو باندي انعام کښې نه ږدم. او نه به داسي څوک چي له اخترخان سره خپله شخصي دښمني لري دې ته تشویق کړم چي اخترخان قتل کړي. دا کار سره له هغه چي د اعتراض وړ دی، بې ځایه هم دی، ځکه چي خلک به داسي فکر وکړي چي موږ د دښمنانو د له منځه وړلو له پاره د هغوی له قتلولو پرته بله لاره نه لرو. د تایمنیانو په باره کي به درته ووایم چي زما مطلب دا وو چي که اختر د هغوی په سیمه کي د پټېدلو کوښښ وکړ دوی باید د هغه نیولو ته تشویق سي او ما فکر وکړ چي په دغه صورت کي نو یو غټ مالي انعام لازم دی؛ ځکه چي په دغه صورت کي دوی تر خپلو محلي رواجونو او نرخونو تیرېږي." هغه کتاب ص ۵۹۵

کله چي صاحب منصبانو مکناټن ته ولیکل چي دلته موږ کافران بلل کېږو او دا د مسلمانانو وطن دی موږ ته ټول یو لاس دي نو ده په ډېره ساده توگه د افغانانو بې اتفاقیو ته اشاره کوله او ورته ویل به یې چي په دې وطن کي شیعه له سني سره، غلجی له دراني سره، قومونه له قومونو سره، تر برونه له خپلو تربرونو سره بدی لري او موږ چي وسایل په لاس کي لرو څرنگه پر دې ستونزو او بې اتفاقو خلکو باندي بریالي نه سو. کې ۵۹۹

خو لږ وخت وروسته هم په غلجیو او هم په کوهستان کي وضع خرابه سوه او هم پیسې ورځ په ورځ کمېدلې او هغه کسان چي مکناټن او د هغه پالیسیو په پیسو اخیستي وه سرونه ورته را پورته کول. ځکه دا ډېره مشهوره خبره ده چي رشوت او پیسې خلک د تریاکو په دود معتاد وی او هر

وخت چې ورته ونه رسېږي سر پورته کوي. له کوهستان څخه پوتینجر رپوټ ورکړ چې د کوهستان د خلکو ذهنیت د خطر تر سرحده پورې زموږ په تاوان دی.

مخکې د زرمت د شورش د ځپلو له پاره میکریګور لېږل سوی وو. خو کله چې هغه د شورش سیمې ته ورسېدی نو ویې لیدل چې ټولې قلاوې تشې وې. ده هم تشې قلاوې ونړولې او بیرته کابل ته ستون سو. خو دا د شورش کرارول نه وه بلکې نور هم د خلکو پارول وه؛ او د زرمت شورش وروسته تر پخوا زور واخیستی.

ضمناً د ختیځ غلجیو شورش پیل کړ. دوی هم لکه کوهستانیان د پیسو او طلا په زور کرار ساتل سوي ول او چې د پیسو کڅوړې تشې سولې دوی هم شورش ته ملا وتړله.

د افغانستان جنګ څه کم درې کاله دوام کړی وو او د پای ته رسېدلو درک یې چاته نه معلومېدی. انګرېزانو چې به هر ځای اشغال کړ نو نه یوازې به یې د هغه ځای په عایداتو بیرته هغه سیمه چلوله بلکې لا به یې نوره ګټه هم ورته کوله. خو له افغانستان څخه یې هیڅ تر لاسه کړې نه وه او له کاله یې څه باندې (۱۲) لکه پونډه پکښې لګولې وه او لا درک معلوم نه وو چې دا پیسې به تر کومه لګول کیږي. بالاخره داسې څرګنده سوه چې انګرېزانو پر افغانستان باندې په یرغل کې بل هیڅ تر لاسه کړې نه وه او یوازې د شاه شجاع پاچا کول په دغه پیسو ورته تمام سوی وو. هغه کتاب ص ص ۶۱۸-۱۹

په داسې وخت کې چې یارمحمدخان له ایران سره په دسیسو بوخت وو او له محمدشاه قاجار څخه یې، پر کندهار باندې د حملې له پاره، پیسې اخیستلې دا آوازې لا هم خپرې سوې چې شاه شجاع له انګرېزانو څخه ناراض دی او نور د انګرېزانو په کنټرول کې له اوسېدلو څخه ستړی دی او غواړي چې ځان د هغوی له زولنو څخه خلاص کړي او دې ته منتظر دی چې په هیواد کې یو شورش منځ ته راسي او دی ورسره یو ځای سي. دا آوازې که دروغ وې که ریشتیا وې هم یې په زمینداور او هم په نورو سیمو کې شورشونو ته نوې ساه ورکړه او په دغه وخت کې یارمحمد خان هم پر کندهار باندې د یرغل کولو او له اخترخان سره د یو ځای کېدلو تهدیدونه کول. ډیورنډ ص ۳۰۱

که څه هم چې یارمحمدخان هیڅ وخت دونه سادګي نه کوله چې د کندهار پر لور یې حرکت کړی وای او د انګرېزانو پر چونیو او پوځي مرکزونو یې حملې کړې وای او دا کار یې تر پایه ونه کړ

مګر هم يې انګرېزان په اندېښنه کي اچولي، هم يې ښورښي درانيو ته د خپل راتګ او مرستو امیدونه پیدا کړي او هم يې د ایران پاچا که څه هم چي په يارمحمدخان يې اعتماد نه درلود، خوشاله ساتلی وو. د ایران پاچا سل زره پونډه ورته را ولېږل خو میاشت لا نه وه تېره سوې چي يارمحمد د نورو پیسو غوښتنه وکړه او له هر لیک سره به يې محمدشاه ته لیکل چي زه ستاسي رعیت یم او هرات ستاسي خاوره ده. فیریه ص ۴۱۲

انګرېزانو په دې کي هیڅ شک نه درلود چي يارمحمدخان د درانيو مشرانو ته لمسوونکي لیکونه لېږي او خپل يو استازی نصرالدين خان يې زمینداور ته لېږلی دی او يو لیک د راولنسن د مرستیال ایلیټ لاس ته ورغلی دی. ده په دغه خط کي لیکلي وه:

"تاسي ټول باید خپل طرفداران را غونډ کړی او په زمینداور کي له اخترخان سره يو ځای سی. تاسي تیار اوسی څکه چي ما له هراته حرکت درکړی او ډېر ژر به در ورسېږم. له مشهد څخه لس زره عسکر، دوولس توپونه او دوه لکه روپۍ د مرستي له پاره درځي. زه چي ډېر وځنډېږم نو د محرمي تر میاشتي پوري بکوا ته رسېږم. ګوری چي هیڅ دراني مشر خپل طرفداران سره تیت او پرک نه کړي څکه چي زه بېخي ټینګ یقین لرم چي ځان در رسوم. کې ص ۵۷۹

البته يارمحمدخان هیڅ وخت له اخترخان سره يو ځای نه سو؛ نه يې له هراته حرکت وکړ او نه يې درانیانو ته مرسته ورسېدله خو د خپلو ټولو مخالفینو په زړونو کي يې وېره اچولې او دوستانو ته يې تمه پیدا کړې وه. مکناټن د اخترخان د نیولو له پاره ټول چلونه وکړل؛ حتی د خانانو له نفوذ څخه يې کار واخیست او بالاخره يې راولنسن ته په کندهار کي ولیکل چي د اخترخان پر سر باندي لس زره روپۍ انعام کښېږدي.

غلجیو او درانيو دواړو د شاه او د هغه د ملاتړکوونکو پر ضد وسلو ته لاس اچولی وو. د افغانستان ټوله لوېديځه سیمه په ډېره وېروونکې ناکراري کي وه. راولنسن لیدل چي د کندهار په سیمه کي د انګرېزانو وضع څومره خطرناکه ده او پر له پسې يې مکناټن ته خبرداری ورکاوه چي وضع ورځ په ورځ خطرناکه کیږي. مکناټن تر پایه د هغه پر مشورو غوږونه کاڼه واچول او حتی د ده لیکونو به په غوسه کړ. ده نه غوښتل دا ومني چي د ده پر سر باندي د توپان وریځي ګرځي او په جواب کي به يې د راولنسن د دغه راز لیکونو د لېږلو څخه ګیله هم کوله. هغه کتاب ص ۵۹۴

## په کابل کي څه تېرېدل؟

د کابل وضع په یوه جمله کي خلاصه کولای سو او هغه دا چي هلته هر څه وران ویجاړ وه. په کابل کي یوازي اداري فساد تر سرحد نه وو اوښتی بلکي مطلقه بې ادارګي حاکمه وه. که څه هم چي مکناټن خو هم په خپله ځان ته په زور په دروغو قناعت ورکاوه او هم یې د خپلو همکارانو رپوټونه سانسورول خو د افغانستان په باره کي رپوټونه په هر صورت، د برټانوي هند حکومت ته رسېدل او ګورنرجنرال لارډ آکلینډ ته دا معلومه سوې وه چي شاه شجاع به تر ابده پوري د انګرېزانو په پوځي او مالي ملاتړ پر قدرت ناست وي او که انګرېزان ورسره نه وي هغه یوه ورځ هم ځان نه سي ټینګولای. ډیورنډ ص ۳۲۶

د کابل حکومت ځکه له لویه سره له سخت مشکل سره مخامخ وو چي له کابل څخه پرته چي لا یې وضع ښه معلومه نه ده تقریباً هیڅ ولایت مالیات نه ورکول. شاه شجاع او انګرېزان مجبور وه چي مالیات په وچ زور تر لاسه کړي. د هر کلي او ښار د تابع کولو او یاغیانو د ځپلو له پاره به یې پوځونه لېږل او د پوځونو لېږلو او جنګي عملیاتو په خپله یو عالم لګښتونه ایجابول. د (۱۸۴۱م.) کال د سپټمبر د میاشتي په پیل کي د کرنل آلیور تر قوماندې لاندي یوه مجهزه قوه د زرمت د یاغیانو د ځپلو او د مالیاتو د تر لاسه کولو له پاره ولېږل سوه. کله چي کرنل آلیور او کپټان ایبټ د زرمت وادي ته ورسېدل او یې ولیدل چي خلک کوچېدلي دي نو امر یې وکړ چي په ټوله سیمه کي یو دېوال هم ولاړ پرې نه ږدي او عسکرو هم د خپل قوماندان له امر سره سم عمل وکړ.

کله چي کپټان هې دغي سیمي ته ورغی او تر پوځي عملیاتو مخکي یې یوه قومي مشر ته رشوت پېشنهاد کړ او د یوه بل مشهور مشر په مقابل کي یې له شاه شجاع سره د یوځای کېدلو مشوره ورکړه نو هغه د ډېرو باران ورباندي جوړ کړ او چي څه ښکنځل یې زده وه هغه یې ټول ورته وکړل. کپټان هې په دې پوهېدی چي که له زور څخه کار واخلي نو له ټولو پوځیانو سره به تباه سي نو په ډېر تلوار له زرمت څخه پر شا سو. دا قوه پرته له دې چي یو ډز دي وکړي د اکتوبر پر اووه لسمه بیرته کابل ته ورسېده. بویسټ ص ۲۸۳

د شاه شجاع حکومت د هند خزانه په بشپړه توګه تشه کړې وه او د هند حکومت مجبور وو چي په هره برخه کي لګښتونه کم کړي. د هند حکومت په خپله خزانه کي د افغانستان د جنګ له پیل

کېدلو څخه لږ وروسته لس میلیونه سټرلینګ پونډه اضافه درلوده او هغه د (۱۸۴۰م.) کال د مني تر شپو ورځو پوري ټوله تشه سوې وه. د هند د حکومت خزانې، د هند له عایداتو څخه هر کال یونیم میلیونه اضافه ذخیره درلوده خو په (۱۸۴۰) کال کي يې څه باندي دوه میلیونه او دوه نیم سوه زره پونډه کسر درلود. د هند حکومت بالاخره له داسي مالي ستونزي سره مخامخ سو چي یو ځل خو عالي شورا د تنخواوو پر بندولو باندي بحثونه وکړل. د هند حکومت د خپلو لګښتونو د کمولو په سلسله کي د افغانستان له مقاماتو څخه هم د لګښتونو د کمولو غوښتنه وکړه. څرنګه چي د افغانستان د کشالې پای نه معلومېدی او د هند حکومت تر قیامته دونه درانده مالي بار ته اوږه نه سوای ورکولای نو مکناټن ته يې احوال ورکړ چي باید د کابل د حکومت لګښتونه له هغه ځایه څخه پوره کړي او د هند حکومت چنداني پیسې نه لري. هغه کتاب ص ۲۸۳

له بلي خوا د لندن حکومت ته هم دا رپوټونه رسېدل چي د افغانستان جنګ د برتانيې د حکومت له پاره له کاله لږ تر لږه په یومیلیون او دوه سوه پنځوس زره سټرلینګ پونډه لوېږي او دا هم معلومه نه ده چي دا لګښتونه به تر کله دوام کوي. ډیورنډ ص ۳۲۶

(که دا خبره په نظر کي ولرو چي د کندهار ټول کلنی عاید (۱۲) لکه روپۍ کېدی او یا انګرېزانو امیر دوست محمدخان ته له دوهم ځل پاچا کېدلو څخه وروسته د پوځ د سمبالولو او هیواد د آبادولو له پاره له کاله (۱۲) لکه روپۍ ورکولې نو (۹) میلیونه سټرلینګ پونډه چي (۹۰) میلیونه روپۍ کېدلې دونه پیسې وې چي د خلکو تر تصور وتلی رقم وو.)

ګورنرجنرال مکناټن ته ولیکل چي د خانانو او قومي مشرانو تنخواوي کمي کړي؛ ځکه چي دا د برتانوي هند پر بودجه او خزانه باندي یو اضافه بار دی. مکناټن سره له هغه چي ګورنرجنرال ته ولیکل چي دغه خانان او قومي مشران د لارو ساتنه کوي او د دوی له همکارۍ پرته به په لویو لارو کي امنیت خراب سي، خو د هغه خبره چا ورسره ونه منله او هغه هم د خانانو او مشرانو د تنخواوو کمولو ته ملا وتړله. هغه کتاب ص ۳۲۸

شاه شجاع پوهېدی چي له خانانو سره څومره زور موجود دی هغه په دې پوهېدی چي دی په لومړي سر کي د همدغو قومي خانانو په زور قدرت ته ورسېدی او د همدغو خانانو په زور له قدرته ولوېدی. مکناټن نه د افغانستان د ټولني په ترکیب خبر وو او نه د قومي خانانو زور ورته معلوم وو. هغه فکر کاوه چي که دوه درې خانان وځپل سي نو نورو ته به عبرت سي او که دوه درې خانان په پیسو واخیستل سي نو نور خانان به د هغو په لاره پسي راسي. قومي خانانو په تېره بیا د خیبر د درې

او د افغانستان په ختیځ او لوېدیځ کې د لارو پر سر پرتو غلجیو قبایلو له پېړیو راهیسې د لارو د ساتلو په بدل کې تنخواوې تر لاسه کولې، او دا یې خپل حق باله. د جلال الدین اکبر څخه نیولې تر اورنګزېب پورې د مغولو سترو پاچاهانو د خیبر د درې اوسېدونکې قبایل په زور اېل نه کړل او د لارو د ساتلو په بدل کې یې باج ورکاوه.

ملیسن خو وایي چې حتی احمدشاه بابا هم د خیبر قبایلو ته د لارو د ساتلو په بدل کې له کاله اتیا زره روپۍ ورکولې. له احمدشاه بابا څخه وروسته د نورو سدوزیو پاچاهانو په دوره کې هم دغه پیسې ورکول کېدلې. دغه علت وو چې د خیبر قبایلو د شاه شجاع ملاتړ کاوه؛ هغه ته یې د ماتې په وخت کې په خپلو سیمو کې ځای ورکاوه او لښکرې به یې ورسره کولې. دوست محمدخان دغو قبایلو ته په لومړي سر کې له کاله دوولس زره روپۍ او بیا وروسته شل زره روپۍ ورکولې. کله چې شاه شجاع دوهم ځل قدرت ته ورسېدی نو خپل زوی تېمور ته یې چې دا وخت په پېښور کې وو، هدایت ورکړ چې د خیبر قبایلو ته ووایي چې که دوی د برتانیې استازو ته په لاره کې د تېرېدلو اجازه ورکړي نو دوی ته به خپلې زړې تنخواوې حواله وي. ملیسن ص ص ۳۹۰-۳۹۱

هغو غلجي قبایلو چې د افغانستان په ختیځ او لوېدیځ کې پراته ول د خیبر د پښتنو په څېر یې، له پېړیو راهیسې له کاروانونو او قافلو څخه مالیات اخیستي وه او یا یې د لارو د ساتلو په بدل کې له حکومتونو څخه پیسې او تنخواوې تر لاسه کړې وې. دوی داسې حالت نه سوای منلای چې د دوی په سیمه کې دې کاروانونه د توپکو او برچو په زور تېر سي او هغه دې هم د کفارو کاروانونه وي. دې قبایلو د پخوا په څېر لارې بندې کړې او خپل قانون یې باندې چلاوه. جنرال ناټ د هغوی د ځپلو له پاره له کندهاره څخه یوه لویه قوه ور واستوله. غلجیو ماته وکړه او غرونو ته پورته سول. مګر انګرېزانو به له داسې قبایلو سره چې تر ځلوېښتو زرو پورې جنګیالي یې درلودل څرنګه هره ورځ جګړې کړې وای؟ مکناټن بالاخره مجبور سو چې له کاله لږ تر لږه دېرش زره روپۍ ورسره ومنې. هغه کتاب ص ۳۹۶

که څه هم چې د قومي مشرانو د مواجبو او تنخواوو د کمولو فیصله خو د هند حکومت کړې وه خو د افغانستان تاریخي منابعو داسې اټکل کړی دی چې دا کار د نظام الدوله محمدعثمان خان، برنس او مکناټن دی. دوی وایي چې عثمان خان مکناټن ته پېشنهاد وکړ چې ملکي خوانین هسې بې ځایه تنخواوې تر لاسه کوي او هیڅ کار نه کوي نو که د دوی تنخواوې کمې سي هم به یې

حکومت ته ګټه ورسېږي او هم په دې مشرانو کې دونه زور نه سته چې زموږ مخالفت به وکړي. پر غلجیو مشرانو یې، له دغه درکه، څلوېښت زره روپۍ باقیات حواله کړل او هغوی ټولو وویل چې موږ ته دا پیسې څوک وړیا نه راکوي بلکې موږ د لارو ساتنه او خدمت کوو. چا یې پر خبره غوږ ونه نیوی او هغوی هم په هغه شپه د کابل له ښاره ووتل او خپلو سیمو ته ولاړل. د هغوی له خپګان او له کابل څخه د تښتېدلو سره سم د لارو امنیت خراب سو. ضمناً نظام الدوله د غلجیو د سیمي ګورنر برطرفه کړ او د هغه پر ځای یې خپل اووه کلن زوی محمداکبر وټاکی. دې کار غلجي نور هم خوابدي کړل او د راتلونکو لویو ښورښونو له پاره یې لاره هواره کړه.

مکناټن یا د خوب په دنیا کې ژوند کاوه او یا د انګرېزانو په پوځي او مالي قوت دونه مغرور وو چې په هیڅ ډول رپوټونو کې یې ری نه واهه. هغه په دغه حال کې چې په ختیځ کې د غلجیو د ښورښونو او ناکراریو رپوټونه ورته رسېدل بیا هم د کابل د پوځي قوې د کمولو په فکر کې وو او فکر یې نه کاوه چې یوه ورځ به د ده قوتونه د افغانانو د قهر په اورونو کې را ګیر وي او د خلاصون لاره به نه لري.

مکناټن په کابل کې د انګرېزانو د قوې تر ټولو لایق او زړه ور صاحب منصب جنرال سېل ته امر وکړ چې هندوستان ته ولاړ سي او په لاره کې غلجي قبایلو ته هم یو سبق ورکړي او د هغوی د مقاومت مرکزونه او قلاوي ورته ویجاړي کړي. جنرال سېل خپل انجنیر جورج براډ فوټ د غلجیو د قواوو د شمېر او د هغوی د قوت د اندازې او د هغوی د ځپلو له پاره د پلان په باب جنرال الفینسټون ته واستاوه هغه رپوټ ورکړ چې جنرال الفینسټون دونه ناروغ وو چې د هیڅ کار وړتیا یې نه درلوده. الفینسټون ورته ویلي وه چې نه د غلجیو په زور او قوت خبر دی او نه پلان ورکولای سي؛ ځکه چې ټول واک مکناټن اخیستی دی او دی هیڅ صلاحیت نه لري. الفینسټون براډ فوټ ته ویلي وه چې زه د کار نه یم، نه مي وجود او نه مي ماغزه کار کوي او لارډ اکلینډ ته مي هم ویلي دي خو زما پر خبره چا غوږ نه دی نیولی. د خدای په لحاظ ما له دې ځایه وباسی. ډال ریمپل ص ۲۵۱

براډ فوټ جنرال سېل ته خپله اندېښنه بیان کړې وه. ده هغه ته ویلي وه چې کله یې د کابل له اهنګرانو او وسله جوړوونکو څخه وغوښتل چې د ده له پاره د ماین ایښودلو وسایل جوړ کړي څو دوی د غلجیو د قلاګانو په محاصره کولو او تباه کولو کې کار ورڅخه واخلي هغوی ورته ویلي وه چې دوی د فرنګیانو له پاره کار نه کوي او د وسلو په جوړولو لګیا دي. کله چې دا رپوټ برنس ته

ورسېدی هغه ویلي وه چي دا وسلې د هغو کوچیانو له پاره جوړېږي چي په نیژدې ورځو کي د کوچ خیال لري. هغه کتاب ص ص ۲۵۱-۲۵۳

په دغو ورځو کي د کابل جلال آباد پر لاره باندي د غلجیو د ښورښونو او ناکراریو په باره کي رپوټونه را ورسېدل او جنرال سېل د اکتوبر پر نهمه خپل یو ډګروال له زرو تنو عسکرو سره واستاوه. غلجیو له کابل څخه تقریباً پنځلس میله لیري د بتخاک په علاقه کي د ډګروال پر کمپ باندي د شپې حمله وکړه او تقریباً څلوېښت تنه تلفات یې ور ورسول.

مکناټن دې رپوټ ډېر سخت په غوسه کړ او وې ویل چي دوی دونه ګستاخ سوي دي چي د کابل په پنځلس میلي کي زموږ پر قواوو باندي حملې کوي! د اکتوبر پر دوولسمه یې جنرال سېل د هغه د باقي پاته شپاړس سوه پوځیانو سره ورپسي ولېږئ او وظیفه یې ورکړه چي د خپلو مخکي لېږل سویو پوځیانو سره مرسته وکړي او هغه دره له یاغیانو پاکه کړي. د جنرال سېل قوه خوردکابل درې ته له داخلېدلو سره د غلجیو د قواوو له سختي حملې سره مخامخ سوه. په دې حمله کي انګرېزانو ته زیات تلفات ورسېدل او په خپله جنرال سېل هم په ورانه کي وویشتل سو. هغه په دغه حال کي جنګ ته دوام ورکړ خو وروسته د ډېرو زیاتو وینو د ورکولو له امله مجبور سو چي میدان پرېږدي او قومانده یې ډګروال ډیني ته پرېښودله.

د درې په دواړو خواوو کي له هري ګاري او ګوښې څخه ګولۍ اورېدلې او ټولي لوړي څوکي افغانانو نیولي وې. دوی هم په نښه ویشتلو کي ډېر ماهر ول او هم یې ځانونه په دونه کمال پټول چي یوازي د توپک له ډز څخه به یې لمبه ښکاره سوه او نور به سړی ورک سو. د دوی له پاره هره ګاره او هره ډبره سنګر وو. کلکټې ته په یوه رسمي رپوټ کي راغلي دي چي زموږ اروپایي او هندوستاني پوځیان له افغانانو سره د هغوی په خپلو مځکو او درو کي جنګېږي او دا ډېره مشکله ده. د دوی په خپلو سیمو کي د هغوی تعقیبول ګران کار دی او د دوی د جزایل اوږده توپکونه له دومره لیري ځایونو څخه ویشتل کوي چي زموږ د توپکونو مرمۍ هلته نه رسېږي. یو بل شی چي اروپاییان یې وارخطا کړي وه هغه په غونډیو او غرونو کي د افغانانو پټېدل او ورکېدل وه. جنرال سېل خپلي مېرمني ته ولیکل "تر هغه وخته پوري چي دوی ډزي پیل نه کړي سړی نه پوهېږي چي هلته کوم سړی سته او کنه" ډال ریمپل ص ۲۵۴

انګرېزانو په دره کي خپل پرمختګ ته دوام ورکړ او له کابل څخه نوې کومکي قوه هم ورته را

ورسېدله. یوه هفته وروسته د اکتوبر پر اووه لسمه، انګرېزي قواوو ته ډېر سخت تلفات ورسېدل. په هغه ورځ د مازیګر د پنځو بجو په شاوخوا کي د تیزین یوه مشر انګرېزانو ته پیغام واستاوه چي موږ او تاسي به نن ماښام په تنګي تاریکي کي سره مخامخ کېږو. د انګرېزانو له خوا پیغام ورته ورسېدی چي موږ به ستاسي د مشرانو تود هرکلی وکړو. ماښام غلجیانو پر انګرېزانو باندي مخامخ حمله پیل کړه. د هغوی اصلي قوې د انګرېزانو پر قواوو باندي د شا له خوا حمله وکړه او په دې حمله کي یې انګرېزان هک پک کړل. افغانانو د انګرېزانو په کمپ کي د شاه شجاع له خوا نویو استخدام کړو حاضرباشو په نوم پوځیانو ته چي زیاتره یې د حمله کوونکو غلجیو قومیان ول، رشوت ورکړی وو او د هغوی له لاري د انګرېزانو کمپ ته ننوتل. نورو عسکرو جنګ کاوه او دوی د ساروانانو په وژلو لګیا ول او اوښان یې تښتول. په هغه شپه د سېل له قوې څخه نهه اتیا تنه ووژل سول او ډېر زیات مالونه او مهمات یې له لاسه ورکړل چي افغانانو د هغوی له کمپ څخه پر تښتولو نیوي اوښانو باندي بار کړي ول.

د اکتوبر پر دیرویشتمه د سېل پر قوې باندي ډېره سخته حمله وسوه. په دې حمله کي د انګرېزانو ډېر زیات سړي قتل سول او د نورو مالونو او د روغتون د نهو خېمو او د هغو د سامانونو او لوازمو تر څنګ یې پنځه دیرش زره مرمۍ ورڅخه یووړلې چي وروسته یې د انګرېزانو په قتلولو کي کار ورڅخه واخیست.

په سبا ورځ د سېل قوه د غلجیو له خوا محاصره سوه او هغوی د خبرو له پاره هیات ورته را واستاوه. سېل مجبور سو چي له هغوی سره خبري وکړي او خپل استازی میګریګور یې د خبرو له پاره ور واستاوه. میګریګور وایي مشرانو ډېر ښه سلوک ورسره وکړ او له دې امله یې منـنـه ورڅخه وکړه پر هغوی باندي یې اعتماد کړی او یوازي له یوه سپاره سره د هغوی کمپ ته ورغلی دی. په دې مجلس کي فیصله وسوه چي سېل به هغوی ته څلوېښت زره روپۍ ورکوي او هغوی به محاصره ماتوي.

دوې ورځي وروسته بیا حملې پیل سوې او سېل په ډېر زحمت ځان جلال آباد ته ورساوه او هلته هم څو میاشتي په محاصره کي پاته سو. سېل تر جلال آباد پوري (۲۵۰) تنه تلفات او ډېر زخمیان ورکړل. او کله چي په پوځ کي دننه د افغانانو د جانباز په نوم قوې، چي مکناټن جوړه کړې وه، شورش وکړ او د انګرېزي صاحب منصبانو د قتلولو کوښښ یې وکړ نو څرګنده سوه چي ټول هیواد د انګرېزانو په مقابل کي پاڅېدلی دی او دا یوازي د غلجیو شورش نه دی چي یوه قوه یې

آرام کړي.

د مکناټن له یوه لیک څخه چي، د اکټوبر پر شپږ ویشتمه یې، د گورنرجنرال لارډ اکلینډ سکرټر ښاغلي مډوک ته لېږلی دی ښکاري چې دې وروستیو رپوټونو هم له خوبه نه وو ویښ کړی او یا یې رپوټونه سم په غور نه وه لوستلي. مکناټن ولیکل چې په دې وروستیو شپو ورځو کي په ختیځ کي د غلجیو د ځینو مشرانو د ښورښ په باب رپوټونه را رسېږي. د مکناټن له دې لیک څخه داسي ښکاري چې ده ته د جنرال سېل پر قوه باندي د وروستیو حملو او هغه ته د تلفاتو د رسېدلو په باب رپوټ نه دی رسېدلی؛ ځکه دی لیکي چې د ناکراریو په باره کي وروستي رپوټونه درې هفتې مخکي ورته رسېدلي دي. په دې رپوټونو کي راغلي وه چې د غلجیو مشران یو ناڅاپه له کابل څخه روان سوي دي. یوه ورځ وروسته ماته رپوټ ورسېدی چې دوی په لویه لاره کي یو کاروان را گرځولی دی؛ د مالونو له څښتنانو څخه یې ټول مالونه اخیستي او غرونو ته یې پورته کړي دي.

دی وایي زه سمدستي شاه شجاع ته ورغلم او له هغه څخه مي وغوښتل چې گورنر حمزه خان، د غلجیو مشرانو ته له یوه پیغام سره ور واستوي او هغوی ته ووایي چې له بغاوت څخه لاس واخلي او ورته ووایي چې د هغوی ټول عرضونه به واورېدل سي او د هغوی ټولي غوښتني به پوره سي. دا هیات روان سو خو ځکه بریالی نه سو چې په خپله حمزه خان د قبایلو لوی پاروونکی وو.

مکناټن د ختیځ د غلجیو د رپوټونو د اخیستلو سره سره، د گورنرجنرال دفتر ته اطمینان ورکوي او ورته لیکي چې د غلجیو خانان یې خوشاله کړي دي. هغوی ته یې غنم ورکړي دي او ځرنگه چې نن سبا د غنمو بیه ډېره لوړه ده نو هغوی له دغه درکه تر پخوا هم زیات امتیاز تر لاسه کړی او راضي دي. پیپرز ص ص ۷-۸

جنرال سېل د اکټوبر پر دېرشمه، د گورنرجنرال دفتر ته په خپل نسبتاً مفصل رپوټ کي لیکلي وه چې له کابل څخه تر جلال آباد پوري یې له سهاره تر ماښامه له دښمن سره مقابله کړې او په هر ځای کي یې تلفات لیدلي او ډېر لایق صاحب منصبان یې له لاسه ورکړي دي. ده ولیکل چې د غلجیو جنگیالي په خپلو غرونو او سیمو کي ښه بلد دي او له جزایل توپکونو څخه په ډېر مهارت کار اخلي. ډېر ماهر ویشتونکي دي او توپکونه یې له ډېري لیري فاصلې څخه چې هلته یوازي زموږ د توپونو زور رسېږي، ویشتل کوي. ده ولیکل چې زموږ د توپکونو مرمۍ د دوی مورچلونو ته نه رسېږي. هغه کتاب ص ۱۵

نه ده معلومه چې رابرټ سېل به د دغه رپوټ کاپي کابل ته لېږلې وي کنه او که یې لېږلې وي نو یقیناً به نه وي رسېدلې ځکه چې له جلال آباد څخه تر کابل پورې ټولې لارې د غلجیو یاغیانو په لاس کې وې او د نومبر پر دوهمه لا په کابل کې پاڅون هم پیل سوی وو.

د افغانستان په جنوب کې هم د یوه عمومي شورش نښې لیدلې کېدلې. په کندهار کې د انګرېزانو د کمپ سیاسي استازی هینري راولنسن په دې عقیده وو چې د انګرېزانو سره دښمني ورځ په ورځ زیاتېدونکې ده. د هیواد له یوه سره تر بله پورې ملایان زموږ پر ضد تبلیغ کوي او خلک را پاڅوي. په کندهار کې پوځي قوماندان جنرال سېل هم په دغه عقیده وو او خپلې لور ته یې لیکلي وه چې دا هیواد په ډېر خواشینوونکي حالت کې دی. د سر ویلیم مکناټن اشتباهاتو او کمزوري سستم ډېر سخت تاوانونه رسولي دي. ډېر کلونه په کار دي چې د هغه د غلطیو له لاسه رسېدلي تاوانونه جبران سي. ده ولیکل چې لارډ اکلینډ څرنګه داسي یوه سړي ته دونه لوی صلاحیت ورکړی دی چې د هغه د لاسه هر هغه څه سپک سول چې د انګرېزانو له نامه سره اړه لري. ډال ریمپل ص ۲۵۷

نظام الدوله په دغه حال او خطرناکو شرایطو کې هم له خپلو دسیسو او شخصي کسات اخیستلو څخه لاس وانه خیست او د مکناټن له خوا یې شاه شجاع ته یو مکتوب راووړ او له هغه څخه یې غوښتي وه چې پنځه تنه دراني خانان: غلام احمدخان ولد مختارالدوله، عبدالله خان اڅکزی، محمدعطاخان د سردار سمندرخان بامیزایي او د هغه اکا سردار سکندرخان او عبدالسلام خان ولد محمد اکرم خان بامیزایي امین الملک دي له کابله ووځي. شاه شجاع له دې حکم سره خپل مخالفت څرګند کړ مګر د انګرېزانو د فشار په وجه یې منلو ته مجبور سو او له کابل څخه د خوانینو د اخراج امر یې صادر کړ. خوانینو که هر څه اعتراضونه او عذرونه وکړل او شاه شجاع ته یې وویل چې له کابله پرته د اوسېدلو له پاره بل ځای نه لري او په دې ښار کې یې هم اولادونه اوسي او هم یې کورونه او جایدادونه دي. نه شاه شجاع د دوی د عذر د منلو صلاحیت درلود او نه مکناټن قبول کړ او هغوی ته یې وویل چې په دریو ورځو کې به له کابل څخه وځي او له پېښوره پرته بلې خوا ته تللای هم نه سي. د هغوی ټولو دا یقین سو چې انګرېزان غواړي دوی د پېښور له لارې هندوستان ته واستوي او دوی به مجبور وي چې باقي عمر هلته تېر کړي. هراتي ص ص ۱۳۲-۱۳۳

## پاڅون

انګرېزانو په افغانستان کې په تېرو څه باندې دوو کالو کې ټول هغه کارونه وکړل چې د نه کولو وه او د افغانستان خلک یې په لوی لاس پاڅون ته تحریکول. خو په داسې حال کې چې د افغانستان هر قوم او هره سیمه د انګرېزانو پر ضد له خروښه ډکه وه دوی هم د غلجیو مشرانو مواجب، چې هغوی له مودو راهیسې، د لارو د ساتلو په بدل کې تر لاسه کول بند کړل او هم یې لا باقیات ورباندې حواله کړل او د درانیو خانانو ته یې له کابله د وتلو امر وکړ، ګویا خپل قبر یې په خپله وکیندی.

د کابل پاڅون لکه د نړۍ د بل هر پاڅون په څېر یو ناڅاپه پیل سو او په لږ وخت کې یې داسې زور واخیست چې په څه کم دریو میاشتو کې یې د انګرېزانو پوځ داسې تباه کړ چې په خپل ټول تاریخ کې یې داسې تباهي نه وه لیدلې. په خپله مکناټن هم لیکلي دي چې ما افغانستان ته د راتللو له لومړیو ورځو داسې فکر کړی وو چې په دې هیواد کې به یو وخت یو ښورښ منځ ته راځي او په پوځ کې ډېر زیات نارضاییت موجود وو؛ مګر دا فکر مي نه کاوه چې په دغه ټاکلي وخت کې دې پیل سي. کې دوهم جلد ص ۵

الیکزانډر برنس د کابل له وروستیو پېښو او د حکومت له اجرآتو سره څکه چنداني غرض نه کاوه چې ټاکل سوې وه مکناټن د نومبر په لومړۍ هفته کې د افغانستان د سیاسي چارو مشرتوب هغه ته وسپاري او په خپله د هند پر لور حرکت وکړي او هلته د بمبیي ګورنر سي. خو قسمت بل پلان درلود.

د نومبر پر لومړۍ نېټه ماښام چې برنس خپل نوي ماموریت او ترقی ته خوشاله وو، د غازي عبدالله خان اڅکزي په کور کې د راتلونکي پاڅون مشران سره غونډ سوي ول. څرنګه چې الیکزانډر برنس یا د کابل د خلکو په اصطلاح سکندر قومي مشرانو ته تر ټولو زیاته بې احترامي کړې وه نو د هغه د کور د سوځولو او له منځه وړلو په باره کې فیصله صادره سوه. د جرګې قزلباش برخه وال نایب محمدشریف او تاج محمدخان په هغه شپه برنس ته د جرګې له فیصلې څخه اطلاع ورکړه. میرزا محمدخان جوانشېر چې هغه هم په جرګه کې برخه درلوده، موهن لال ته خبر ورکړ خو برنس د چا خبره ونه منله او په خپل کور کې آرام ویده سو. موهن لال دوهم جلد ص ۳۹۹

د برنس کور ښایي څکه په نښه سوی وي چې یو خو یې د کابل د ښځو او بې شرمیو په قضیو کې تر ټولو انګرېزي صاحب منصبانو خراب رول لوبولی او په دغو قضیو کې یې په لوی لاس د

قضاوت او عدالت د کېدلو مخه نیولې وه. قومي خانانو، په تېره بیا عبدالله خان اڅکزي ته یې ډېر زیات سپکاوی کړی وو او پر کور باندي یې حمله کول څکه یو څه آسانه کار وو چي مکناټن په عسکري قشله کي دننه اوسېدی او پر هغه باندي حمله غیر ممکن کار وو او د برنس پر کور باندي یرغل نسبتاً اسانه وو. بله مهمه خبره دا وه چي د ده د کور څنګ ته د کپټان جانسن کور وو چي د قشلې ټوله خزانه پکښې ساتل کېدله.

موهن لال وایي د نومبر پر دوهمه سهار پر اووه بجې د کور مزدوري دروازه په دربي ټکوله او ناري یې وهلې چي آقا ته ویده یې ښار پر بل مخ چپه سو. زه باغ ته را ووتلم او ومي لیدل چي زما په ګاونډ کي خلک د خپلوکورو سامانونه خوندي ځایونو ته وړي. هغه کتاب ص ۴۰۱

مکناټن ته سهار وختي د برنس یاداشت ورسېدی او پکښې لیکلي یې وه چي د ده د کور په شاوخوا کي یو څه ناکراري روانه ده او د پوځي مرستي غوښتنه یې کړې وه. مکناټن هم د یاداشت له کلماتو څخه داسي اټکل کړی وو چي چنداني لویه خبره به نه وي. ګړی وروسته د جنرال دفتر ته ورغی او د برنس د یاداشت په باره کي یې خبري کولې. دوی به لا د هغه مرستي ته د پوځیانو د لېږلو فیصله کوله چي برنس ټوټې ټوټې سوی وو. کې دوهم جلد ص ص ۶-۷

له برنس سره د هغه ورور چارلس برنس او ضابط براډ فوټ، چي ورور یې، یو کال مخکي په همدغه ورځ، په پروان دره کي د دوست محمدخان سره په جنګ وژل سوی وو ژوند کاوه. سهار وختي یوه افغان برنس ته رپوټ راووړ چي د ده د وژلو پلان جوړ سوی او نن عملي کېږي. برنس باور ونه کړ او هغه سړی یې جواب کړ. یو ګړی وروسته نظام الدوله محمدعثمان خان راغی او برنس ته یې وویل چي ژر تر ژره ځان بالاحصار او یا قشلې ته ورسوي. برنس هغه ته وویل چي زه یې مخه نیولای سم. دا ګړی خلک د هغه د کور مخي ته را رسېدلي ول. برنس فکر نه کاوه چي د ده له کوره څخه په دوه میله فاصله کي دي په قشله کي شپږ زره عسکر وي او مکناټن او یا جنرال الفینسټون دي د ده د ژغورني کوښښ ونه کړي. هغه کتاب ص ۷

د ښورښ مشران عبدالله خان اڅکزی، امین الله خان لوګری، سکندرخان او عبدالسلام خان د برنس د کور سره نیژدې باغ ته ورسېدل. برنس خپل یو سید مامور او د حمید په نوم یو بل سپور عبدالله خان ته واستول څو د ښورښ د علت پوښتنه وکړي او ورته ووایي چي د دوی امتیازات به ډېر ژر بیرته پیل سي. مخکي له هغه چي څوک جواب ورکړي، سکندرخان هغه سید په توره وواهه او سر یې ورڅخه پرې کړ او هغه بل سپور وتښتېدی.

برنس د خپل کور له برنډې څخه د ښورښیانو سره خبري پیل کړې او هغوی چې مخکې لا بامونو ته ختلي وه، د برنس پر لور ډزي وکړې او براډ فوټ یې، چې د برنس څنګ ته ولاړ وو، په سینه کې وویشتی. د برنس له خوا هم ډزي پیل سوې. هزارخان کوټوال، حاجي علي، هاشم خان کاه فروش، کاکاحسین، عبدالرحیم، محمدحسین خان عرض بیګي د برنس کور ته اور واچاوه. ضابط چارلس برنس انګرړ ته راووت او له خلکو سره یې جګړه پیل کړه او خلکو ټوټې ټوټې کړ. د شاه شجاع خپل کنډک مرستي ته را ورسېدی مګر ښورښیان ورباندي غالب سول او ټول یې ووژل او توپکونه یې ورڅخه واخیستل. کور اور واخیست او برنس مجبور سو چې دباندي راووځي. ښورښیانو ته یې زاری وکړې چې که دی ونه وژني له دوی سره به هر څه چې غواړي هغه وکړي. ناظر علی محمد، هزارخان کوټوال او د عبدالله خان اڅکزي وراره او ډېر نور چې برنس ظلم او بې عدالتي ورسره کړې وه حاضر ول او ټولو په یوه سلا په ښکنځلو جواب ورکړ او ځای پر ځای یې وواژه. کپتان جانسن چې تېره شپه یې په قشله کي تېره کړې وه له دغه ښورښ څخه ژوندی پاته سو او کور یې چې د برنس د کور څنګ ته وو او خزانه پکښې خوندي وه، لوټ او وسوځول سو. موهن لال ص ص ۴۰۷-۴۰۹



د عبدالله خان اڅکزی انځور

کپتان جانسن وایي ښورښیانو زما د کور دروازې ته اور واچاوه او کور ته ننوتل. دوی زما ټول محافظین چي یو صوبه دار او اته ویشت تنه سپاهیان ول او څو تنه خوردضابطان ورسره ول ټول ووژل. دوی زما ټول نوکران، ښځي، نارینه او ماشومان قتل کړل او زما خزانه یې چي یو لک اووه ویشت زره روپۍ کېدلې لوټ کړه. زما د دریو کالو د حسابونو کاغذونه یې، چي د تقریباً یومیلیون سټرلینګ پونډو حسابونه وه، وسوځول او زما شتمني یې چي څه باندي لس زره روپۍ یې ارزښت درلود چور کړه. کې ص دوهم جلد ص ۱۳

شاه شجاع د الیکزانډر برنس د ساتلو او د نظم د ټینګولو له پاره خپل کنډک ور واستاوه او له ښورښیانو سره په جګړه لګیا سول؛ مګر ډېر ژر یې ماته وکړه او اکثر یې قتل سول او توپکونه یې ښورښیانو ته په لاس ورغلل.

شاه شجاع خپل زوی شهزاده فتح جنګ ور واستاوه مګر هغه د دې پر ځای چي د ښورښ په کرارولو کي مرسته وکړي پر خلکو باندي بڼغ وکړ چي پر خپل عزم ټینګ ودرېږئ، خپل ایمان ثابت کړئ او کافران تباه کړئ. دا معلومه نه سوه چي فتح جنګ د خپل پلار په اجازه ښورښیان تحریکول او که یې پر خپل سر کار کاوه. خو کله چي نواب زمان خان چي موهن لال یې په خپل کور کي ساتلی وو، له ښورښ سره د شاه شجاع نوم واورېدی نو وې ویل چي که په دې ښورښ کي د شاه شجاع لاس وي نو بیا یې کرارول ډېر ګران دي. ده مکناټن ته ولیکل چي که ستا خوښه وي زه په خپله قشلې ته درځم او ستا له لارښووني سره سم به د نظم په ټینګولو کي کوښښ وکړم. که په ښورښ کي په خپله د شاه شجاع لاس نه وي نو ښورښیان ښایي زما خبره ومني. مکناټن جواب ورنه کړ. هغه کتاب ص ص ۴۰۷-۴۰۸

میرزا عطامحمد هم د موهن لال دا خبره تاییدوي چي شهزاده فتح جنګ په ظاهره د ښورښ د کرارولو له پاره روان سو مګر په زړه کي د غازیانو سره ملګری وو. له هغه سره څلور سوه سپاره عسکر او څلور توپونه ورسره وه او له غازي عبدالله خان اڅکزي او امین الله خان لوګري سره یې خبري پیل کړې. خبرو نتیجه ور نه کړه او غازیانو پر فتح جنګ باندي حمله وکړه او په دې جنګ کي نایب محمد شریف خان ووژل سو. فتح جنګ ایله ځان په تاخته خلاص کړ او بالاحصار ته ننووت. عطامحمدص ص ۱۵۲-۱۵۳

تاریخ سلطاني ص (۲۶۶) د شاه شجاع له خوا د فتح جنګ د لېږلو خبره تاییدوي مګر له غازیانو سره په پټه یا ښکاره د فتح جنګ یا شاه شجاع د ملګرتوب خبره نه کوي. تاریخ سلطاني د

فتح جنګ سره د ورسره عسکرو شمېر په برخه کې یو څه مبالغه کوي او یوازې د هغه د مات سوي پوځ مړي او زخمیان اووه سوه تنه ښیي او وایي چې غازیانو په همدغه ورځ نواب محمدزمان خان د خپل پاچا په حیث ومانه. په دې توګه د کابل د ښار په منځ کې ناکراري په یوه ورځ داسې سرحد ته ورسېده چې د کرارولو امکان یې نه لیده کېدی. خو که د جنرال شیلټن چې په قشله کې یې له جنرال الفینسټون څخه وروسته دوهم مقام درلود، یاداشت ته وګورو نو ښکاري چې انګرېزان او شاه شجاع دونه وارخطا وه چې د هیڅ ډول ورې او لویې پېښې د مخنیوي صلاحیت، زړه او توان یې نه درلود. شیلټن لیکي:

"د نومبر پر دوهمه سهار پر اووه بجې د ښار تر دېوال لاندې تېرېدلم چې زمونږ واښه رېبونکي له دراوزې سره ولاړ ول. ویل یې دراوزه تړلې ده او مونږ نه سو وتلای. په ښار کې مطلقه کراري وه نو زه د کور خوا ته ولاړم او ما فکر وکړ چې په ښار کې به غلا سوې وي او دوی به د غله د تښتېدلو د مخنیوي له پاره دروازه تړلې وي. پر اتو یا نهو بجو راز راز رپوټونه خپاره سول. د نهو او لسو بجو تر منځ د جنرال الفینسټون یاداشت را ورسېدی او ویل یې چې په ښار کې ناکراري ده او زه باید درې ټولۍ عسکر او څلور توپونه راسره واخلم او د بالاحصار خوا ته حرکت وکړم. سمدستي یو بل هدایت راغی او ویل یې مه څه چې شاه شجاع نه غواړي. ما ورته ولیکل چې که په ښار کې ناکراري وي نو ژر فیصله وکړی. په دغه وخت کې دوه زړه توب لازم نه دی. په جواب کې یې راته وویل چې سمدستي بالاحصار ته حرکت وکړه او هلته به د مکناټن پوځي سکرټر، چې په بالاحصار کې دی، نور هدایت راکړي. ما حرکت کړی وو چې د سکرټر له خوا بل هدایت راغی چې نورو اوامرو ته منتظر سم. ما انجنیر ته وظیفه ورکړه چې ته ورسه وګوره چې زما د ځنډولو علت څه دی. خو انجنیر چې په بالاحصار کې له آسه څخه کښته کېدی یوه افغان حمله ورباندې وکړه او مړ یې کړ. له دې پېښې څخه وروسته ډېر ژر د مکناټن سکرټر په خپله راغی ویل یې حرکت کوه. کله چې زه بالاحصار ته ورغلم نو شاه پوښتنه راڅخه وکړه چې زه چا را لېږلی یم او څه کوم؟ شاه په خپله په ښار کې دننه د عملیاتو او ناکرارۍ د ختمولو اجازه نه درلوده او یوازې یې د خپلو هندوستاني عسکرو ساتنه کولای سوای. په دې توګه نو شیلټن نه سو ملامتولای. مګر نه مکناټن او نه جنرال الفینسټون په دې پوهېدی چې ډېر عاجل اقدام باید وکړي. څه چې پاچا غوښتل هغه پله درنه وه او هغسې وسوه" ایکسپیډیشن ص ص ۳۴۵-۳۴۶

هینري ډیورنډ لیکي چې انجنیر سټرټ وژل سوی نه دی بلکې ډېر سخت ټپي سو او کله چې

یو لږ په حال کي راغی او د خبرو او لیکلو توان یې پیدا کړ نو سمدستي یې وویل چي د انګرېزانو عسکر باید له قشلې څخه بالاحصار ته انتقال سي. مګر څرنګه چي کوچینو مغزونو ته کوچنی ستونزي ډېري لویي او ښَبو ښکاري او له بده مرغه چي د کمزوري جنرال پر شاخوا باندي ډېر کمزوري سلاکاران را ګرځېدلي ول نو هیڅ سمه او پر وخت فیصله ونه کړه. ډیورنډ ص ۳۵۶

د ځینو انګرېزي لیکوالانو له لیکنو څخه خو ښکاري چي شاه شجاع د ښورښ په څېلو کي تر انګرېزانو فعاله ونډه واخیستله او وایي چي که چیري د کیمپبل په مشري د هغه لېږل سویو قواوو له ډېر بې زړه توب څخه کار نه وای اخستی او ژر پر شا سوي نه وای او یا ژر تقویه سوي وای ښایي د برنس ژوند یې ژغورلی وای. په هغه ورځ جنرال شیلټن او جنرال الفینسټون تر ټولو زیات واک او صلاحیت درلود. خو شیلټن هیڅ ونه کړل او الفینسټون دونه ناروغ وو چي څه یې کولای نه سوای. هغه کتاب ص ۳۵۳

لیفټینینټ ایرې په دې عقیده دی چي دا ښورښ له لویه سره د شاه شجاع په تحریک پیل سو. دی د کپټان جان کانلي په حواله وایي چي له هغه سره په دې برخه کي قانع کوونکي دلایل او ثبوتونه موجود وه. کانلي وایي شاه شجاع له برنس څخه نفرت درلودی؛ په دې برخه کي شاه شجاع یوازي نه وو بلکي ډېرو نورو مشرانو هم له هغه څخه ځکه نفرت درلود چي هغه ډېر مغرور وو او له چا سره یې نه لیدل. کانلي وایي شاه شجاع په دې خبر وو چي که مکناټن هندوستان ته حرکت وکړ نو د هغه پر ځای باندي برنس ټاکل کیږي او له هغه سره د ده ګوزاره نه کیږي. ځکه یې د هغه د له منځه وړلو له پاره اور بل کړ. دی وایي بېچاره شاه شجاع په دې نه پوهېدی چي دا اور به یو وخت دونه زور واخلي چي وژل به یې د هیچا په وس پوره نه وي او دی به په خپله پکښي وسوځي. ایرې ص ۳۲۸

دا چي د برنس د وژلو په مسئله کي به شاه شجاع برخه درلودلې وې کنه یو څه مشکوکه ښکاري خو کله چي له دې پېښي او د پاځون له پیل کېدلو څخه څه باندي یوه میاشت وروسته مکناټن له اکبرخان سره موافقه وکړه چي یا به شاه شجاع ته، په کابل کي د پاته کېدلو په صورت کي له کاله یو لک روپۍ تنخوا ورکوي او یا به اجازه ورکوي چي هندوستان ته سفر وکړي او له دې فیصلې څخه یې شاه شجاع خبر سو نو هغه مکناټن ته ګیله وکړه او له دې مکتوب څخه یې ښکاري چي شاه شجاع له افغانستان څخه د انګرېزانو د پوځونو وتل نه غوښتل. شاه شجاع مکناټن ته ولیکل چي "زه تاسي دې ملک ته د دغه له پاره راوستلم چي د دښمنانو په لاس مي ورکړی؟ تاسي لا د بارکزیانو او

د دې ملک د اوسېدونکو له بد قولی څخه خبر نه یاست. ولې خپل ځانونه او ما دواړه مرګ ته ورکوی. تاسې دې خلکو ته بې ځایه پیسې ورکوی او هغوی په لوی لاس د خپلو ځانونو د قتلولو له پاره تقویه کوی. تاسې چې کومه لاره اخیستې ده هغه د عقل لاره نه ده." خو کله چې مکناټن ته دا لیک ورسېدی هغه په جواب کې ورته ولیکل چې اوس موږ موافقه کړې ده او په دې برخه کې نور څه نه سی کېدلای. شاه شجاع د افسوس لاسونه موښل او ویل به یې چې مکناټن صاحب ته له دونه عقل او پوهې سره څه پېښه سوه چې دونه غلطه لاره یې واخیستله. هراتي ص ۱۳۸

د دې پاڅون د لومړۍ ورځې په باب چې وروسته هر څه څېړني سوې دي نو د ټولو عیني شاهدانو او هغو کسانو چې په دغو پېښو کې یې لږ او ډېر لاس درلودلی دی، له خبرو څخه ښکاري چې د انګرېزیانو مشران هم بې ارادې هم په خپل کار ناپوه او هم ډارن کسان ول. ټول څېړونکي او عیني شاهدان په دې عقیده دي چې د برنس د کور مخې ته په لومړي سر کې له دېرشو څخه نیولې تر سلو تنو پوري راغونډ سوي وه. ټول دا وایي چې د دې پاڅون د ځپلو له پاره یوه وړه عسکري قوه او یا د انګرېزانو د ګارنیزون له لوري یو عکس العمل کافي وو. خو څرنګه چې هیچا ښور ونه خوړ نو د غازیانو شمېر په لږ وخت کې څو سوو تنو ته ورسېدی. کپټن میکنزي وایي له جنرال مک کیسکل سره پر کوهستان باندې د حملې په عملیاتو کې د کابل د شیعه ګانو مشر خان شیرین خان راسره ملګری وو او کله چې مې د هغې ورځې د پاڅون په باب پوښتنه ورڅخه وکړه نو همدغه خبره یې کوله او ویل یې چې که د ګارنیزون له خوا یو لږ شانې حرکت سوی وای نو زه د انګرېزي قواوو ملاتړ ته تیار وم او ډېرو نورو کسانو به مې ملاتړ کړی وای او د دې پاڅون مخه به مو نیولې وای. خو څرنګه چې ګارنیزون هیڅ اقدام ونه کړ نو ما هم څه نه سو کولای. کپټن جانسن وایي د هغه پاڅون مخه چې په لومړي سر کې په دریو سوو تنو نیوله کېدلای سوای وروسته یې په دریو زرو تنو هم مخنیوی نه سو کېدلای. دی وایي پاڅون ځکه ډېر ژر زور واخیست چې ډېر زیات کسان د برنس وینو ته تږي ناست ول. کې دوهم ټوک ص ص ۱۷-۱۸

که څه هم چې انګرېزانو هر څومره قوي جنرالان او هوښیار سیاسي سلاکاران افغانستان ته را وستلي وای د هغوی د ظالمانه تېري نتیجه به یوه وای. د افغانستان خلکو به حتماً د پردیو په مقابل کې پاڅون کولای او پردیو به حتماً ماته خوړلای؛ خو انګرېزانو پر افغانستان باندې د خپل ښکاره او بې موجبه یرغل په وخت کې رهبري داسې یوه ټیم ته سپارلې وه چې د دوی د ناکامی او د افغانانو د پاڅون زمینه یې په زور برابروله. شاه شجاع په خپل ټول تاریخ کې ثابته کړې وه چې هغه یو بې

زړه سړی دی او په اکثرو جنګونو کې یې ماته خوړلې وه. په افغانستان کې یې د خپل قدرت د هیڅ رقیب سمه چاره نه وه کړې او ټول وخت یې په داخلي جنګونو کې تېر سوی وو. کله چې انګرېزانو افغانستان ته راووست نو که مکناټن ته نه وي ځرګنده سوې، اکثرو انګرېزي صاحب منصبانو د هغه د محبوبیت په برخه کې شکونه ښکاره کړي وه. په خپله مکناټن نه یوازې د افغانستان په باره کې یوه پاڼه لوستې نه وه په اداري چارو کې دونه خودخواه او پر ځان مین وو چې د خپل هیڅ انګرېز ملګري پر خبرداري او مشوره یې غوږ ونه ونیوی او په لوی لاس یې اور بل کړ. بالاخره جنرال ناټ خپلې لور ته ولیکل چې دی حیران دی د هند حکومت دومره نالایقه سړی ځرنګه د سیاسي استازي په حیث ټاکلی دی. الیکزانډر برنس چې د افغانستان له ټولني سره یې بشپړ بلدیت درلود، هم په اخلاقي لحاظ کمزوری سړی وو او هم یوازې په دې غم کې وو چې کله به مکناټن هند ته ولاړ سي چې دی د هغه پر ځای مقرر سي او د افغانستان دوهم پاچا وګڼل سي. دومره په خپل زور مغرور وو چې د اور لمبې یې د کور تر دروازې پورې ورغلې لا یې هم د خطر احساس نه کاوه او مکناټن ته یې ولیکل چې د ده له کور سره یو څه ستونزه ده. الفینسټون یو ناروغ سړی وو، له یوه ځایه تر بل پورې به په کټوله یا کجاوه کې انتقالېدی او براډ فوټ ته یې ویلي وه چې د خدای روی ته وګوری ما د دې ملکه وباسی. جنرال شیلټن، چې له لویه سره په بالاحصار کې اوسېدی او وروسته ګارنیزون ته انتقال سو، له مکناټن او الفینسټون دواړو سره مخالف وو. هغه په واژه خوله نارې وهلې چې زه به په مکناټن ریشخند ووهم او ماته خوند راکوي چې هغه ریشخندوم. د کابل په ډېرو سختو حالاتو کې یې د مجلس د نزاکت پروا نه ساتله. پر مځکه باندې به په بړستن کې پېچلی پروت وو او چې د یوې موضوع په باره کې به د ده عقیده وپوښتل سوه نو ده به په خرهاري جواب ورکاوه. ډال ریمپل ص ۳۰۳

سړی نه پوهېږي چې انګرېزانو افغانستان او افغانانو ته په څه سترګه کتل. مکناټن جنرال الفینسټون ته په کابل کې د برنس د کور پر شاوخوا باندې د ښورښ او حالاتو د خرابوالي په باره کې عاجل رپوټ ورکوي. الفینسټون له لږ ځنډو څخه وروسته، مکناټن رخصتوي او په داسې حال کې د خپل کار مېز ته کښیني لکه هیڅ پېښه چې سوې نه وي. قلم را اخلي او په ډېرو آرامو اعصابو په کابل کې د راتلونکو عملیاتو له پاره هدایتونه ورکوي.

ګرانه سر ویلیم!

ته چې زما له دفتر څخه ووتلې نو زه له هغه وخته په دې فکر کې یم چې سبا باید څه وسي.

زموږ ستونزه يو څه سخته ده. که سبا شيلټن تقويه سي نو زه شک نه لرم چي هغه به له دوو ټوليو عسکرو سره د لاهوري دروازې خوا ته روان سي او موږ به له هغي دروازې سره له ياغيانو سره مخامخ سو. مگر که موږ اوس دا عمل وکړو نو څه به تر لاسه کړو؟ دا کار کېدلای سي مگر ډېر زيات تلفات ورسره تړلي دي. ځکه چي زموږ پر عسکرو باندي به تر لاهوري دراوازې پوري له بامونو څخه ډزي کيږي. که دوی هلته وي نو موږ به حمله وربانديي وکړو. مگر که په ښار کي دننه حرکت کوو موږ به بيرته را ستنېږو او هيڅ به مو تر لاسه کړي نه وي. او که سړی ښار ته اور ور اچوي نو زه گومان کوم چي د دې ښار جوړښت داسي دی چي اور نه اخلي. موږ بايد وگورو چي سبا څه پېښېږي او بيا به نو فيصله کوو. که موږ د لاهوري دراوزې سره ټول کورونه اشغال کړو په هغه صورت کي به پر ټول ښار باندي حاکميت ولرو، مگر موږ د پراخو عملياتو له پاره وسايل نه لرو. که موږ د قزلباشو په ملاتړ باندي تکيه وکړو نو ښايي د ښار کنټرول په اساني سره تر لاسه کړو."

ستاسي مخلص

ډبليو. کې. الفينسټون کې ص ص ۲۶-۲۷

په دې توگه عملي پاڅون پيل سو او غازيانو ته څرگنده سوه چي انگرېزان د خپلو ځانونو او مشرانو د ساتلو جرأت او وسايل نه لري او دا وطن که نن وي که سبا وي د پخوا په څېر به د دوی وي. د غازيانو شمېر د نومبر د دوهمي تر ماښام پوري څو زرو تنو ته ورسېدی او د نومبر پر دريېمه لا نواب جبارخان چي موهن لال وايي هر وخت د انگرېزانو خواخوږی وو ښار ته ننووت او گڼ شمېر کليوال ورسره وه؛ ډولونه يې وهل او پر خلکو يې ږغ کاوه چي د فرنگيانو په مقابل کي را پورته سي. د نومبر پر څلورمه غازيانو د انگرېزانو پر کميساری باندي حمله وکړه او ټول خوراکي مواد يې چور کړل. موهن لال دوهم جلد ص ۴۱۲

افغانانو په دونه آساني د انگرېزانو د خوراکي موادو ډيپو ونيوی چي هيڅا يې تصور نه سو کولای. په قشله او بالاحصار کي د انگرېزانو په عصري وسلو سمبال پنځه زره عسکر داسي هک پک تللي ول لکه چا چي جادو ورباندي ويلی وي. شاه شجاع په دغه وخت کي له بالاحصار څخه د جگړې ننداره کوله؛ او چي د انگرېزانو وارخطايي يې ليده په زوره يې ناره کړه چي انگرېزان لېونيان دي! ډيورنډ ص ۳۵۷

انگرېزان يا له بې زړه توبه او يا له بې تدبيری داسي لاس او پښه سوي وه چي نه يوازي يې

الکیزانډر برنس ته مرسته ونه رسوله او نجات یې ور نه کړ د خپل بې زړه توب له کبله یې د کمیساریات ټول گودام او اکمالات له لاسه ورکړل بلکي د پاځون په دریمه یې کپتان کولین میکینزي ته یې چې د قله نشان خان ساتنه یې کوله او غازیانو یرغل وربادي وکړ هم مرسته ونه رسوله او کله چې له هغه سره ټول مهمات خلاص سول او د تقویتي قوې امید ورته پاته نه سو نو ځان یې په تېښته قشلې ته ورساوه. موهن لال دوهم جلد ص ۴۱۲

لېډي سېل د کمیسیاریات د گودام د لوټېدلو په باب په خپلو خاطراتو کي لیکي چې په دغه قلا کي زمونږ ټوله زخیره پرته وه. دوولس زره منه اوړه، غنم او باغلي او ټول طبي مواد چې څلور لکه روپۍ ارزښت یې درلود پکښي زخیره سوي وه.

لېډي سېل وایي نه د ښورښ د ځپلو او نه د گودام د ساتلو له پاره چا اقدام وکړ. داسي گومان کیږي چې د دغه ناځاپي پاڅون له امله پاچا، مکناټن او الفینسټون ټول فلج ول. له پاچا څخه خپل ټول درباریان او ډېر نیژدې کسان تښتېدلي دي. هغه ته اوس یوازې وزیر ور پاته دی، چې ډېر زیات گومان کیږي زمونږ پر ضد په دسیسه کي برخه لري. لېډي سېل. ص ۴۶

لېډي سېل د غازیانو دا ټولي حملې له خپلي کړکۍ څخه لیدلې او په خپلو خاطراتو کي یې ولیکل: "زه هر وخت دا خبره اورم چې وایي افغانان بې غیرته خلک دي. مگر ماته دوی ډېر غښتلي مېړونه ښکاري. د انگرېزانو په څېر متمدنو خلکو په قانون کي ښایي د چا قتلولو ته د نامردی عمل وویل سي. مگر زه چې افغانانو ته گورم چې له خپلو اوږدو چړو سره حملې کوي او په هیڅ شي کي ری نه وهي؛ دا د بې غیرتو خلکو کار نه دی. دوی پرته له دې چې په خپله توپونه ورسره وي، په ډېره مړانه زمونږ د توپونو په مقابل کي درېږي او هیڅ بې زړه توب نه ښیي. قلاگانو ته پورته کیږي؛ زمونږ څخه یې نیسي او موږ یې بیرته نه سو ورڅخه اخیستلای. هغه افغانان چې په پایتخت کي ژوند کوي هغوی لا یو څه ښاري سوي دي او ښه جنگیالي نه دي خو هغه افغانان چې په اطرافو کي ژوند کوي هغوی بل ډول خلک دي او زه فکر کوم چې لوی سکندر به له دغو خلکو سره مخامخ سوی وو." لېډي سېل ص ص ۷۷-۷۸

په دې منځ کي شاه شجاع عجیب موقف درلودی. انگرېزانو پر هغه باندي له غازیانو سره د همکارۍ کولو او حتی د ښورښ د پارولو تور لگاوه او مجاهدینو هغه د انگرېزانو نوکر او گوډاگی باله. د شاه شجاع درباري مؤرخ وایي چې د پاځون په لومړیو شپو کي د غازیانو مشرانو او ډېرو زیاتو خلکو قرآن شریف مهر کړ او شاه شجاع ته یې واستاوه او له هغه څخه یې وغوښتل چې له

دوی سره ملا وتړي او انګرېزان له ملکه وباسي او موږ ټول ستا رعیت یو او تا د خپل پاچا په حیث منو. شاه شجاع ورته وویل چې ما دېرش کاله د انګرېزانو نمک خوړلی دی زه له هغوی سره څرنګه بې وفایي وکړم بلکې زما او د هغوی عزت سره تړلی دی. غازیان هم نا امیده سول. هراتي ص ۱۳۵

نواب زمان خان چې تر پایه پوري یې د انګرېزانو سره خپله دوستي وساتله په دغه وخت کې د مجاهدینو خوا ته واوښت او د خپل قومي نفوذ او شخصي هوښیارۍ له برکته د غازیانو د مشر په حیث انتخاب سو. امین الله خان لوګري د هغه د نایب په صفت او غازي عبدالله خان اڅګزی د غازیانو د اعلی قوماندان په حیث وټاکل سو. نواب محمدزمان خان ته د امیرالموءمنین او امام المجاهدین لقب غوره سو. ملایانو سمدستي په ښار کې اعلانونه وکړل او د نوي امیرالمؤمینین تر رهبرۍ لاندې یې جهاد اعلان کړ. ډال ریمپل ص ۲۷۸

مکناټن له کندهار او جلال آباد څخه د مرستو غوښتنه وکړه. جنرال ناټ له کندهار څخه کابل ته د ژمي په موسم کې حرکت غیر عملي او بې ګټې باله خو هدایت یې عملي کړ. مګر جنرال سېل دا وخت په ګندمک کې وو او لا جلال آباد ته نه وو رسېدلی او ګریفیت یې له یوه کنډک عسکرو او دریو غرنیو توپونو سره کابل ته واستاوه. ګریفیت په لاره کې د غلجیو له سخت مقاومت سره مخامخ سو خو ځان یې په ډېر زحمت کابل ته ورساوه او په ځان پسې یې لا غلجي هم کابل ته راوستل او هغوی هم له غازیانو سره یو ځای سول. ډیورنډ ص ۳۵۹

## د چاریکار قوه

ایلډرډ پوټینجر په هرات کې له یارمحمدخان سره ډېر پاته نه سو. او کله چې له هرات څخه کندهار ته ورسېدی نو له هغه ځایه کابل ته ولېږل سو. مکناټن هغه ته په چاریکار کې وظیفه ورکړه. پوټینجر د یوه ځوان او هوښیار صاحب منصب په حیث د چاریکار د مرکز د تقویه کولو او په یوه ټاکلي ځای کې د ټولو انګرېزي قواوو د را غونډولو غوښتنه وکړه. هغه له کابل څخه له روانېدلو مخکې د شېرپور استحکامات کمزوري بللي او په هغه ځای کې یې د انګرېزانو د پوځي مرکز موقعیت خطرناک بللی وو، خو چا یې پر خبره غوږ نه وو نیولی. پوټینجر د چاریکار په پوځي مرکز پوري مربوط لغماني په علاقه کې چې د چاریکار څخه یې دوه میله فاصله درلوده، د یوه واړه پوځي مرکز قوماندان وو. هغه خپل مرکز ته له رسېدلو څخه ځو ورځې وروسته مرکز ته ولیکل چې د

شمالي ټول اولس د انګرېزانو سره مخالف دی خو مشرانو په تېره بیا مکناټن، د هغه خبري ونه منلې او خپلو خیالي نقشو ته یې دوام ورکړ.

د (۱۸۴۱م.) کال د اکتوبر د میاشتي په وروستیو شپو ورځو کي چي په کابل کي لا کراري وه په شمالي سیمو کي شورښونو زور واخیست. کوهستانیان او نجراویان د میرمسجدي خان تر مشري لاندي پاڅېدلي او ټوله سیمه یې ناکراره کړې وه. د میرمسجدي خان لومړنی کار دا وو چي په آق سرای نومي ځای کي یې پوځي مرکز جوړ کړ او د کابل او چاریکار تر منځ ارتباط یې په بشپړه توګه قطع کړ. پوټینجر د چاریکار له قوماندان کورډینګټن څخه چي د نومبر په لومړۍ نېټه یې په لغماني کي د پوټینجر خطرناکه وضع لیدلې وه، د ګورکه قوي غوښتنه وکړه. مګر له هغوی سره ماشومان او مېرمني وې او ځانونه یې چاریکار ته نه سوای رسولای. پوټینجر چي د کابل له وضعیت څخه خبر نه وو له مکناټن څخه د قوې غوښتنه وکړه. طبیعي خبره ده چي هغه هیڅ نه سوای کولای. په خپله مکناټن دا وخت مرستي ته ضرورت درلود.

پوټینجر چي په هرات کي د اوسېدلو په وخت کي یې له مشرانو سره اړیکي درلودلې او د افغانانو سره یې ځان بلد کړی وو په شمالي کي هم له قومي مشرانو سره اړیکي ټینګ کړل. خو ده ته معلومه نه وه چي په هرات کي افغانان د ایرانیانو سره جنګېدل او دی د هغوی د یوه دوست په حیث ورغلی وو؛ خو په شمالي کي اولسونه له انګرېزانو سره جنګېدل او دی د هغوی د ښمن استازی وو. پوټینجر د شمالي سیمو له مشرانو څخه چي ده ورسره پېژندل د مرستي غوښتنه وکړه. له هغوی څخه یې د خپل پوځي مرکز د تقویه کولو او د میرمسجدي خان پر ضد له ده سره د لاس یو کولو غوښتنه وکړه. مشرانو دواړي خبري ورسره ومنلې. هغوی کرار کرار زیاتېدل او پوټینجر پوه سو چي هغه کسان چي ده د دوستانو حساب وربانديي کړی وو لکه چي د ده د تباهی له پاره را غونډېږي. کله چي ده له هغوی څخه وغوښتل چي د هغو خانانو پر قلاوو باندي حملې وکړي چي له میرمسجدي خان سره یې اتحاد کړی دی نو څرګنده سوه چي هغوی ټولو دی غولولی او په حقیقت کي ټول د انګرېزانو دښمنان دي.

د نومبر پر شپاړسمه سهار وختي مېجر پوټینجر او کپتان هاټن په وینو لژند او ټپي او زخمی په کابل کي د انګرېزانو قشلې ته ورسېدل. مېجر پوټینجر ایله تر قشلې پوري ځان ورساه او د کپتان هاټن ښی لاس د چاریکار په جنګ کي پرې سوی او نور هم ټپي ټپي وو. د قشلې عسکرو دواړه داسي په غېږ کي ونیول لکه له ګوره چي را پورته سوي وي ځکه چي قشلې ته د دوی دواړو د وژل

کېدلو رپوټونه رسېدلي وه. ايري ص ۱۰۲

په کابل کي د نومبر پر دريیمه د پاڅون له پيل سره سم په شمالي سيمو او کوهستان کي هم عمومي پاڅون زور اخيستی وو او په لسو ورځو کي يې په لغماني او چاريکار کي د انګرېزانو مرکزونه په بشپړه توګه تباه کړي او پکښي پراته ټول عسکر يې وژلي او مهمات او وسلې يې د غازيانو لاس ته ورغلي وې. له دې دواړو پوځي مرکزونو څخه چي (۷۵۰م.) تنه انګرېزي، هندي او ګورکه عسکر او صاحب منصبان پکښي پراته ول، يوازي پوټينجر او هاټن د نومبر پر پنځلسمه، کابل ته ژوندي ورسېدل.

پوټينجر ښايي تر يوه وخته پوري، د مرستي د رسېدلو په هيله مقاومت ته دوام ورکړی وای. مګر د هغه تر ټولو لوی مشکل دا وو چي په قشله کي د اوبو ذخيره موجوده نه وه او قلا له هري خوا داسي محاصره وه چي له دروازې څخه سر دباندي ايستل د مرګ په بيه تمامېدل. که په قلا کي يوازي عسکر وای بيا هم يوه خبره وه خو له عسکرو سره ډېري زياتي ښځي او ماشومان ول چي هر ګړی يې له تندي څخه نارې وهلې او د پوټينجر وارخطايي او ستونزه يې څو چنده زياتوله. پوټينجر وايي د نومبر پر اتمه محاصره کوونکو افغانانو له ده څخه وغوښتل چي که ټول مسلمانان سي نو څوک به غرض ورسره ونه کړي او ټول به خوشي کړي. پوټينجر وايي ما ورته وويل چي موږ خو ستاسي د مسلمان پاچا د ساتلو له پاره راغلي يو او له دې تکليف څخه معاف يو. دوی په جواب کي راته وويل چي په خپله شاه شجاع دغه امر ورته کړی دی. او له دې خبري سره مذاکرات هم ختم سول. کې ص ۷۰

پوټينجر بايد يا په قلا کي وژل سوی، يا دښمن ته تسليم سوی او يا کابل ته په تاخته تللی وای. هغه دريیمه لاره غوره وبلله او له خپلو ورسره عسکرو سره له دروازې راووت او د کابل لاره يې په خوله ورکړه. دی وايي ما خپل ټول کوښښ وکړ چي د چاريکار له قشلې څخه د وتلو په وخت کي د عسکرو نظم وساتم مګر ټولو عسکرو يوې او بلي خوا ته ځغستل او ويشتل کېدل. په قشله کي دري سوه ټپيان او د هغوی ښځي او ماشومان ژوندي ونيول سول او تاجيک مشرانو سمدستي په خپلو منځونو کي سره ووېشل او د غلامانو په توګه يې وپلورل. ډال ريمپل ص ۲۹۴

په کندهار، کابل، غزني، جلال آباد او هر ځای کي چي د انګرېزانو قوه يا مرکز موجود وو د غازيانو حملې رواني وې. مکناټن چي تر پرون پوري يې په افغانستان کي د ناکراريو په باب د

پوټینجر او میجر راولنسن په شمول د خپلو ټولو ملګرو صاحب منصبانو رپوټونه ردول، ورځ تر بلې وارخطا کېدی او یو ځل بیا یې د پیسو شیندلو او رشوتونو او وعدو ورکولو ته مخه کړه. موهن لال ته یې ولیکل چي خان شیرین خان ته یو لک روپۍ، محمدحمزه خان ته پنځوس زره روپۍ، د خدمت په بدل کي، ومني. ده ولیکل چي محمدیارخان ته ووایه چي که له انګرېزانو سره ملګری سې نو تاته به د امین الله خان پر ځای خاني درکړو. ده بالاخره ولیکل چي زما په نامه تر پنځو لکو روپیو پوري هغو کسانو ته چي زموږ خوا ته یو څه میلان لري ورکولای سې. موهن لال ص ص ۴۱۵-۴۱۴

انګرېز مؤرخ سرجان کې وایي دا زموږ د تاریخ یوه تاریکه پاڼه ده چي لیکو یې. موهن لال ته یوازي د خانانو او مشرانو د اخیستلو وظیفه نه وه ورکړه سوې بلکي هغه ته ویل سوي وه چي له دې پیسو څخه د بې اتفاقیو له ایجادولو او زموږ په ګټه استعمالولو له پاره کار واخلي. ده ته دغه راز وظیفه ورکړه سوې وه چي د مشرانو د وژلو له پاره خلک استخدام کړي او پیسې ورکړي. لیفټینېټ جان کانلي چي په بالاحصار کي له شاه شجاع سره اوسېدی، د نومبر پر پنځمه موهن لال ته ولیکل:

"قزلباشو مشرانو شیرین خان، نایب شریف او نورو شیعه مشرانو ته ووایه چي د یاغیانو پر ضد زموږ سره یو ځای سي. ته خان شیرین خان ته د یاغیانو د وژلو او نیولو له پاره تر یو لک روپیو پوري ورکولای سې. هغه ته ووایه چي ټولو شیعه ګانو ته وسلې ورکړي او پر یاغیانو باندي حملې پیل کړي. اوس د شیعه ګانو د خدمت وخت را رسېدلی دی. ته دوی ته ووایه چي که سنیانو یو ځل په ښار کي قدرت تر لاسه کړ دوی به سمدستي د ښار پر هغه سیمه باندي چي تاسي پکښې اوسېږی حمله وکړي او ټول به لوټ کړي. دوی ته د پیسو او انعامونو وعدې ورکړه او ماته خطونه رالېږه. هغو مشرانو ته چي زموږ طرفدار دي ووایه چي مکناټن ته خپل معتبر مشران واستوي. کوښښ وکړه چي په یاغیانو کي نفاق واچوې. ته چي هر څه کوې زما سره سلا کوه او ماته ژر-ژر خطونه رالېږه. میرحیدر مي خان شیرین ته لېږلی دی او هغه به ستا سره وګوري."

او په دې پسې یې ډېر بدشګونه کلمات لیکلي دي او هغه دا چي وایي د هر مهم مشر پر وژلو باندي لس زره روپۍ درکوم. کې دوهم جلد ص ص ۴۱-۴۲

جان کانلي د نومبر پر یوولسمه موهن لال ته یو ځل بیا ولیکل:

"ولي لیک نه رالېږې؟ میرحیدر څه وکړل؟ له خان شیرین سره یې یو کار پر مخ وړی دی کنه؟ تا ماته نه دي ویلي چي نایب حمزه ته دي څه لیکلي دي کنه. یاغیان اوس څه پېشنهاد لري؟ تا تر

اوسه پوري زموږ د وژل سويو افسرانو د مړو د تر لاسه کولو او ښخولو په باره کي څه کړي دي؟ هر څوک چي زموږ د وژل سويو افسرانو مړي تر قشلې پوري ورسوي هغه ته دوه زره روپۍ او که يې ښخ کړي زر روپۍ ورکړه. د اليکزانډر برنس مړی دي پيدا کړی دی؟ زما سلامونه نايب ته ورسوه. که خان شيرين خدمت کولو ته حاضر نه وي کوښښ وکړه چي بل قزلباش پيدا کړې. زيار وباسه. ما ته هر وخت ليک را استوه ځکه چي د ايلچي خبره چنداني په باور نه وي. د حاجي علي په نوم يو سړی دی چي که رشوت ورکړې هغه به د يوه يا دوو مفسدينو سرونه درته راوړي. ده ته ووايه چي پر هر سر باندي لس حتی پنځلس زره روپۍ ورکوي. ما هغه ته دوه درې ځله پيغام لېږلی دی."

موهن لال حاجي علي او د اغامحمد په نامه يو بل سړی پيدا کړ او د مشرانو د وژلو وظيفه يې ور وسپارله. لومړنی سړی چي د قاتل تر تيغ تېر سو هغه عبدالله خان اڅګزی وو او ورپسې يې ميرمسجدي خان قتل کړ. دوی په دې مشهور ول چي د برنس پر کور باندي د حملې اصلي لمسوونکي ول. او د هغو صاحب منصبانو قاتلان بلل کېدل چي د برنس پر کور باندي د حملې په سهار ووژل سول... هغه کتاب ص ص ۵۶-۵۸

له هغي ورځي چي پاڅون پيل سوی وو، انګرېزانو روغه ورځ ونه ليده او هره ورځ يې تر بلې خرابه وه. په هره حمله کي يې تلفات ورکول. هر پلان يې له ناکامۍ سره مخامخ کېدی. او د دوی له بده بخته چي هيڅ قوي مشر يې نه درلود چي د دې خطرناکي وضع سره يوه ورځ هم مقابله وکړي. مکناټن او الفينستون د دې له پاره چي هر عمل او هر پيشنهاد يې رسمي شکل واخلي، کرۍ ورځ يوه بل ته د لنډو او اوږدو مکتوبونو په ليکلو تېرول.

مکناټن لکه څرنګه چي د افغانستان د وضع د خرابوالي په باب يې ټول رپوټونه بابېزه ګنل ايله متوجه سو چي وضع يې تر کنترول وتلې ده او د هند حکومت ته يې وليکل چي ما په خپلو ليکونو کي پخوا درته ليکلي وه چي په افغانستان کي به يو شورښ کيږي او خلک ناراض دي مګر داسي فکر مي نه وو کړی چي په دې ملک کي به داسي لوي پاڅون پيل کيږي او داسي فاجعه به منځ ته راځي چي زموږ ټول قوت به له کاره غورځوي او ياغيان به پر موږ بريالي کيږي. سټوکويلر ضميمه ص ۸۱

موهن لال وايي ټول هغه مکتوبونه چي زما په لاس کي دي له افغانستان څخه د وتلو او عقب نشينۍ په برخه کي د مکناټن نارضاييتي څرګندوي. هغه د ډسمبر تر دوه ويشتمي پوري کوښښ

وکړ چې یو څه وخت په لاس راوړي او ماته یې هر وخت لیکل چې که خلک په خپلو منځونو کې په جنګ ولوېږي نو دا به زموږ له پاره ډېره ښه وي او موږ به یو څو میاشتې دلته پاته سو او په واوره کې به له سفر کولو څخه بې غمه سو. ده راته ولیکل چې زه به د دغه هدف تر لاسه کولو له پاره هر څومره پیسې چې لازمي وي ولګوم خو په دې برخه کې باید هیڅ وخت ضایع نه سي. موهن لال ص ۴۲۸

مکناټن چې تر وروستیو شپو ورځو پورې یې د افغانستان د وضع د خرابوالي په اړه، د مګریګور، پوټینجر، راولنسن او هر چا خبرې ردولې، ورځ تر بلې وارخطا کېدی. هغه په بشپړه محاصره کې وو او لکه اوبو اخیستی څګ ته یې لاس اچاوه. د نومبر پر اووه لسمه یې چې د کابل د وضع پر خرابوالي برسېره، د چاریکار قوه هم په بشپړه توګه تباه سوې وه او دی پر خپله دې فیصله باندې پښېمانه وو چې له کابل څخه یې د جنرال سېل په څېر زړه ور جنرال او میګریګور په څېر هوښیار سلاکار په لوی لاس له کابله لیرې کړي دي، میګریګور ته ولیکل:

"پر ما ګرانه میګریګور!

ما تاته هره ورځ لیک لېږلی دی او درته لیکلي مې دي چې زموږ وضع ډېره لړزانه ده او ستا څخه مې غوښتي دي چې بیرته د سېل له قوې سره په خپل ټول ممکن سرعت کابل ته راستانه سی. جنرال الفینستیون هم درته لیکلی دي. موږ اوس په خواشینی سره خبر تر لاسه کړ چې تاسی جلال آباد ته رسېدلي یاست. زموږ وضع تر اندازې زیاته خرابه ده او ستاسي مرستي ته بې اندازې زیاته اړتیا لرو که تاسي ژر تر ژره زموږ مرستي ته را نه سی نو موږ هیڅ هم نه سو کولای. موږ د څوارلسو ورځو راهیسي محاصره یو او ستاسي له مرستي پرته هیڅ ډول تعرضي عملیات نه سو کولای. تاسي کولای سی په اسانی سره په اتو میاشتو کي ځانونه کابل ته را ورسوی او څرنګه چې غلجیان په کابل کي دي تاسي به چنداني مشکل هم ونه لری" کې ص ۷۳

ویلیم هې مکناټن

د کابل د پیښو په باب د انګرېزانو رپوټ وایي: چې د نومبر پر اووه لسمه موږ ته رپوټ ورسېدی چې د سېل قوې له ګندمک څخه جلال آباد ته حرکت کړی دی. دې خبر د سېل د قوې له مرستي څخه زموږ امیدونه له خاورو سره خاوري کړل. په دغه ډول وضع کې سېل تر ټولو هوښیاره فیصله کړې وه. که دی چیري بیرته را ګرځېدلی وای نو چې بیرته یې ځان په کابل کي تر قشلې را رسولای نیمایي قوه به یې له لاسه ورکړې وای. دی باید له ګندمک څخه تر کابل پوري په هره دره کي جلا

جلا جنګېدلی وای او په هغه صورت کې به يې موږ ته تر ګټې زيات تاوان را رسولی وای. کله چې ده په جلال آباد کې ځان ټينګ کړ نو له هندوستان سره يې زموږ رابطه ټينګولای سوای او که کابل ته راغلی وای نو دا تماس به بېخي قطع سوی وای. سټوکويلر ضميمه ص ۸۱

يوه شپه وروسته مکناټن ته د ميګريګور ليک ورسېدی او په هغه کي يې ليکلي وه چي د سېل قوې ته هيڅ ډول تمه ونه کړي. له مکناټن څخه بله چاره ورکه سوه او هغې درې اړخيزي موافقې ته يې پام سو چي څو کاله مخکي يې پر افغانستان باندي د يرغل کولو په اړه له رنجيت سينګه سره لاسليک کړې وه. ځکه يې نو له ميګريګور څخه وغوښتل چي له سيکهانو څخه د مرستي اخيستلو د امکان په باب فکر وکړي. دا چي مکناټن له سيکهانو څخه د مرستي غوښتنه کوي نو سړی پوهېږي چي له ډېري نا اميدی څخه يې بايد عقل له لاسه ورکړی وي. دا وخت د رنجيت سينګهـ له وفات څخه څه کم دوه نيم کاله تېر سوي وه. سيکهان هم په خپلو داخلي لانجو او هم له انګرېزانو سره په جنجالونو اخته ول او د رنجيت سينګهـ، مکناټن او شاه شجاع تر منځ تړون يوازي د تاريخ په پاڼو کي موجود وو. ده ميګريګور ته وليکل چي له مکسن سره تماس ونيسي او هغه ته وليکي چي موږ موادو ته ډېره زياته اړتيا لرو. مکسن دي د تړون په اساس له سيکهانو څخه د مرستي غوښتنه وکړي. که دوی له خيبر څخه په تېرېدلو کي ستونزه ويني نو ته ورته ووايه چي د خيبر قبايلو ته يو لک، يا زياتي روپۍ په رشوت کي ورکړي. او که يې چيري زياتي پيسې غوښتلې هم دي ورسره ومني. ځکه چي دا وخت د چنو وهلو نه دی. کې دوهم جلد ص ۷۴

له دې ليک څخه ښکاري چي مکناټن دونه نا اميده وو چي د سم فکر کولو او خبري سنجولو توان يې له لاسه ورکړی وو. که يې داسي فرض کړو چي د سيکهانو مهاراجا شيرسينګهـ له انګرېزانو سره تړون ته غاړه ايښې هم وای او له مکسن سره يې خبري کړي هم وای. نو د يوه زاړه او هېر سوي تړون را ژوندی کولو د انګرېزانو او سيکهانو تر منځ پر هغه باندي خبرو او له سره موافقې کېدلو، د پوځي قواوو او موادو برابرولو، تر کابله په جنګونو او حملو را رسېدلو، لږ تر لږه څلور مياشتي وخت غوښتی. په داسي حال کي چي انګرېزانو په کابل کي د پنځو ورځو له پاره نه د انسانانو او نه د حيوانانو له پاره مواد درلودل.

له دې څخه مخکي، د نومبر په وروستيو شپو ورځو کي جنرال سېل د جلال آباد د قوې د تقويه کولو له پاره د ګورنر جنرال له استازي کلرک څخه غوښتنه کړې وه چي که هغه ته د قواوو او

مهماتو په رسولو کې له سیکهانو څخه مرسته وغواړي او حتی له هغوی څخه وغواړي چې د جلال آباد څخه د دفاع له پاره شپږ زره عسکر ورکړي. خو کلرک د هند د حکومت سکرټر مډوک ته لیکلي وه چې د سیکهانو جنرال اویتابیل ورته لیکلي دي چې هغوی په عاجله توگه دونه قوه جلال آباد ته د لېږلو له پاره نه سي برابرولای. پیپرز ص ۴۸ مکتوب نمبر ۶۰

جنرال سېل ته د ډسمبر پر دېرشمه رپوټ ورسېدی چې مکناټن له اکبرخان سره د یوه کنفرانس په ترڅ کې وژل سوی دی. د جلال آباد په کمپ کې سیاسي استازي میگریگور دا رپوټ نه مانه او ویل یې چې مکناټن داسې کار نه کوي چې له اکبرخان سره د خبرو له پاره له کمپ څخه دباندې ووځي او اکبر خان هم ځکه مکناټن نه سوای وژلای چې د هغه پلار او کورنۍ د انگرېزانو په لاس کې بندیان دي. دوی ته د جنوري پر دوهمه نېټه د پوټینجر یو لیک ورسېدی، چې د کریسمیس په ورځ لیکل سوی وو، او ټولې بدې پیښې یې تاییدولې:

"زما گرانه میریگور موږ د غلطیو یوه غمجنه کمیډي، یا بهتره ده ووایم تراژیدي درلوده. مکناټن یوه کنفرانس ته بلل سوی او ووژل سو. موږ له افغانستان څخه د وتلو له پاره د هغو موادو په اساس چې ده پیشنهاد کړي وه خبري کړي دي؛ خو لا ټول شیان فیصله سوي نه دي. موږ سبا او یا بله ورځ جلال آباد ته روانېږو. اوسنیو شرایطو ته چې گورو نو موږ باید په لاره کې له مقاومت سره مخامخ سو. او احتمال لري چې د یخني او لوږي له لاسه سخت وکړېږو؛ ځکه چې د خېمو او اضافي شیانو د اخیستلو له پاره د انتقال وسایل نه لرو. مسوولیت ماته سپارل سوی دی. میکنزي، لارنس او کانلي ټول نیول سوي دي. د لومړیو دوو تنو په برخه کې اندېښنه راسره ده او دربیم صحي سلامت دی. پر گارنیزون باندې حمله روانه ده. ستاسې مخلص پوټینجر." کې ص ص ۲۰۹-۲۱۰

د جنوري پر اتمه د جلال اباد کمپ ته د پوټینجر یو بل لیک ورسېدی چې د ډسمبر پر اته ویشتمه په فرانسوي ژبه لیکل سوی او په هغه کې یې لیکلي وه چې موږ بنایي له کابل څخه تر جلال آباد پورې په جنگونو ورسېږو. تاسې تر هغه وخته پورې چې دوهم هدایت در کول کېږي ځای پر ځای پاته سئ. دا هدایتونه یوه ورځ وروسته ورته را ورسېدل. د جلال آباد د کمپ دېوالونو ته څو تنه سپاره ورسېدل او د کپتان میگریگور په نامه یې له کابل څخه هدایتونه ورته راوړي وه:

"جناب دا لازمه سوه چې موږ له افغانستان څخه د وتلو په باب د فقید مکناټن له منل سویو شرایطو سره سم عمل وکړو. موږ په ټول احترام هیله کوو چې تاسې له هغه مقام سره چې اوس یې د جلال آباد واک په لاس کې دی دا خبره سپینه کړی چې تاسې له جلال آباد څخه وځی او هند ته

حرکت کوی. کله چي تاسي ته دا ليک ورسېږي نو تاسي به سمدستي حرکت پيل کړی او ټول توپونه به چي د دوست محمدخان ملکيت ګڼل کيږي د هغه ښار نوي ګورنر ته وسپاري. دغه راز به ټول نور شيان هم هغه ته ور تسليم کړی او خوراکي مواد به په کمپ کي پرېږدی چي جلال آباد ته زموږ د رسېدلو په وخت کي زموږ په کار ېږي.

د دغه ليک در وړونکی عبدالغفور خان به ټوله لازمه مرسته درسره وکړي. دی د موجوده حکومت له خوا د جلال آباد ګورنر ټاکل سوی دی.

ايلډرډ پوټينجر، د کابل د قوې مسوول.

تورن جنرال ډبليو. کې. الفينسټون. "هغه کتاب ص ۲۱۲

ميګريګور دا ليک د جنرال سېل مخي ته کښېښود او د جنګ شورا يې را وبلله. ټولو فيصله وکړه چي دا يو دام دی او له جلال آباد څخه د دوی حرکت د تباهی معنا لري. ميګريګور خبر وو چي اکبر خان د شاوخوا خانانو ته احوال لېږلی او له هغوی څخه يې غوښتي دي چي انګرېزان په لاره کي قتل کړي. دوی لږ ګړی وروسته په جواب کي وليکل:

"جنابانو! موږ ته ستاسي د هغه ليک د را رسېدلو افتخار په نصيب سوی دی چي د ډسمبر پر نهه ويشتمه مو رالېږلی وو. تاسي ليکلي وه چي دا ليک به د اوسني حکومت له خوا د ټاکل سوي ګورنر عبدالغفور خان په لاس در ورسېږي. ستاسي هغه ليک موږ ته څو تنو سپرو را ورساوه. که څه هم چي دا ليک مو د ډسمبر پر نهه ويشتمه ليکلی وو خو موږ ته لږ ګړی مخکي را ورسول سو. زه په عين وخت کي ډېر کره اطلاعات لرم چي اکبرخان د جلال آباد په ګاونډ کي ټولو قومي مشرانو ته ليکونه استولي او له هغوی څخه يې غوښتي دي چي په دغه ښار کي اوسېدونکې قوه ټوله تباه کړی. په دې صورت کي نو موږ مجبور يو چي ستاسي بل هدايت ته انتظار وباسو. او موږ هيله لرو چي په هغه هدايت کي به له جلال آباد څخه تر پېښور پوري زموږ د سالم رسېدلو تضمين ورکړه سوی وي.

تورن جنرال رابرټ سېل.

سياسي استازی ميګريګور. "هغه کتاب ص ص ۲۱۲-۲۱۳

میګریګور وایي ده ته خپلو مخبرانو اطلاع ورکړې وه چې اکبرخان د سیمې له قومي مشرانو سره په تماس کې سوی او هغوی ته یې پیغامونه لېږلي دي. دی وایي د ده یوه مخبر برکت خان هم لیک ورته رالېږلی او دا اطلاعات یې تایید کړي وه او په ضمن کې یې لا د اکبر خان له لیکونو څخه یو لیک هم را ګرځولی او ټول مضمون یې خان ته معلوم کړی وو. د جلال آباد ګارنیزون فیصله وکړه چې د دښمن دام ته به په لوی لاس ځانونه نه اچوي. تر وروستي سرې پورې به مقاومت کوي او هغې قوې ته به انتظار باسي چې د دوی د ژغورلو او کابل د بېرته نیولو له پاره را استول کیږي. هغه کتاب ص ۲۱۴

انګرېزان په سخت مشکل کې وه. په هغه وخت کې پنجاب او لاهور د سیکهانو په لاس کې وه او دوی مجبور وه چې په داسې عاجلو حالاتو کې له سیکهانو څخه مرسته وغواړي، ځکه چې انګرېزانو باید له ډېرو لیرې ځایونو څخه عسکر برابر کړې او افغانستان ته لېږلي وای. په پېښور کې د انګرېزانو سیاسي استازي کپتان مکسن د ګورنرجنرال استازي ښاغلي کلرک ته لیکلي دي چې د سیکهانو جنرال اویتابیل وایي موږ په پېښور کې یوازې ۲۲۰۰ عسکر لرو او دا وړه قوه تر جلال آباد پورې ځانونه رسولای نه سي او په لاره کې به په لالپوره کې خلک هغوی محاصره او تباه کړي. هغه کتاب ص ۵۲ مکتوب ۶۷

کابل ته ټولې تللې لارې واورو او یاغي قبایلو بندې کړې وې او له هیڅ لورې مرسته ورته رسېدلای نه سوای. حتی د جلال آباد ګارنیزون ته هم د عاجلو پوځي مرستو رسول ممکن نه وه. د ګورنرجنرال استازي کلرک د هند د حکومت سکرټر مډوک ته ولیکل چې دا ډېر ښه کار وسو چې د کپتان مکسن هغه پېشنهاد عملي نه سو چې د جلال آباد له ګارنیزون سره د مرستې له پاره یې د سیکهانو قوه لېږله. ځکه چې په بهترینو حالاتو او شرایطو کې به د سیکهانو څلور زره کسیزه قوه د پښتنو په منطقه کې یو منزل سفر ونه کړای سي او که دا قوه چیرې په اوسنیو ناکرارو شرایطو کې خیبر ته داخله سوې وای نو اپرېدیو او نورو قبایلو به ټوله تباه کړې وای. هغه مخ مکتوب نمبر ۶۸

## کندهار او شاوخوا سیمې

دا وخت په کندهار او شاوخوا کې وضع دونه کراره وه چې حتی راولنسن چې تل به یې مکناټن ته د ناکراریو په باب لیکونه لېږل هم ورته حیران وو. د انګرېزانو پر ضد د پاځون یو لوی مشر اکرم

خان یې په دهراوت کې نیولی او د شاه شجاع د زوی شهزاده تېمور په حکم یې اعدام کړی وو. د هغه اته تنه تر ټولو بانفوذه ملګري خانان یې د لیفټینینټ کرافورډ په لاس کابل ته روان کړل او کرافورډ ته یې هدایت ورکړی وو چې که دغو بندیانو هر وخت د تېښتې هڅه کوله ټول ووژني.

هزاره او بلوڅ قبایل ټول پخلا سوي او له انګرېزانو سره یې روغه جوړه کړې وه. جنرال ناټ فکر وکړ چې د کندهار قواوې پر دغه ولایت باندې زیاتې دي او باید چې یو څه کمې پکښې راسي. ډګروال مک لارن ته یې له ښو ډېرو عسکرو او وسلو سره هندوستان ته د تللو امر وکړ. د نوامبر پر اوومه هغه له کندهاره حرکت وکړ او په هغه ماښام له کابل څخه ډېر بد خبرونه را ورسېدل. له کندهاره څخه کابل ته، د کپټان ووډبرن سره (۱۳۰) کسیزه قوه کابل ته روانه وه چې د نومبر پر دوهمه له غزني څخه تر تېرېدلو وروسته افغانانو حمله باندې وکړه. ووډبرن په خورا زړه ورتوب وجنګېدی او تر سید آباد پورې یې ځان یوې قلا ته ورساوه. دغه قلا د انګرېزانو د یوه ملګري خان په لاس کې وه. خان د ووډبرن ډېر تود هرکلی وکړ. ووډبرن له قلا څخه ډېره ښه دفاع وکړه خو مرمۍ یې پر تمامېدلو سوې او په دغه وخت کې افغانانو ته له کابل څخه د پاڅون خبر هم را ورسېدی. د قلا خښتن افغانانو ته بلنه ورکړه او هغوی یې لوړو برجونو ته پورته کړل. ووډبرن او د هغه ملګري د قلا په حوېلي کې وه او په لږ وخت کې یې ټول وویشتل. ځینو ځانونه د قلا تر دېوال لاندې وغورځول او د توپک په ډزو به ولګېدل. ووډبرن په یوه واړه برج کې تر هغه وخته پورې وجنګېدی چې نور یې نو هم مرمۍ ختمې سوې او هم یې ټول ملګري وژل سوي ول. افغانانو د ووډبرن په شمول ټول وژل سوي عسکر وسوځل.

د غزني د پېښې په باره کې خبر کندهار ته ورسېدی او د انګرېزانو مشران پوه سول چې له کندهاره تر کابل پورې ټوله لار د غلجیو یاغیانو تر حملو لاندې ده. په دغه وخت کې ضابط کرافورډ هم چې د غزني په شاوخوا کې حمله ورباندې سوې او ټول بندیان یې ورڅخه تللي وه، کندهار ته را ورسېدی. ده ایله ځان ژغورلی وو او ډېر آسونه، سړي او سامانونه یې د یاغیانو لاسونو ته ورغلي ول.

له دې پېښې څخه لږ وروسته د ګدوخان په نوم یو افغان منصبدار چې د شاه شجاع او د هغه د برتانوي ملاتړ کوونکو په خدمت کې وو او د کرافورډ په عسکرو پسې روان وو، او له غزني څخه کندهار ته ستنبدی، په لاره کې د یاغیانو سره مخامخ سو او له خپلو اووه لسو ملګرو سره قتل سو. په

دې حمله کې یاغیانو ته پنځه څلوېښت آسونه او د پوځي رسالې ټولې وسلې او سامانونه لاس ته ورغلل. له دې پېښو څخه څرګنده سوه چې کندهار ته هم د توپان لمن را غځېدونکې ده.

جنرال ناټ چې ډګروال مک لارن یې له کندهار څخه هندوستان ته لېږلی وو، له حرکت څخه یوه ورځ وروسته بیرته کندهار ته ستون کړ او څو ورځې وروسته یې د مکناټن او جنرال الفینسټون له غوښتنې سره سم کابل ته د تللو وظیفه ورکړه. مک لارن یوه لواء عسکر ورسره واخیستل. مک لارن تر قلات تېر سو او بیرته د ډسمبر پر اتمه کندهار ته ستون سو. ده ویل چې په لاره کې واوره پیل سوه او څو حیوانان هم تلف سول او موږ فکر وکړ چې تر کابل پورې به په دغه حال کې رسېدل مشکل وي، نو ځکه بیرته را وګرځېدلو. جنرال ناټ هم چنداني کابل ته د دې قوې په لېږلو راضي نه وو او له حرکت څخه مخکې یې ورته ویلي وه چې کابل ته ددې لواء لېږل زما په خوښه نه دي. زه مجبور یم چې د خپلو آمرانو امر ومنم. مګر زما په عقیده زه تاسي ټول تباهۍ ته لېږم. کې ص ص ۳۹۰-۳۹۵

مکناټن له کندهار څخه د مرستي د رسېدلو په تمه وو او کله چې د مک لارن د بیرته ستنېدلو څخه خبر سو نو له هري خوا نا امیده سو. مکناټن ته له اکبرخان او د مجاهدینو له نورو مشرانو سره له روغي جوړي کولو او د هغوی د ټولو شرایطو د منلو پرته بله هیڅ لاره پاته نه وه.

په دې منځ کې شاه شجاع چې دېرش کاله یې د پردیو پر سترخان باندې د بالاحصار د نیولو خوبونه لیدلي وه، تر هر چا حیران او وارخطا وو. سرجان کې لیکي:

"د دښمن د هري نقشې په باره کې، ولو که هر څونه غیر ممکنه او غیر عملي به هم وه چې به ریوټ ورته ورسېدی دی به یې وارخطا کړی وو. ویل کیږي چې یوه ورځ یاغیانو له شوربازار څخه د ده د قصر تر دېوال لاندې د ماین د چاودنې پلان جوړ کړی وو. شاه شجاع د چاودنې له وېرې خپل قصر پرېښود او د حرم په دروازه کې یې ځای ونیوی. هلته به په یوه لویه کړکۍ کې چې د انګرېزانو قشله ورته ښکارېدله، ناست وو او په دوربین کې به یې د جګړې او حملو ننداره کوله. له سهاره د ماښام تر لمانځه پورې به په دغه کړکۍ کې ناست وو او د داسي منظرې ننداره یې کوله چې ده ته یې هیڅ ډول روحي آرامي نه وربخښله. شاه شجاع هیڅ وخت زړه ور سړی نه وو؛ مګر هر وخت یو مغرور انسان وو. مګر په دې وروستی وضع کې دونه کمزوری او د زړه سوي وړ سړی ورڅخه جوړ سوی وو چې له هر چا څخه یې د مرستي غوښتنه کوله. انګرېزي صاحب منصبانو چې به دی په دې حال کې ولیدی او د ده هغه پخوانی شاهي غرور او دبدبه به یې ور په یاد کړه نو ویل

به يې چي دې سړي بايد ېبخي لوی روحي ټکان خوړلی وي، چي په طبيعت کي يې دونه لوی انقلاب راغلی دی. کله کله به يې انګرېزي خوردضابطان پر خپله چوکۍ ورسره کښېنول او خوړ مجلس به يې ورسره اچولی وو او د هغوی د اړتياوو په باره کي به يې پوښتني ورځخه کولې او د پوره کولو وعده به يې ورسره کوله. يوه صاحب منصب چي د شاه شجاع دغه وضعيت يې له نيژدې ليدلی او څارلی وو، ډېره ښه خبره کړې وه چي ويل يې که شاه شجاع، د ډرامې پر ستېج، د کوم بل پاچا پېښې کوي نو په دې کي شک نه سته چي په خپل رول کي ېبخي بريالی دی." هغه کتاب ص ۳۸۱

## غازي محمد اکبرخان

د غازي عبدالله خان او ميرمسجدي خان له وژل کېدلو سره ښايي مکناټن يو څه بې غمه سوی وي ځکه چي د هغه دا خيال وو چي د پاڅون مشران به يو په يو له منځه يوسي او بالاخره به هر څه د ده له پلان سره سم روان سي. په کابل کي پاڅون په خپل زور روان وو خو بيا يې هم يوه مرکزيت يوه مرکزي او عمومي پلان او يوه داسي مشر ته ضرورت درلود چي که ټولو مشرانو ته د منلو وړ نه وي نو ډېرو مشرانو ته خو د منلو وړ وي. په دغه وخت کي سردارمحمد اکبرخان د خپل پلار په څېر د بخارا د پاچا له بنده وتښتېدی او افغانستان ته داخل سو. ده هم د خپل پلار په څېر د هندوکش په لمنو کي خلک پر ځان را ټول کړل او څرنګه چي په خپل ټول ژوند کي يې په جنګونو کي زړه ورتوب او پوځي مهارت ښودلی وو، نو خلکو په مشرتوب ومانه. په دې شرايطو کي د جهاد او مقاومت صحنې ته د اکبر خان منځ ته راتللو په افغانانو کي ېبخي نوې ساه پوه کړه.

د نومبر د مياشتي په سر کي، چي اکبرخان تازه د افغانستان شمال ته داخل سو نو موهن لال مکناټن ته پېشنهاد وکړ چي په هره وسيله کيږي سردار ته ښې زياتي پيسې ورکړي او هغه د خپل ځان طرفدار کړي. مکناټن د موهن لال په پېشنهاد کي ری ونه واهه. ده بل حساب کړی وو او فکر يې کاوه چي څرنګه چي د اکبرخان پلار او د کورنۍ غړي د انګرېزانو په لاس کي بنديان دي نو دوی به له اکبرخان سره په مذاکراتو کي د يوې وسيلې په توګه کار ورځخه واخلي او د دې پر ځای چي وضع ورته خرابه سي نوره به هم مذاکراتو او روغي جوړې لاره هواره سي. کې ص ۱۰۱

البته وروسته څرګنده سوه چي د مکناټن حسابونه غلط وه او اکبر خان د خپلو نورو افغانانو

ورونو په څېر د وطن پالني له ټول احساس او له انګرېزانو او پردیو لښکرو څخه د ټول نفرت سره د جنګ میدان ته داخل سوی وو او له انګرېزانو سره یې د خپل پلار او د کورنۍ د نورو غړو د نامعلوم سرنوشت په باب ښځي تماس ونه نیوی او انګرېزانو ته یې دا موقع هم ور نه کړه چي له ده سره دا موضوع مطرح کړي.

سردار محمداکبرخان کابل ته له رسېدلو سره سم د جرګو او جنګونو میدان ته داخل سو. که څه هم چي له دې مخکي هم د انګرېزانو وضع چنداني سمه نه وه او ورځ تر بلي ورته خرابېدله خو له دې نېټې څخه وروسته یې په هره وړه او لویه نښته کي هم ماته خوړله او هم یې سخت تلفات ورکول. د قشلې پر شاوخوا باندي ټول حاکم ځایونه یې له لاسه ورکړي وه او بالاخره خبره دې ځای ته ورسېده چي د قشلې څخه هیڅ عسکر او صاحب منصب سر د باندي نه سوای ایستلای. دا وضع د مکناټن له هغه لیک څخه چي د جلال آباد د ګارنیزون د سیاسي آمر مک ګریګور په عنوان یې لیکلی دی ښه معلومېږي:

پر ما ګرانه میک ګریور!

ستا د نومبر د دېرشمي او ډسمبر د لومړۍ نېټې لیکونه را ورسېدل. خوشاله سوم چي په لیکونو کي دي له خپلي خوا ښه خبرونه لیکلي وه. کشکي ما هم له دې خوا دغه ډول خبرونه درلودلای. مګر زه باید په خواشینی سره درته ووایم چي زموږ په خوا کي هر څه وران ویجاړ دي. زموږ پوځیانو د نومبر پر دیرویشتمه د جنګ په میدان کي ماته وخوړه او دښمن زموږ په مخ کي پُل راته وسوځاوه. د قشلې مخامخ قلا چي مخکي مو نیولې وه بیرته د دښمن لاس ته ورغله او زموږ عسکرو هیڅ ډول مقاومت ونه کړ. لنډه به یې درته وکړم چي زموږ پوځیان د څو ذلیلو ښېرندوکو په څېر سلوک کوي او په موږ کي هیڅ ډول روحیه نه ده پاته. پوځي مقامات راڅخه غواړي چي تسلیم سم مګر زه دا کار تر وروستۍ شېبې پوري ځنډوم. ضمناً باید موږ ډېر ژر یوې فیصلې ته ورسېږو ځکه چي موږ د خپلو عسکرو له پاره یوازي د دریو ورځو مواد لرو او د څارویو له پاره هیڅ نه لرو. موږ د کندهار له خوا د مرستي را رسېدلو ته سترګي پر لاره یو. آوازې وایي چي دوی را رسېږي مګر موږ هیڅ شی لیدلي نه دي. دښمنان په یقیني ډول زموږ د ارتباطاتو مخه نیسي. مکسن ته ووایه چي د ډسمبر د شلمي لیک یې را رسېدلی دی مګر زه اوس دومره خواشینی یم چي د څه لیکلو توان نه لرم او که زه څه لیکم هغه به دغه خبري وي چي تاته مي ولیکلې. جان کانلي د اعلیحضرت سره په بالاحصار کي دی. سرکار هم سخت په وېره کي دی. په مخورو کسانو کي

يوازي هغه د پغمان زميندار اوس هم ورته راځي، نور نو هيڅوک نه لري. په ياغيانو کي زما د نفاق اچولو کوښښونو هيڅ نتيجه نه ده ورکړې. زه دې خبري ته ښځي حيران يم چي دوی څرنگه خپل اتفاق ساتلی او يو لاس دي. هر وخت چي دي فرصت پيدا کړ زما دغه ليک به ايرسکين ته هم ورسوې.

ډبليو. ايچ. مکناټن

د انگليسيانو د قشلې وضع داسي حال ته رسېدلې وه چي د حيوانانو له پاره يې د ونو وړې ښاخلې اره کړي او ختمي کړي وې. د عسکري کاروان سره ملگرو کسانو او کاروباريانو د خوړلو له پاره بل څه نه درلوده او هغه اوښان يې خوړل چي له لوږي مړه سوي ول. د قشلې د ټولو عسکرو روحيات هم د غازيانو په مقابل کي د پرله پسې شکستونو او هم د خوراکي موادو د کمبود له لاسه چي يوازي د دريو ورځو ذخيره يې درلوده، په بشپړه توگه مړه وه.

جورج لارنس ليکي "د ډسمبر پر نهمه له بالاحصار څخه کپټان کانلي او زموږ يو باوري سړی جان فشان خان قشلې ته راغلل او وې ويل چي موږ بايد د قشلې ټول مواد وسوځوو او په گډه بالاحصار ته ولاړ سو. مکناټن او د هغه ملگرو افسرانو دا خبره ورسره خوښه کړه خو جنرال الفينسټون او جنرال شيلټن دا حرکت بې گټي او ډېر خطرناک وباله او نظر رد سو. کانلي او جان فشان خان بيرته بالاحصار ته ستانه سول.

په دغه ورځ مو يو بد خبر تر لاسه کړ او هغه دا چي له کندهار څخه يوه قوه چي د جنرال مک لارن تر قوماندې لاندي، زموږ سره د مرستي له پاره راتله، په لاره کي د واوري د اورېدلو له امله بيرته گرځېدلې ده. په داسي حال کي چي په دغه موسم کي واوره په هيڅ توگه د يوې عسکري قوې مخه نه سي بندولای.

د ډسمبر پر لسمه د غازيانو له خوا يو استازی قشلې ته ورغی او مکناټن ته يې وويل چي غازيان ستاسي سره خبرو ته تيار دي. مکناټن له لږ غور څخه وروسته ورسره ومنله. د مکناټن مېرمني خپل مېړه ته وژړل او ورته وې ويل چي دا په افغانانو هيڅ باور نه لري خو مکناټن ته بله هيڅ لاره پاته نه وه. جورج لارنس چي د مکناټن پوځي سلاکار وو ليکي: چي په سبا سهار زه ټريوور او ميکنزي له قشلې څخه دوه سوه ميتره ليري د افغانانو سره د خبرو له پاره ټاکلي ځای ته ورغلو. هلته محمد

اکبرخان او نور مشران غونډه سوي ول. تر معمولي جوړه پخیر ویلو وروسته خبرو ته سره کښېنستلو او مکناټن هغوی ته وویل چي موږ خو د شاه شجاع الملک د ملاتړ له پاره افغانستان ته راغلي وو او اوس چي موږ ته داسي معلومه سوه چي افغانان د هغه په پاچهي خوشاله نه دي نو موږ هم له افغانستان څخه وځو او دا دی ما د خپلو قواوو د وتلو شرایط راسره راوړي دي.

۱: د برېتانیې پوځیان به چي په کابل کي دي په ټوله چټکتیا د پېښور پر لور حرکت کوي او له هغه ځایه به هند ته ځي.

۲: سرداران به قول کوي چي د برېتانیې له پوځیانو سره به څوک غرض نه کوي او په ډېر عزت به سلوک ورسره کیږي او د هغوی غم به خوړل کیږي او د اړتیا وړ مواد به ورکول کیږي.

۳: کله چي د برېتانیې استازي اطمینان پیدا کړ چي دوی په سمه طریقه خپل سفر ته دوام ورکوي نو په جلال آباد کي له پرتو قواوو څخه به وغوښتل سي چي پېښور ته حرکت وکړي.

۴: کله چي په کابل کي د انګرېزي پوځونو د وتلو له پاره شرایط برابر سول نو په غزني کي پراته پوځیان به هم د کابل او پېښور له لاري وځي.

۵: هغه پوځیان چي په کندهار کي پراته دي هغه به د کابل او یا بولان له لاري، د هوا د شرایطو د برابرېدلو سره سم حرکت کوي.

۶: هغه ذخیرې او شتمنۍ چي پخوا یې په امیر دوست محمدخان اړه درلوده هغه به افغانانو ته تسلیمېږي.

۷: ټوله هغه شتمني چي د انګرېزانو په صاحب منصبانو اړه لري باید په احتیاط خوندي سي او په مناسب فرصت کي هند ته ورپسي ولېږله سي.

۸: شاه شجاع الملک ته باید اجازه ورکړه سي چي په افغانستان کي پاتېږي او په یوه مناسب ځای کي ژوند کوي او له کاله به یو لک روپۍ تنخوا ورکوله کیږي او که یې زړه غواړي د برېتانیې له پوځیانو سره هندوستان ته تللای سي.

۹: د شاه د کورنۍ د هغو غړو چي ښایي هندوستان ته سفر ونه کړای سي باید پوره غمخوري وسي. او که چیري شاه له انګرېزانو سره د ملګري کېدلو فیصله وکړه نو دوی ته باید اجازه ورکړه سي چي هند ته تر سفر کولو پوري په بالاحصار کي په خپلو اوسنیو ځایونو کي و اوسېږي.

۱۰: کله چي د برېتانیې پوځیان صحي سالم پېښور ته ورسېږي نو افغانستان ته به د امیر دوست

محمدخان او د هغه د کورنۍ او ټولو هغو کسانو چي په هندوستان کي بندیان دي د سمدستي ستنولو له پاره ترتیب ونیول سي.

۱۱: هر کله چي امیر او د هغه کورنۍ کابل ته د ستنېدلو په لاره کي پېښور ته را ورسېږي د شاه کورنۍ ته باید اجازه ورکړه سي چي هند ته ستانه سي.

۱۲: د دغو پورتنیو شرایطو د عملي کولو له پاره څلور تنه مهم برتانوي منصبداران په کابل کي د یرغمل په توګه پاتېږي او کله چي امیر صحي سالم کابل ته ستون سي نو دوی ته به هندوستان ته د ستنېدلو اجازه ورکوله کېږي.

۱۳: سردار محمداکبر خان سردار محمدعثمان خان او دغه راز نور مشران به د برتانوي پوځیانو سره تر پېښور پوري ملګري کېږي.

۱۴: له افغانستان څخه د انګلیسیانو د پوځونو د وتلو سره سره به د برتانیې او افغانستان د ملتونو تر منځ دوستي موجوده وي او افغانان به د انګلیسیانو له رضاییت څخه پرته له بل هیڅ هیواد سره اتحاد نه کوي. او افغانان د ضرورت په وخت کي د انګلیسیانو څخه مرسته غوښتلای سي.

۱۵: که له دې څخه وروسته د افغان ملت خوښه وه نو په کابل کي به د انګلیسیانو یو استازی ټاکل کېږي چي د دواړو هیوادونو د حکومتونو تر منځ دوستانه اړیکي وساتي مګر دا استازی به په هیڅ توګه د افغانستان په داخلي چارو کي مداخله نه کوي.

۱۶: هیڅا ته باید له دې امله آزار ور نه کړه سي چي په وروستیو جګړو کي یې برخه اخیستې وي او که څوک غواړي چي له برتانوي پوځ سره هند ته ولاړ سي نو باید اجازه ورکړه سي.

۱۷: له هغې نېټې څخه چي دغه موافقتنامه ومنله سي نو پورته یاد سوي سرداران باید دا وظیفه پر غاړه واخلي چي د برتانیې پوځیانو ته مواد برابر کړي او په عوض کي پیسې تر لاسه کړي.

۱۸: له ټولو هغو برتانوي افسرانو سره چي د کوم علت له مخي سمدستي له افغانستان څخه حرکت نه سي کولای باید په احترام سلوک وسي او تر څو پوري چي د سفر کولو له پاره تیارېدلای سي باید په بشپړه توګه یې غمخوري وسي.

محمد اکبرخان دې ټولو خبرو ته په لومړي سر کي په ډېر غرور غوږ نیولی وو او کله چي مکناټن لومړی ماده ولوستله او وې ویل چي زموږ پوځیان به په ډېره چټکي د پېښور پر لور حرکت وکړي ده بېغ پر وکړ چي ولي سبا نه وځي؟ خو د مکناټن آرام او سنګین سلوک دی کرار کړ او د

نورو خبرو په وخت کي يې ښه سلوک غوره کړ. دې خبرو تقريباً دوه ساعته دوام وکړ. لارنس ص ص ۱۰۴-۱۰۷

لارنس وايي محمداکبر خان زه له مکناټن څخه د يرغمل په توګه وغوښتلم خو هغه ورته وويل چي دی زما ښی لاس دی او په عوض کي مو کپتان ټريوور له خپلی خوا ور پرېښود او له دوی څخه مو د محمد اکبر خان يو نيژدې سړی موسی خان را سره واخيست. په دغه وخت کي مو بالاحصار ته مرمۍ او اکمالات ورسول او له هغه ځايه څخه مو قشلې ته خوراکي مواد انتقال کړل. په سبا مو ليفتيننټ لي ګېټ، له پنځوسو سپرو سره، شاه شجاع ته واستاوه او هغه ته مو د وروستي ټرون په باب اطلاع ورکړه.

لارنس وايي د پوپلزيو مشران د ټرون د دې مادې له امله ناراض ول چي د دوست محمدخان او د هغه د کورنۍ قدرت ته رسېدل پکښي راغلی ول. دوی مکناټن ته راغلل او له هغه څخه يې وغوښتل چي شاه شجاع بايد په قدرت کي پاته سي. مکناټن هم ورسره ومنل او شاه شجاع ته يې اطلاع ورکړه. شاه شجاع د دغو مشرانو پر نيت باندي شکمن وو، خو بالاخره يې ډېر زړه نازړه د هغوی پيشنهاد قبول کړ. ګواکي د مشرانو د اختلاف له امله، د دې ټرون څخه هيڅ جوړه نه سوه.

لارنس وايي د ډسمبر پر پنځلسمه زموږ عسکرو له بالاحصار څخه د قشلې خوا ته حرکت وکړ. د موافقې سره سم بايد زموږ د عسکرو ساتنه د امين الله خان لوګري، چي د پاځون تر ټولو مهم مشر وو مګر له شاه شجاع سره په دوستي مشهور وو، سړيو کړې وای او هغوی هم تيار ولاړ ول. په دغه وخت کي سردارمحمدعثمان خان بارکزی راغی او زموږ عسکرو ته يې وويل چي حرکت مه کوی ځکه چي د محمداکبر خان سړي مشکوک حرکات کوي. له دې سره سم د اکبر خان وسله والو د بالاحصار د دروازې خوا ته حرکت وکړ. له بالاحصار څخه ډزي ورباندي وسوې او څو تنه يې ووژل. شاه شجاع د بالاحصار دروازه بنده کړه.

د ډسمبر پر شپاړسمه د انګرېزانو عسکرو له بالاحصار څخه د شېرپور د قشلې خوا ته حرکت وکړ. په لاره کي تر قشلې پوري ډزي ورباندي کېدلې او څو تنه يې قتل کړل. مشرانو، د دې پېښي له امله خواشيني ښکاره کړه او وې ويل چي پر خپلو سړيو باندي کنټرول نه لري. هغه کتاب ص ص ۱۰۹-۱۱۰

مکناټن د غازيانو له مشرانو څخه وغوښتل چي د موافقې سره سم بايد د دوی قشلې ته مواد ورسوي. هغوی په جواب کي ورته وويل چي تر څو پوري انګرېزانو د قشلې پر شاوخوا باندي ټولي

قلاوي او مرکزونه خوشي کړي نه وي نو دوی مواد نه سي ورکولای. مکناټن د قشلې پر شاوخوا باندي د څلورو مرکزونو خوشي کولو ته مجبور سو. مواد بیا هم ورته را ونه رسېدل او په قشله کي دننه عسکر د هر ډول ستونزو سره مخامخ ول.

بالاخره د ډسمبر پر دوه ویشتمه محمدصادق خان چي د سردارمحمد اکبرخان د کاکا زوی وو او سرورخان لوهاني چي یو تاجر وو او انګرېزانو ته به یې غلې دانې او مواد راوړل، له کپتان سکینر سره، چي له غازیانو سره بندي وو قشلې ته ورسېدل او د اکبرخان له خوا یې د یوه نوي تړون متن ورسره راووړ.

په دې تړون کي راغلي وه چي انګرېزان تر پسرلي پوري په کابل کي پاته کېدلای سي. شاه شجاع به د پاچا په حیث منل کیږي او د وزارت مقام به اکبرخان ته ورکول کیږي او د ده په کورنۍ کي به میراثي کیږي. اکبرخان ته به له کاله څلور لکه روپۍ تنخوا ورکوله کیږي او دغه راز به دېرش لکه روپۍ مخکي له مخکي اضافه ورته منلي کیږي. محمدصادق خان وویل چي موږ به انګرېزانو ته په بدل کي د امین الله خان لوګري سر راوړو. مکناټن دا پېشنهاد و نه مانه او ورته وې ویل چي نه دی او د ده حکومت د وینو په بدل کي د پیسو پالیسي لري او نه یې منلای سي. مکناټن وویل چي که امین الله خان انګرېزانو ته بندي په لاس ورکړه سي دا به بهتره وي. محمدصادق او سرورخان مکناټن ته اطمینان ورکړ چي سردار اکبرخان به پر قول ودرېږي او هغه ځکه له انګرېزانو سره همکاري کولو ته مجبور دی چي پلار او د خپلي کورنۍ ډېر غړي یې د انګرېزانو په لاس کي دي.

باقي پاته موافقتنامه مکناټن په خپل قلم په فارسي ژبه ورسره ومنله او لاسلیک یې کړه. هیات رخصت سو او کپتان سکینر هم ورسره ولاړ. د ډسمبر پر دیرویشتمه چي له غازیانو سره د کتلو او وروستۍ فیصلې ورځ وه، مکناټن هم ناکراره او هم خوشاله وو. پر سبا ناري باندي یې کپتان لارنس کپتان میکینزي او کپتان ټریوور ته د تېري شپې د موافقې په باب بیان وکړ او کپتان میکینزي ورته وویل چي دا دسیسه ده. مکناټن ورته وویل چي دسیسه یې بولی ما یوازي ور پرېږدی. زه یې تر عهده وتلای سم.

کله چي مکناټن جنرال الفینسټون ته اطلاع ورکړه چي نن به له مشرانو سره خبري وکړي هغه هم ورته وویل چي چنداني یې زړه ته نه لوېږي چي ښه نتیجه به تر لاسه کړي او فکر کوي چي غدر به ورسره وسي. جنرال شیلټن لیکي چي ماته وویل سوه چي د امین الله خان لوګري د نیولو له پاره

تياری وکړي او دوې ټولی عسکر راسره واخلم. په دغه وخت کي د مکناټن پيغام را ورسېدی چي له سردارمحمداکبرخان سره د خبرو له پاره ورسره ملګری سم. زه په دغه وخت کي له نېکه مرغه مصروف سوم کنه زه به هم د مکناټن په سرنوشت اخته سوی وای.

مکناټن د ګارنيزون له پوځي مقاماتوڅخه وغوښتل چي دوې ټولی عسکر تيار سی کړي. که چيري اکبرخان په خپل قول کي صادق وو نو له دې عسکرو څخه به د امين الله خان د نيولو له پاره کار واخيستل سي او که چيري اکبرخان د ده د نيولو يا وژلو هڅه وکړه نو دا عسکر به له ده سره د مرستي او ژغورلو له پاره تيار وي.

د سلطان جان او محمدصادق خان سکرټر ميرزا خدايداد، چي د محمدشاه خان او سردار اکبرخان په پټه غونډه کي حاضر وو د ډسمبر پر ديرويشتمه سهار موهن لال ته اطلاع ورکړه. موهن لال سمدستي مکناټن ته د خپل سړي قربان علي په لاس پيغام واستاوه او هغه په داسي وخت کي ور ورسېدی چي مکناټن له خپلوملګرو سره د مجلس خوا ته روان وو. کله چي مکناټن پيغام ولوووست نو رنګ يې بدل سو؛ خو په دې وخت کي يې غونډی ته له تللو پرته بله هيڅ چاره نه درلوده. ګواکي ډېر ناوخته وو. موهن لال ص ص ۴۲۱-۲۲

د غرمې پر مهال مکناټن، لارنس، ميکينزي او ټريوور له څو تنو سپرو سره په خپل بدشګونه سفر روان سول. مکناټن په خپله هم منله چي دا يو خطرناک اقدام دی مګر ويل يې چي ښه نتيجه ورکړي نو بيا د خطر په منلو ارزي. ده خپلو ملګرو ته وويل چي تر دغه اوسني ژوند خو مي زر ځله مرګ بهتر دی. کې ص ۱۵۳

لارنس وايي ما له ليري وليدل چي د کنفرانس له ميدان سره خلک له توپکو او تورو سره تيار ولاړ دي. ما وليدل چي زموږ محافظين درک نه لري. يوه صاحب منصب ته مي وويل چي ژر د مکناټن د ساتلو له پاره قوه دباندي را وباسی. مکناټن هم وويل عجيبه خبره ده چي په دغه راز حساس وخت کي جنرال الفينسټون او جنرال شيلټن دواړه بې کاره ناست دي او زموږ په غم کي نه دي. ماته مکناټن وويل چي سمدستي کپټان ګيبټ او شيلټن ته خبر ورکړي چي هم زموږ ساتنه وکړي او هم په خبرو کي برخه راسره واخلي. لارنس وايي مکناټن ماته وويل چي د کنفرانس له پای ته رسېدلو سره بايد بالاحصار ته ولاړ سم او شاه شجاع ته خبر ورکړم او هيله يې څرګنده کړه چي کنفرانس به سم مخ ته ولاړ سي ځکه چي ده محمداکبر خان خپل طرف ته را اړولی دی.

لارنس وايي په مجلس کي محمداکبرخان، سلطان جان او محمدشاه خان غلجی او نور غلجي

مشران حاضر ول. ما مکناټن ته وويل چي له اکبرخان څخه هيله وکړي چي وسله وال سړي ليري کړي، ځکه چي دا خصوصي مجلس دی. اکبرخان وويل چي موږ ټول په يوه کښتي کي ناست يو دلته خصوصي خبري نه سته؛ ته مه وارخطا کېږه. دی وايي خبري ايله پيل سوي وې چي يوه سړي زما له کمربند څخه توپنچه کش کړه او هغه بل مي توره راڅخه واخيستله. محمدشاه خان غلجي له مځکي څخه پورته کړم او ويل يې که ژوند درباندي گران دی نو زما سره راځه. چي شاته مي وکتل مکناټن مي وليدی چي سر يې کښته دی او زوروونه وهي او اکبرخان ټينگ نيولی دی. ټريوور او ميکينزي هم په دغه حال کي ول. زه پوه سوم چي مقاومت بې فايدې دی نو مي محمدشاه خان ته وويل پر هره خوا چي ځې درځه. په همدغه وخت کي مي په وسلو سمبال افغانان وليدل چي ناري يې وهلې پرېږده چي موږ يې قرباني کړو. د محمدشاه خان ملگرو زه په ډېر زحمت وساتلم. زه د محمدشاه خان سره پر آس سپور سوم او هغه مي ټينگ نيولی وو. افغانانو تر ډېره وخته را پسي ځغستل او که يې ډز راباندي کړی وای کار مي تمام وو. عجيبه خوا دا ده چي دا ټول د محمدشاه خان ملگري ول او د توپک ډز يې ځکه نه کاوه چي ويل يې هسي نه خپل مشر وولي. دوی زه د توپک په قنداغونو وهلم او پر محمدشاه خان يې ناري وهلې چي وغورځوه کافر! ولي دا لعنتي ژغورې! پرېږده چي موږ د دې کافرويني تويي کړو!

په دغه حال کي د محمدشاه خان قلا ته ورسېدلو. د خان محافظين د قلا د دروازې په مخ کي ولاړ ول؛ موږ ته يې لاره راکړه او د نورو پر مخ يې دروازه وتړله. زما خپل خدای وژغورلم خو زما ملگری ټريوور زما په څېر خوشبخته نه وو. هغه زما په څېر، د يوه بل مشر تر شا پر آس باندي سپور سوی وو مگر آس ښويېدلی وو او افغانان باندي را رسېدلي او ټوټې ټوټې کړی يې وو. زه يې يوې تيارې کوټې ته، چي يوازي د يوې وړې کړکۍ څخه رڼا ورته راتله، بوتلم. ټول بدن مي شين وو مگر نور نو ټپي سوی نه وم. يو گړی وروسته دروازه خلاصه سوه او يوه سړي د خان په غوږ کي څه وويل. خان سمدستي ووت او بيرته راغی او ميکنزي يې ورسره راووست. زه د هغه وخت د خوشالۍ بيان نه سم کولای چي خپل يو ملگری مي ژوندی وليدی او نور نو د مکناټن او ټريوور غم را سره پيدا سو. هغه آس چي ميکنزيورباندي سپور وو، د دروازې په خوله کي غوزار سوی وو. افغانان پسي را رسېدلي ول خو هغه مشر چي دی يې ورسره را اخيستی وو، پر ميکنزي باندي ځان اچولی او ټول هغه وارونه چي پر ميکنزي به کېدل پر هغه مشر باندي سوي وه. موږ دواړه په هغه تياره خونه کي کښېنستلو؛ مگر دباندي خلک ډېر ژر خبر سول چي موږ دلته پټ يو او د کړکۍ

شخه دباندي يې ښکنځل راته کول. یو سړي له کړکۍ څخه یو پرې سوی لاس را ښکاره کړ چي زما په اټکل به د کوم اروپايي لاس وو، او راته وې ویل چي ستاسي به هم دغه حال وي. یو ګړی وروسته څو نور مشران راغلل او موږ ته يې اطمینان راکړ چي هیڅوک به غرض راسره ونه کړي. ما له هغوی څخه د مکناټن او ټریوور په باره کي پوښتنه وکړه دوی راته وویل چي هغوی دواړه ژوندي دي. لارنس ص ص ۱۱۹-۱۲۱

لارنس وايي موږ يې په نیمه شپه کي د اکبرخان کور ته روان کړو. اکبرخان د دې پېښي له امله سخت خواشيني وو. کپتان سکینر مو هم د هغه په کور کي ولیدی او هغه راته وویل چي مکناټن او ټریوور دواړه وژل سوي دي.

سرجان کې د لارډ آکلینډ څخه د وروسته مقرر سوي ګورنرجنرال لارډ ایلینبرا د دې فیصلې هرکلی کړی دی چي په پوځ کي يې د تل له پاره د سياسي استازیتوب مقام ختم کړ. دی په افغانستان کي د انګرېزي پوځ د ناکامه کېدلو ډېر لوی علت د مکناټن د سياسي دفتر تر حد زیات قدرت بولي چي له ټولو يې د کار او اقدام کولو صلاحیتونه سلب کړي وه او په خپله یو بې کاره سړی وو چي د هیڅ کار له پاره جوړ نه وو. "دی ډېر خودبین، مغرور، ناپوه او ډېر بې احساسه شخصیت وو. بس یو څو توري فارسي يې زده کړې وه او په دغه وسیله يې له لوړو مقاماتو سره تماسونه ټینګ کړل او ځان ته يې په سياسي دفتر کي ځای پیدا کړ. کومي وظیفې چي ده ته وسپارلي سوې د یوې ورځې يې هم نه درلوده او په ده چي کوم اعتماد وسو له هغه اعتماد څخه يې په پراخه پیمانه بده استفاده وکړه. په هغه اندازه چي د ده ادعاوي مسخره او مضحکي وې په هغه اندازه يې اشتباهاتو تاوانونه ورسول. ده فکر کاوه چي ډیپلوماسي بړبتونه پرېښودل او چارزانو کښېناستل دي. تمامه ورځ يې د دربار خبري کولې؛ څو تنه سپاره به ورپسې ول؛ هر وخت به يې د پاچا یوه مخالف قومي مشر ته وعدې ورکولې او یوه به يې هم نه پوره کول. مګر دا لا هم د ده د ژوند یو څه سمي برخي دي او هغه بل اړخ يې تر دې هم تاریک دی. دی به کله کله داسي وو لکه وحشي پړانګ او په دې پسي به ګرځېدی چي څوک وداړي. افغاني مېرمني به يې سرتوري کړې او اشراف به يې تر ډېرو راکښول. مشران به يې کنفرانس ته را وبلل او سبا به يې ټولي هغه وعدې چي پرون يې کړي وې ماتي کړې. سرداران يې په توپونو کي الوزول او پر ډله ایزو قتلونو به يې سترګي پټولې. ورونه به يې د رشوت په زور د ورونو سره مخالف کول او پلرونه به يې زامنو ته لمسول. خروړي سپي به يې ساتلي وه او بېګناه کلیوال به يې په داړل او وېرول. جوماتونو او ملایانو ته به يې

سپکاوی کاوه او قرآن به يې تر پښو لاندي کاوه. خلاصه دا چي هر هغه جنايت يې کاوه چي د ده بېرحمی او شهوت پرستی يې ايجاب کاوه. داسي جنايت او پستي نه وه چي دې سياسي استازو نه کول. داسي تېری او بد عمل نه وو چي دوی په هغه معتاد نه وه او داسي جنايت نه وو چي دوی مخ ورڅخه اړولی وای. د دوی د دې جنايتونو په باب په مطبوعاتو کي ليکني کېدلې خو ايله د افغان او انګليس له لومړي جنګ څخه وروسته توجه ورته وسوه." کې ص ص ۳۴۷-۴۸

کې وايي چي دواړه انګرېزي افسران لارنس او ميکينزي د قومي مشرانو د کوښښونو په نتيجه کي له مرګه وژغورل سول. او د ميکينزي له قوله ليکي چي زه بايد د اکبرخان په برخه کي دونه انصاف وکړم چي کله دی پوه سو چي غازيان ما وژني توره يې را وايستله او زه يې په پوره مړانه وساتلم. يوه بل تن او ميرزا بهاءالدين خان زه دېوال ته پوري وهلم او هغه وارونه چي پر ما باندي کېدل هغوی ته يې خپل ځانونه سپر کړي وه. خو پر محمداکبر خان باندي خپل غرور غلبه وکړه؛ ماته يې مخ را واړاوه او ځو ځله يې راته وويل "شما مُلک ما را ميګيريد" د ميکنزی او لارنس سره د اکبرخان او د نورو مشرانو له سلوک سره سړی داسي اټکل کولای سي چي د مکناټن د وژلو له پاره مخکي پلان نه وو جوړ سوی. البته اکبرخان او امين الله خان د هغه د نيولو پلان جوړ کړی وو. کې ص ص ۱۸۱-۱۸۲

د ډسمبر له څلېرويشتمي څخه د انګرېزي پوځ مشرتوب مېجر پوټينجر ته وسپارل سو. يوه ورځ وروسته د افغانانو له خوا ليکل سوی تړون انګرېزانو ته وړاندي سو چي تړون نه بلکي يو تسليم خط وو او انګرېزانو يې د هيڅ مادې د تعديلولو او ردولو توان نه درلود. په دې تړون کي له انګرېزانو څخه د يرغملو له غوښتلو څخه نيولې د خزانې او وسلو تر تسليمولو پوري ټولې داسي مادې راغلي وې چي د انګرېزانو له پاره يې يوازي د سپکاوی حيثيت درلود. د جنوري پر لومړۍ نېټه يې لا يو بل تړون ورته راووړ چي تر لومړي تړون يې هم شرايط سخت کړي او له انګرېزانو سره يې فقط دا ژمنه کړې وه چي دوه تنه سرداران به د سيکهانو تر قلمرو پوري ورسره ملګري کېږي او انګرېزان به يوه ورځ وروسته له هغه چي د مالونو د وړلو له پاره يې څاروي ورته برابر سي د پېښور پر لور حرکت کوي.

شاه شجاع او قومي مشرانو پر يوه بل هيڅ ډول اعتماد نه درلود او بايد چي نه يې وای درلودلی. قومي مشرانو او اولسونو د انګرېزانو پر ضد پاڅون کړی وو او شاه شجاع د هغوی په لاس کښېنولی

سوی سړی وو. په خپله د خانانو او قومي مشرانو تر منځ هم اتفاق نه وو موجود او دا معلومه نه وه چي د انګرېزانو له وتلو وروسته به مشرتوب او قدرت چاته سپارل کیږي. شیعه مشران د انګرېزانو طرفدار ول. امین الله خان له شاه شجاع سره نیژدې اړیکي درلودل. نواب زمان خان د پاڅون په سر کي د پاچا او امیرالمومنین په حیث ټاکل سوی او لا یې هم مشرتوب خپل حق باله. اکبرخان او محمدشاه خان غلجی سره ملګري ول او هم د شاه شجاع او هم د نواب زمان خان سره مخالف ول. میرحاجي چي روحاني مشر وو او په کوهستانیانو کي یې ډېر زیات نفوذ درلود، د هر هغه چاسره چي قدرت به یې زیات وو ملګری کېدی. په دې توګه له ټولو هوښیارو قومي مشرانو او د ښار له سوداګرو سره دا اندېښنه موجوده وه چي که انګرېزان ووځي قدرت به چاته رسېږي. ایري، د انګرېزي پوځ له وتلو څخه یوه ورځ مخکي د جنوري پر پنځمه لیکي:

"تر دغه ګړي پوري لا چنداني د کار درک معلوم نه دی. مشرانو، د مختلفو دلایلو له مخي، زموږ د وتلو کار له یوې ورځي بلي ته ځنډولی دی. موافقه پر دې سوې وه چي نواب جبارخان به له دوو زرو سړیو سره، چي تنخوا به ورکوله کیږي موږ بدرګه کوي.

داسي ښکاري چي مشرانو تر وروستی شېبې پوري زموږ د وتلو په برخه کي شک درلود. له ډېرو سره دا اندېښنه وه چي که موږ له کابل څخه حرکت وکړ نو داخلي جنګ به پیل سي ځکه یې نو زموږ د وتلو کار ځنډاوه. اکبرخان پرله پسې کوښښونه کول چي هندوستانیان زموږ له پوځ څخه بېل کړي او تېښتي ته یې تشویق کړي. زموږ ډېرو دوستانو راته وویل چي د مشرانو په وعدو مه غولېږئ؛ ځکه چي هغوی ټولو په خپلو کي زموږ د بربادۍ فیصله کړې ده. شاه شجاع څو ځله پیغامونه را ولېږل او سوګندونه یې یاد کړل چي موږ ته تباهي ګوري. کله چي یې ولیدل چي موږ پر خپله فیصله ټینګ ولاړ یو نو د مکناټن مېرمني ته یې زاری وکړې چي له ده سره په بالاحصار کي پاته سي. شاه شجاع جنرال انتي کویل ته چي د ده د قواوو قومانده یې پر غاړه وه زاری وکړې او هغه ته یې وویل چي ده خو فکر کاوه چي دا قوه د ده د ساتلو له پاره ده او دا دی اوس د ضرورت په وخت کي دی یوازي پرېږدي. خو جنرال او د هغه د جنګ شورا فیصله کړې وه چي باید زموږ سره یو ځای ووځي او هغسي یې هم وکړه. ایرې ص ص ۲۰۷-۲۰۸

نواب زمان خان چي انګرېزانو یې په وفاداری باور درلود پوټینجر ته خبرداری ورکړ چي تر څو پوري هغه مشران چي ستاسي سره یې د ملګرتوب ژمنه کړې ده درسره ملګري نه وي باید حرکت ونه کړئ. البته دا وخت کار له کاره تېر وو او پوځ حرکت پیل کړی وو. زمان خان وعده وکړه چي

دی به د پوځ په ساتلو کې برخه واخلي. ده خپله وعده پر ځای کړه خو د ایله جاري خلکو کنټرولول د ده په وس کې نه وو. ایکسپېډیشن ص ۳۷۶

لکه څرنگه چې انتظار یې ایستل کېدی د انگرېزانو پر پوځ باندې حمله له لومړیو شپو څخه پیل سوه. او هره شپه حملې سختېدلې. کابل ته نیژدې د خورکابل په دره کې چې د انگرېزي پوځ لومړی منزل وو، هم د غازیانو د حملو او د سختې یخنۍ له امله دونه درانه تلفات ورسېدل چې په هر حساب مبالغه معلومېږي. یوازې د خوردکابل په دره کې درې زره عسکر او د کمپ خدمه یا د یخنۍ، یا د ډزو او یا د غازیانو د تورو قرباني سول. اکبرخان له لومړۍ ورځې د انگرېزانو پوځ ته وویل چې دی د هغوی د ساتنې له پاره ټول کوښښ کوي مگر له غازیانو څخه یې ساتل په وس پوره نه دي.

موهن لال څو ځله پوټینجر ته خبرداری ورکړ چې د مشرانو په وعدو ونه غولېږي او په وروستي یاداشت کې یې ورته ولیکل چې ملا احمدخان کپتان جانسن ته ویلي دي چې اکبرخان سوگند یاد کړی دی چې د انگرېزانو ښځې به تر هغه وخته پورې ورڅخه وگرځوی چې د ده مېرمنې او کورنۍ کابل ته رسېدلې نه وي. او د انگرېزانو ټول پوځ به تباه کړي او یوازې یو سړی به ژوندی پرېږدي چې جلال آباد ته ورسېږي او خپلو ملگرو ته د ټول پوځ د تباهۍ کیسه وکړي. کې ص ۱۸۷

که اکبرخان ریښتیا هم دا خبره کړې وي نو لکه څرنگه چې ده غوښتل هغسې پېښه هم سوه او د انگرېزانو له ټول پوځ څخه یوازې ډاکټر برایډن زخمي زخمي جلال آباد ته ورسېدی او د جنرال سېل قوې ته یې د کابل د ټول پوځ د تباهۍ کیسه ورسوله. له کابل څخه تر جلال آباد پورې په لاره کې د انگرېزانو د پوځ د تباهۍ کیسې ډېرو هغو لیکوالانو کړي دي چې په دغه مرگاني سفر کې یې په خپله برخه درلودلې او ډېرو مؤرخینو او لیکوالانو د دغو لیکنو په استناد کتابونه او داستانونه لیکلي دي. دا به بهتره وي چې د دې تباهۍ داستان د وزیر اکبرخان له پېښ بیني سره سم په خپله د ډاکټربرایډن له خولې واورو.

**د ویلیم برایډن له خولې هغه نکل چي په (۱۸۴۲) کال کي یې له کابل څخه جلال آباد ته له رسېدلو وروسته له خپلي حافظې له مخي کړی دی:**

په کابل کي د جنوري پر پنځمه پوځ ته اطلاع ورسېده چي تیاری بشپړ سوی دی او د هندوستان پر لور حرکت کوو. هغه ناروغان او ټپیان چي سفر یې نه سوای کولای ډاکټر بیرویک او ډاکټر کمپبل ته پاته سول او قومانده یې د علیاحضرتي د څلورڅلوېښتمي قوې لیفټینینټ ایوانز ته وسپارله سوه. کپټان ډرومنډ، کپټان والش، ضابط جان کانلي، ضابط ویب، ضابط واربرټن او ضابط اېري د یرغمل په توګه محمدزمان خان ته وسپارل سول.

د جنوري شپږمه: د سهار پر نهه بجې له کابل څخه د پوځ وتل پیل سول. د کابل پر سیند باندي یو پُل جوړ سو چي پیاده، توپونه، سپاره، مالونه او نور پر تېر سي. پنځم پیاده پوځ له ټولو څخه مخ کي روان وو او توپونه او غرنی قوه د جنرال اک ویټیل تر قوماندې لاندي وه؛ وروسته اصلي پوځ د جنرال شیلټن تر قوماندې لاندي روان وو او بیا نو مالونه ورپسې وه او بیا نو د شاه شجاع د پوځ شپږمه لواء وه چي زه په هغې کي روان وم. موږ تقریباً د لمرلوېدو په وخت حرکت وکړ. پر آسونو له بار توپونو او غرنیو توپونو څخه پرته نور ټول توپونه په قشله کي پاته سول. او دغه راز ډېر زیات مواد مو هم په قشله کي پرېښودل. کله چي موږ له قشلې څخه حرکت را وکړ ما ولیده چي ضابط هارډي مېن دښمن وویشت او مړ یې کړ. دښمنان قشلې ته ننوتل او له دېوالونو څخه یې پر موږ باندي ډزي پیل کړې او د قشلې ټولو ودانیو ته یې اور واچاوه. هر صاحب منصب فقط دونه بار ورسره واخیست چي ورسره حیوانانو یې د وړلو توان درلود. ما شپږ یابوګان درلودل او یو نصواري رنګه یابو مي د ځان له پاره ساتلی وو. ټولو نوکرانو مي یابوګان درلودل. مګر مخکي له هغه چي له قشلې څخه را ووځو ما ولیدل چي هغه زما ګران آس چي زما کالي وربandي بار وه او زما مهتر را روان کړی وو دښمن ونیوی او زما د کالیو ډېره برخه یې ورڅخه واخیستله. موږ ډېر کرار حرکت کاوه او د شپې تر تیارې پوري مو ایله پنځه میله لاره د لوګر تر سیند پوري ووهله. څرنګه چي واوره اورېدلې نو دغه لنډه فاصله هم د ښځو او ماشومانو له پاره بېخي ډېره وه. کله چي د کمپ ځای ته را ورسېدلو دا نو ډېره خواشینونکې صحنه وه. څو اینچه واوره پر ځمکه پرته وه او یوازي یوه وړه خېمه له چور او تالان څخه پاته وه او هغه جنرال الفینسټون ته ورسېده او ډېر نور په هغه خېمه

ورسره نتوتل. ډېر پوځيان په واوره کې پراته وه او ځيني د اور پر شاوخوا باندې سره ناست ول. ما خپل ځان په پوستين کې تاو کړ او د يابو تناو مې په لاس کې ونيوی او د خپل کنډک د عسکرو په منځ کې ويده سوم.

د جنورې اوومه: کله چې سهار له خوبه را ويش سوم نو ومې ليدل چې پوځيان حرکت ته تياری کوي. ما پر هغو هنديانو باندې چې ماته نيژدې پراته ول ږغ وکړ چې پورته سي اويوازې يو څو تنه را پورته سول. کله چې مې پر نورو باندې هم ږغ وکړ نو ځينو يې په ما پورې وخندل. خپلو پښو ته يې اشاره وکړه او پښې يې لکه سوځلې لرگې داسې توري سوي وې. د دوی پښې يخ ورځخه وړي وې او مجبور ول چې هلته پاته سي. دغه ورځ مو تر بتخاک پورې لاره ووهله. دا هم پنځه ميله فاصله وه او په ټوله لاره کې ډېر زيات خلک ليدل کېدل. په دې مارش کې هم د لومړي مارش په څېر ډېر زيات مالي تاوان ورسېدی او د مارش په پای کې ډېر سخت جنگ هم وسو او ضابط شا ډېر سخت ټپي سو. دښمن غرني توبونه راځخه واخيستل او پر آسونو بار دوه درې توپونه پر ميدان پاته سول. ضابط ميکارټني د خپل آس د ساتلو له پاره ډېر په زړه ورتيا وجنگېدی خو څه يې لاس ته ورنه غلل او په ډېر زحمت يې ځان ايله خپل پوځ ته را ورساوه. چنداني چا د خوړلو له پاره شی نه درلودل يوازې زما سره يو څه بريان غنم يا نيني را سره وي چې کشمش مې ورسره گډ کړي او گوزاره مې په کوله. دلته زموږ تر مخکني کمپ لږه واوره پرته وه. دا شپه هم د تېرې شپې په څېر تېره سوه او زما يابو يو څه واښه پيدا کړل او ځين مې ورباندې سست کړ. تر دغه ځايه پورې مې نه خپل نوکران او نه مې يابوگان ليدلي ول. اکبر خان زموږ سره چل کړی وو او د دې پر ځای چې يو څه مخکې کمپ جوړ کړي او مخکې له هغه چې موږ درې ته داخل سو ده سړي تيار راته کښېنولي ول او د ده ځينو سپرو پر خلکو باندې په فارسي ژبه ږغ کاوه چې په دوی کار مه لرئ مگر په پښتو يې چې ډېر لږ اروپاييان په پوهېدل ورته ويل چې کافران مه پرېږدئ او ټول مړه کړئ.

**د جنورې اتمه**

په دغه ورځ سهار د خوردکابل په دره کې د سختو مالي او ځاني تلفاتو په ورکولو تېر سولو. ټولې لوړې څوکې دښمن نيولې وې او زموږ پر پوځ باندې يې بې دريغه مرمۍ اورولې. ډېر زيات کسان قتل سول او په هغوی کې کيپټان پيټن او ضابط سټرټ شامل ول چې په نس کې ويشتل سوی وو. د لېډي سېل او کپتان ټروپ په شمول ډېر نور کسان ټپيان سول. کله چې موږ په خورد کابل کې د

کمپ سیمي ته را ورسېدلو نو خبر سولو چي د کپتان انډرسن مشره لور ورکه ده. ټول هغه کسان چي له پوځ څخه پاته سوي او لاره یې غلطه کړې وه، دښمنان له لوړو ځوکو څخه ورباندي راکښته سوي ول او ټول یې وژلي وه. دا دره تقریباً درې میله اوږده ده او یوه ویاله پکښي بهېږي. دا ویاله ټوله یخی وه، مگر نه داسي چي سړی دي ورباندي تېر سي او ماته په دې مابین کي یوه بده را پېښه سوه. زه گومان کوم چي د آس ځین مي سم نه وو ټینگ کړی او راسته طرف ته کوږ سوم. ځین مي پر هغه خوا راسره وگرځېدی او په اوبو کي ولوېدلم. دا نو هغه ځای وو چي دښمن سختي ډزي پکښي کولې. زه د یوې لویي گاري لاندي پټ سوم او هلته مي د آس ځین ټینگ کړ او زه او آس دواړه له خطره خلاص سولو.

**د جنوري نهمه**

موږ دغه ورځ په خوردکابل کي تم سولو او چنداني چا آزار رانه کړ. زه ډېر خوشاله وم چي له خپلو پنځو نوکرانو څخه مي درې ژوندي ولیدل. یوه نوکر ته مي یوه بوجی باغلي ورکړې وه او هغه خپل د اوبو مشک له پستې ډک کړی وو. په دغه ځای کي مو آسونو ته جوار ورسېدل او موږ ځانونه په پسته ماړه کړل. په دغه ځای کي اکبرخان پېشنهاد وکړ چي واده سوي افسران، د هغوی کورنۍ او ځیني زخمي افسران دي ده ته د یرغمل په توگه تسلیم سي.

**د جنوري لسمه**

موږ د ورځي پر لس بجې خپل مارش پیل کړ او سمدستي حمله راباندي پیل سوه او مخکي له هغه چي هفت کوتل ته ورسېږو لاره مو د "تاریکي تنگي" په نوم یوه وړه او تنگه دره باندي برابره سوه. د حرکت کولو په وخت کي زموږ د ټولی یوه صاحب منصب یو څو دانې هگۍ او یو بوتل واین راوړل چي د یوې مېرمني څخه د پاته سوي صندوق څخه یې را اخیستي وه. هگۍ یې کپتان هاکینس ته ورکړې او هغه پر موږ ووېشلې. هگۍ ایشېدلي نه وي خو یخی وي او خوړل کېدلای سوای. دا ډېر خطرناک مارش وو. د دښمن له لوري پرله پسې ډزي رواني وې او یو شمېر هغه افسران او عسکر چي د واوري د ځلا له لاسه یې لار ورکه کړې وه او نه پوهېدل چي کومي خوا ته ځي د دښمن په ډزو لگېدلي او ټول وژل سوي وه. ما د یوناني سوداگر ښاغلي بانیس رهنمایي کوله او ما به په خپله هم کله کله د واوري له لاسه مځکه نه لیدله. په سترگو به مي یو څه واوره وموښله او بیا به مي لاره ولیده او له خپلو ټولو ملگرو څخه مي وغوښتل چي پر سترگو باندي واوره وموږي. کله چي پر تیزین باندي ورکښته سولو نو د واوري سپین والی دونه زیات نه وو مگر د دښمن ډزي

زیاتي سوې او ځرنګه چې په دره کې موږ ته ډېر نیژدې راتللای سوای نو ډزي یې ډېرې تباه کوونکي وې او ډېر زیات دښمنان خو ښځي زموږ په کرښو کې داخلېدل او عسکر به یې وژل. پر هندي عسکرو باندي خو یخ دونه بد اثر کړی وو چي د دښمن د ډزو سره یې مقاومت نه سوای کولای نو په پوځ کې یې ټېله ټمبه جوړه کړه او کله چي تیزین ته ورسېدو، نو له هغو هندي عسکرو څخه چي له کابله یې زموږسره حرکت کړی وو یوازي څو تنه پاته وه. په زخمیانو کې مي ډاکټر ډف او ډاکټر کارډیو ولیدل چي د توپ پر عرابه یې را اخیستي وه؛ مګر دوی دواړه ډېر ژر مړه سول. ډاکټر برایس درې ته له داخلېدلو سره سم په سینه کې وویشتل سو او چي مړ کېدی نو خپله وصیت نامه یې کپتان مارشال ته وسپارله. په تیزین کي موږ خبر سوو چي پر هغو افسرانو برسېره چي نومونه یې یاد سول نور کسان هم لکه سوین، میلیس، ډییس، الیکزانډر او وارنی، ایوارټ او ډاکټر ماګرات هم وژل سوي ول. کله چي ښه تیاره سوه نو موږ له لږ استراحت څخه وروسته حرکت وکړ. تسکیرې ته مو اور واچاوه او چي توپونه راسره وه هغه مو پر میدان پرېښودل او ډېر زیات شمېر هغه کسان مو چي زموږ سره یې سفر ته دوام نه سوای ورکولای پر هغه ځای پرېښودل. موږ د تیزین په وادي کي په ډېره خاموشي تېر سولو مګر کله چي غونډیو ته داخل سولو نو بیا ډزي راباندي پیل سوې. دا ډزي له یوه واړه سیند سره چي دښمن سنګر پکښې نیولی وو ډېري زیاتي سولې. په دغه ځای کي له بده مرغه جنرال شیلټن عسکرو ته د متقابلو ډزو امر وکړ او له دغه امله مو ډېر سخت تلفات ورکړل.

**د جنوري یوولسمه**

موږ ټوله شپه سفر وکړ او سپاره عسکر په مخکي روان ول او په هغه سهار یې کټه سنګ ته ورسېدلو. په دغه ځای کي مو د دښمن د ډزو په اثر نور ملګري هم تلف سول. موږ یوازي لږ وخت په هغه وادي کي چي شاوخوا غونډۍ ورباندي را ګرځېدلي وې، تم سولو. دلته کپتان ډډګین یو بیسکیټ له یوه واړه ماهي سره راکړ. دا نو په داسي وخت کي چي تېر سهار مي دوې یخي سوي هګۍ خوړلي او بیا مي هیڅ شی نه وه خوړلي ډېره مزه داره غذا وه. کله چي جګدلک ته ورسېدلو هلته مو د ځینو وحشي بوټو ریښې وخوړلې او ښه یې تازه کړلو. موږ غرمه مهال دغه ځای ته ورسېدلو او کمپ ته نیژدې ضابط فورټي ووژل سو. دلته زموږ له را رسېدلو څخه لږ وروسته جنرال الفینسټون، جنرال شیلټن او کپتان جانسن د اکبرخان خېمې ته ورغلل او هغه ټول د یرغمل په توګه له ځان سره وساتل. موږ په یوه زړه کنډواله کي کمپ جوړ کړی وو او دښمن له غونډیو څخه ډزی

راباندي کولې. کپتان سکینر ووژل سو او ډېر زیات صاحب منصبان زخمیان سول. ما د کپتان گرنټ او کپتان مارشال زخمونه ور وتړل. د کپتان گرنټ زامه گډه وډه سوې وه او کپتان مارشال په سینه کي ویشتل سوی وو. بېچاره مارشال، برډ او ما یوه ورځ مخکي د هغه آس غوښي کباب کړې وې چي ویشتل سوی وو. مارشال له خپله جیبه یوه توټه مالگه را وایستله. دا وروستی توټه مالگه وه او ده پر بد شگون ونیوله. زه گومان کوم چي هغه توټه مالگه په واوره کي ولوېده او ویلي سوه. ده ډېر ژر وروسته وویل چي غواړي دښمن له هغو غونډیو څخه لیري کړي چي پر موږ ډزي کوي او لاره یې بنده کړې ده. لا څو میتره تللی نه وو چي وویشتل سو. موږ د جنوري پر دوولسمه له جگدلک څخه تر تیاره ماښام پوري حرکت ونه کړ. په دغه وخت کي زه فکر کوم د جنرال الفینستون د یوه یاداشت په اثر چي ویل یې یوه لویه حمله راباندي کېږي، موږ ته د حرکت امر وسو. کله چي موږ په دغسي ناڅاپي ډول حرکت وکړ نو دښمن زموږ د پوځ پر شاتنی برخه باندي حملې پیل کړې او ډېر زیات کسان یې قتل کړل. دلته نو ډېره سخته گډوډي منځ ته راغله او ټول عسکري ډیسیپلین او انضباط ختم سو. ما د مارشال غریب آس تر جلو نیولی وو ځکه چي هغه خپل آس نه سوای بېولای. بلېیر، باټ او یو بل زخمي افسر د اوښ په کجاوه کي نقلېدل او زما سره نیژدې روان ول. موږ لا په تیاره کي ډېر مخ ته نه وو تللي چي زه محاصره سولم. په دغه وخت کي زما نوکر راته را وځغستل او ویل یې چي زخمي دی، یابو یې ورڅخه وړی دی او باید چي دی راسره واخلم. ما به لا خبري ورسره کولې چي چا له آسه راکش کړم او پر سر باندي یې په سېلاوه ووهلم او پر مخکه ولوېدلم. زه باید وژل سوی وای خو ځرنگه چي په خولۍ کي مي اوسپنه وه نو سېلاوه پر هغې ولگېده او زما سر لږ غوندي زخمي سو. زه نیژدې بېسده سوی، وم خو سمدستي را پورته سولم او ومي لیدل چي دښمن بل گوزار ته ځان تیاروي. ما د خپلي توري وار پر وکړ او فکر کوم چي څو گوتي مي ورغوڅي کړې او سېلاوه یې له لاسه ولوېده. ده پر یوه خوا وځغستل ما پر بله او خولۍ ، آس او یو بوټ مي را څخه ورک سول. نوکر مي وژل سوی وو او هغه کسان چي دلته راسره وه بیا مي یو هم ونه لیدی. ما بیرته ځان په پوځیانو پسي ورساوه او هغوی په ونو کي سنگر نیولی وو. له مخامخ غونډۍ څخه ډزي راباندي کېدلې او وضع ډېره خطرناکه وه. یوه له غونډۍ څخه را باندي را وځغستل او پر اوږه یې ډېر سخت گوزار راکړ. دلته مي یوه عسکري خولۍ را پورته کړه. ډېر ژر په کپتان هوپکینز پسي ورسېدلم. د ده د آس ځین مي نیولی وو او تر ډېره ځایه پوري په دغه توگه روان وم. په دغه وخت کي یو هندوستانی موچي را باندي پیښ سو او ماته یې

ویل چې زما یابو راځخه واخله ځکه چې زه ټپي یم او مړ کېږم او دا یابو بل څوک اخلي. ما به لا واړه ورکاوه چې هغه له یابو ځخه را ولوېدی او مړ سو. هغه غریب په سینه کي ویشتل سوی وو. زه د ده پر یابو باندي سپور سوم او د عسکرو خوا ته مي هی کړ. هلته مي جنرال انک وي ټیل ولیدی او د شاټنیو کسانو په باره کي یې پوښتنه راځخه وکړه. ما ورته وویل چې وضع ډېره خرابه ده. ده هغې خوا ته خپل آس روان کړ او بیا چا ونه لیدی. خلکو هم د غونډیو خوا ته ځغاستي وهلې او هم به یې د سړک پر غاړه ځغستل. خپلې وسلې او سامانونه یې غورځول او ځانونه یې سپکول او وضع د هر چا تر کنټرول وتلې وه. په دغه وخت کي کپتان بیلیو ټول هغه کسان چې ده پیدا کولای سوای را غونډ او منظم کړل. موږ بیرته ډېر ژر حرکت وکړ. په غونډیو کي اورونه بلېدل او موږ په تیاره کي روان وو. ډزي رواني وې او څرنگه چې ښه تیاره وه نو لږ تلفات یې ورسول. په تیاره کي مي لاره ورکه کړه خو بیرته مي ډېر ژر پیدا کړه او له ملگرو سره یو ځای سوم. په دغه شپه موږ ټول له سختي تندي ځخه وکړېدلو او لوڅه پښه مي د یخني او درد له لاسه سوځېدله. له نېکه مرغه مي د یابو تر ورین ځین لاندي یوه کځوړه پیدا کړه او هغه مي پر خپله پښه تاو کړه. سهار گندمک ته ورسېدلو او ټول هغه کسان چې په موږ پسي راتلل راځخه ورک سول. دلته زموږ تر منځ اختلاف راغی. لاري دوې کېدلې. یوه لاره د غونډیو پر لور تللې او بله د نیملې پر لور تللې وه چې په یوه لوی کلي کي تېرېدله. ما د آرامی په وخت کي په دغه سیمه کي درې میاشتي تېري کړي وې او ښه بلد وم. ما ویل چې باید د غونډیو لاره واخلو او ښاغلي بېلیس چې په پوځ کي یو کاتب وو هغه د نیملې پر خوا د تللو طرفدار وو. موږ نیمایي یوې او نیمایي بلې خوا ته روان سولو. هغه کسان چې د کلي پر خوا روان سول د کلیوالو په حملو کي ټول وژل سوي ول او یوازي ښاغلی بېلیس ژوندی پاته سوی وو. ما واورېدل چې هغه لږ وروسته په پېښور کي د تبي په اثر مړ سوی دی. موږ د غونډیو پر خوا روان سولو او هیڅ څوک مو ونه لیدل. دلته مو یو گړی استراحت وکړ او آسونه مو په شنو ځمکو کي خوشي کړل. د یابو تر ځین لاندي مي کځوړي، مرمی، د ځین سامانونه، یوه توپنچه، یو خنځیر او دغه راز شیان پټ ول. څرنگه چې مرمی یوه هم پر توپنچه نه راتله نو له نورو ټولو شیانو سره مي هغه هم وغورځولې. له نیم ساعت استراحت ځخه وروسته مو حرکت وکړ. زموږ سره کپتان بیلیو، کپتان هوپکینز او کپتان کولي یر او ضابط برډ، ضابط ستیر، ضابط گرې، ډاکټر هارپر، سرجنټ فربل او پنځه تنه اروپایي عسکر راسره وه. له لیري مو د فتح آباد کلی ولیدی او له جلال آباد ځخه پنځلس میله لیري وو. دلته کپتان بیلیو وویل چې یو ځل به د هغه کلي خوا ته ولاړ سي او وبه

ګوري چې وضع څرنګه ده. دی ژر بیرته راستون سو او وې ویل چې د کلي له مشر سره مې خبرې وکړې او هغه د ډوډۍ وعده راسره وکړه. تاسې دلته معطل سی زه به ډوډۍ درته راوړم. کپتان بیلیو پنځلس دقیقې وروسته بیرته راغی او ویل لکه چې ټول مې تباه کړاست. څکه چې له هغې غونډۍ څخه چې موږ ورباندې ناست وو له هرې خوا سپاره را باندې را روان ول. د کلي مشر دې کسانو ته اشاره کړې وه او موږ یې سور بیرغ لیدلی وو چې سپرو ته یې ښوراوه. بیلیو راته وویل چې ټول یو ځای حرکت وکړی او مه سره بېلېږی. موږ کرار کرار حرکت وکړ او وسله والو کلیوالو ده ته ږغ کړل چې مه وېرېږه موږ دوستان یو. کله چې بیلیو د هغوی خوا ته ورغی هغوی سمدستي وواژه. کلیوالو پر موږ باندې ډزې وکړې او زموږ سپرو هم جواب ورکړ. یو تن ماته را ورسېدی او حمله یې راباندې وکړه. ما یې مخه ونیوله او هغه پر برډ باندې حمله وکړه او ځای پر ځای یې وواژه. په موږ ماته ګډه سوه. کپتان هوپکینز، کپتان کولي یر، ډاکټر هارپر، ضابط سټیر او زه ژوندي پاته سولو. درې مخکې یاد سوي کسان ډېر تېز روان ول او موږ ته یې وویل چې مرسته به راته را ولېږي او په تاخت روان سول. یو څه چې مخ ته ولاړو ضابط سټیر راته وویل چې نور حرکت نه سي کولای څکه چې آس یې یو ګام نه سي تللای او دی هم سخت ستړی دی. د آس تر خولې او سږمو یې وینې راتللې او نور د حرکت نه وو. سټیر وویل چې دی غواړي په یوه غار کي پټ سي او د شپې حرکت وکړي. ما چې هر څه زاری ورته وکړې چې دلته شاوخوا خلک دي او شپونیان رمې پیایي حتماً به دي یو څوک ووینې او مړ به دي کړي. زما خبره یې ونه منله او ماته وویل چې ته درځه زما غم مه کوه. ټینګار ګټه نه کوله او زه ورڅخه روان سوم. یو څه لاره بې غمه روان وم او وروسته مې د تقریباً شلو کسانو یوه ډله ولیدله چې په لاره کې ولاړ ول. کله چې زه ور نیژدې سوم نو د غټو ډبرو وارونه یې راباندې پیل کړل. ما خپل یابو وځغلاوه. د آس کیزه مې په غاښو کې ونیوله او دواړو خواوو ته مې د توري وارونه کول او په خلکو کې را تېر سوم. دوی په ما پسې له خپلو سېلاوو سره را ونه رسېدل او یوازې په یوه یا دوو ډبرو ولګېدلم. یو لږ چې مخکې ولاړم یوه بله ډله خلک را باندې پېښ سول. ما پر خپل یابو باندې د توري څوکه کښېکښه او تېز تللو ته مې مجبور کړ. زه له دوی څخه را تېر سوم او ومې لیدل چې یابو مې په ورانه کې زخمي سوی دی. خو زه همداسې کرار کرار روان وم او وروسته مې څو تنه په سره لباس کې سپاره ولیدل. ما د خپلو عسکرو خیال ورباندې وکړ خو هغه افغانان ول او یو مې ولیدی چې د کپتان کولي پر اس باندې سپور وو. ما کوښښ وکړ چې له دوی څخه تېر سم مګر یابو مې تېز نه سوای تللای او دوی یو تن را پسې را

ولېږي هغه پر ما باندي د سپلاوې واری وکړ او ما يې په خپله نيمايي توره مخه ونيوله توره ولوېده او لاستی يې را پاته سو. دی تر ما تېر سو او بيرته راباندي را وگرځېدی او چي را نيژدې سو ما د توري د لاستي واری پر وکړ او ده مي کيڼ لاس را زخمي کړ. دا لاس مي له کاره ولوېدی، غوښتل مي چي کيزه را پورته کړم او کوړ سولم. زه گومان کوم ده فکر وکړ چي زه توپنچه را باسم او له دغه امله زما څخه ليري سو. ما په توپنچه پسي وکتل خو هغه تللې وه. اوس نو زه هم بې وسلې وم هم زخمي وم او هم مي يابو غريب له حرکته لوېدلی وو. زه پوه سوم چي جلال آباد ته نه سم رسېدلای. زړه مي ولوېدی او له سيوري څخه بېرېدلم. زه نيژدې له يابو څخه لاندي را لوېدلی وم چي په دغه وخت کي له قشلې څخه زموږ خپل عسکر را ورسېدل. په دوی کي لومړی کپتان سين کلېر وو او د هغه نوکر خپل بوټ زما په پښه کړ. زه يې قشلې ته بوتلم. ډاکټر فورسيت مي زخمونه پټی کړل. د ډوډی تر خوړلو ورسته مي د آرامی احساس وکړ او ټوله شپه ښه ويده سوم. په قشله کي مي تر ټولو ښه مېلمه پالنه کپتان فرانسيس کننينگهم وکړه چي د جلال اباد د محاصرې تر ختمېدلو پوري د ده په اتاق کي ورسره دېره وم. زما چپه لاس، سر او چپه زنگون زخمي وه او نور نو جوړ وم. يابو مي يوازي يوه شپه ژوندی وو او سهار ته مړ سو. کله چي ما د قشلې کسانو ته د کابل د پوځ د تباهی او خپلو انډيوالانو کيسه وکړه نو جنرال سېل سمدستي عسکر ولېږل چي که نور څوک هم په لاره کي پاته وي، مگر هغوی د کپتان هوپکينز، کپتان کولي او ډاکټر هارپر مړي پيدا کړي ول. قشلې ته زما له رسېدلو څخه يوه شپه وروسته يوه سړي ښاغلی بانيس قشلې ته راووست. بانيس هغه وخت چي زموږ عسکرو له جلال آباد څخه کابل ته حرکت کاوه، د دغه سړي د توت باغچه د سيکهـ عسکرو له تباهی څخه ژغورلې وه. ښاغلی بانيس يوازي يوه ورځ ژوندی وو. هغه ډېر ستړی ستومان او له لوږي او يخنی څخه ډېر زيات کړېدلی وو. لارنس ص ص ۳۰۵-۳۱۵

د انگرېزانو عسکرو او د کمپ خدمه ته ډېر زيات تلفات د حرکت په دریيمه شپه د خورد کابل په دره کي ورسېدل. په دې دره کي څه باندي دوې مياشتي مخکي جنرال سېل هم له مقاومت سره مخامخ سوی او سخت تلفات يې ليدلي وه. ويل کيږي چي د خورد کابل په دره کي د انگرېزانو درې زره عسکر او خدمه تلف سول. انگرېزي مېرمنو، په خپلو ماشومانو پسي يوې خوا او بلي خوا ته ځغستل. په دې دره کي د انگرېزانو ډېر صاحب منصبان ووژل سول چي په هغو کي کپتان پيټنټ او ليفټينيټ سټرټ چي د جنرال سېل زوم وو، شامل ول. ورپسې شپه ښه ډېره واوره ورباندي وسوه؛ په همدغه ډول يې تلفات ورکړل او ډېر زيات کسان له يخنی او لوږي تلف سول. ايکسپيډيشن ص ۳۷۹

دوې شپې وروسته دوی جګدلک ته ورسېدل. دلته اکبرخان د انګرېزانو له پوځي مشرانو سره وکتل. له هغوی سره یې په ډېره مهرباني سلوک وکړ او ټولو ته یې ښه ډوډۍ ورکړه. صاحب منصبانو له هغه څخه وغوښتل چې د پوځ باقي پاته برخه له حملو او تلفاتو څخه وساتي. اکبرخان د دوی پېشنهاد ومانه، مګر وې ویل چې جنرال شیلټن او کپتان جانسن دي د یرغمل په توګه ورته وسپارل سي. اکبر خان دغه راز ژمنه وکړه چې د پوځ باقي پاته کسانو ته به ډوډۍ او د ضرورت مواد ورسوي.

اکبرخان یو ځل بیا ژمنه وکړه چې د دوی د باقي پاته قوې او سرېیو ساتنه به وکړي خو دا یې هم وویل چې د دې د خلکو کنټرول د ده تر وس وتلی دی. هغوی په زوره نارې وهلې چې بل هیڅ نه غواړي او یوازي د انګرېزانو وینو ته تږي دي. اکبر خان د غلجیو مشرانو او خلکو ته وویل چې تاسي انګرېزان قتل کړی نو زما پلار او کورنی چې له هغوی سره بندیان دي هغوی ته هر څه پېښېدلای سي. مګر د ده پر خبرو او غوښتنو چا غوږ ونه نیوی. بالآخره یې د هغوی مشرانو ته دوه لکه روپۍ ورکړې او هغوی وویل چې نور له انګرېزانو سره کار نه لري. مګر ایله خبري پای ته رسېدلي وې چې حملې بیا پیل سوې. په دې وروستیو حملو کي نو ټول پوځ تباه سو. جنرال انکویټیل، کپتان نیکول چې انګرېزي منابع یې د خپل پوځي تاریخ له قهرمانانو څخه بولي په دې حملو کي له منځه ولاړل او یوازي یو څو تنه افسران ژوندي پاته سول. هغه کتاب ص ص ۳۸۲-۸۳

## تلفات

له کابل څخه تر جلال آباد پوري د انګرېزانو پوځ ته د رسېدلو تلفاتو په باره کي په زیاترو تاریخي متونو کي مبالغه سوې ده. که څه هم چې د تلفاتو شمېر د موضوع پر اهمیت او ماهیت باندي کومه اغېزه نه لري. انګرېزانو پر افغانستان باندي ظالمانه یرغل کړی د هغوی په مقابل کي پاڅون سوی او هغوی بالاخره ماته کړې ده او پر دې مسئله باندي هیڅ ډول اختلاف نه سته. خو د تاریخ شاګردانو ته باید د هري موضوع د کم او کیف په برخه کي تر وسه- وسه سم معلومات ورکړل سي. مرحوم عبدالحی حبیبي انګرېزانو ته د رسېدلو تلفاتو شمېر ډېرش زره کسان ښیي. حبیبي ص ۲۸۳. مرحوم غلام محمد غبار وایي د دښمن څلوېښت زره عسکر ووژل سول او څو زره یې د غازیانو له خوا محاصره ول. غبار ص ۵۶۶ میرزا یعقوب علي خافي خو دونه مبالغه کوي چې وایي د یوې هفتې په

اوردو کي د انګرېزانو ۱۲۰ زره افسران او سپاهیان قتل سول او یوازي یوولس تنه یې پېښور ته ورسېدل او هغوی هم په پېښور کي جهنم ته ولاړل. البته خافي له پېښو څخه دونه بې خبره دی چي د شاه شجاع د وژل کېدلو پېښه د مکناټن له قتلېدلو څخه مخکي بولي. خافي جلد اول ص ص ۱۴-۱۵

البته زموږ مؤرخینو او لیکوالانو باید دا فکر کړی وای چي د شېرپور په عسکري قشله کي دېرش زره، څلوېښت زره او حتی (۱۲۰) زره عسکر، خدمه، وسلې او مهمات، آسونه او لوازم څرنګه ځایېدلای سي؟ موږ مخکي د ډاکټر برایډن په خاطراتو کي ولوستل چي هغه پنځه تنه نوکران درلودل او هر یوه یې یو آس او یابو درلودی. که یوه ډاکټر پنځه نوکران درلودلي وي نو د عالي رتبه صاحب منصبانو، مکناټن او جنرال الفینسټون سره به څو تنه نوکران ملګري ول؟ او آیا په دې شمېر خلک په یوه قشله یا حتی دوو دریو قشلو کي ځایېدلای سي؟ که څه هم چي د برتانوي عسکرو او د هغوی د تلفاتو د شمېر په باب خو لیکونه او یاداشتونه ډېر زیات دي خو د کمپنۍ مخصوصي او یا سِري کمېټې ته د ګورنرجنرال د (۱۸۴۲) کال د فبروري د نولسمي نېټې رپوټ یو څه وضاحت ورکوي:

"... له هغو اسنادو څخه چي موږ ته رسېدلي دي د کمېټې محترمو غړو ته به معلومه سوې وي چي د ډسمبر پر اته ویشتمه، مېجر پوټینجر په جلال آباد کي کپټان میګریګور ته ولیکل چي په کابل کي له مشرانو سره د موافقې جزیات لا بشپړ سوي نه دي. د ډسمبر پر نهه ویشتمه مېجر پوټینجر او تورن جنرال الفینسټون کپټان میګریګور او تورن جنرال سر رابرټ سېل ته ولیکل چي په کابل کي زموږ د موافقې د موادو په اساس باید تاسي له جلال آباد څخه پېښور ته حرکت وکړئ. د جنوري پر څلورمه یې ولیکل چي موږ د جنوري پر شپږمه له کابل څخه حرکت پیل کوو او د جنوري پر شپږمه پوځیانو خپل مارش پیل کړ. تر هغه ځایه چي موږ ته معلومه ده زموږ پوځیانو نه خوراکي مواد او نه خیمې او وسایل ورسره درلودل او په غرونو او درو کي د دښمن له حملو سره مخامخ سول. له دوو دریو مارشونو څخه وروسته دوی روحیات له لاسه ورکړل، بې نظمه سول او بالاخره ټول تباه سول.

موږ ته د خپلو هغو پوځیانو چي له کابل څخه یې حرکت کړی دی دقیق شمېر معلوم نه دی. مګر دونه پوهېږو چي له دې څخه مخکي په نورو حملو او جنګونو کي باید زموږ د پوځیانو شمېر ډېر کم سوی وي. او د هغو پوځیانو شمېر چي له کابله یې حرکت کړی او د جنګ او حرکت کولو

توان يې درلودی ایله څلورو زرو تنو ته رسېدی..." پېپرز ص ۱۳۲

د مکناټن په هغه لیک چې مخکې یې میګریګور ته لیکلی وو، هم څرګندېږي چې په قشله او بالاحصار کې د ټولو پوځیانو او په هغوی پورې د مربوطو کسانو او نوکرانو شمېر پنځلسو زرو ته رسېږي چې څلور زره یې باید عسکر او باقي پاته یې نوکران، ښځې او ماشومان وي. په دې ترتیب موږ ګورو چې په ارقامو کې تر اندازې زیات توپیر موجود دی او دومره لوی توپیر د موضوع د کم او کیف په برخه کې سوالونه پیدا کوي.

لکه څرنګه چې ډاکټر برایډن په خپلو خاطراتو کې اشاره ورته کړې ده له کابل څخه تر جلال آباد پورې په لاره کې یې ولیدل چې ډېر زیات کسان په تېره بیا ټېپان ښځې او ماشومان پاته سول. موږ د سیتارام په خاطراتو کې لولو چې دغه کسان ژوندي ونیول سول او په کابل کې د غلامانو په بازار کې خرڅېدل. سیتارام د نورو ټولو صاحب منصبانو د خاطراتو په خلاف لیکي چې له کابل څخه د حرکت کولو په لومړۍ او دوهمه ورځ حملې نه دي ورباندي سوي او حملې په درېیمه ورځ ورباندي پیل سوې. په داسي حال کې چې ډاکټر برایډن او نور ټول په خپلو خاطراتو کې وايي چې له کابل څخه د حرکت سره سم حملې پیل سوې او ډاکټر برایډن خو د هغه صاحب منصب نوم یادوي چې ایله له قشلې څخه یې حرکت کړی وو چې وویشتل سو. سیتارام لیکي:

"... زه د سر پر یوه خوا باندي د توپک په مرمی ولګېدم. له دې وروسته نو په ځان نه یم پوه سوی او چې پر هوښ راغلم ګورم چې پر یوه آس باندي تړلی یم. سر مي یوې خوا ته او پښې مي بلې خوا ته ځړېږي او د جنګ له صحنې څخه د کابل خوا ته وړل کېږم. زه پوه سوم چې دا سړی مي کابل ته وړي او هلته مي د غلامانو په بازار کې خرڅوي. ما هغه ته زارۍ وکړې چې یا مي وولي او یا مي په چاړه غاړه را غوڅه کړي. هغه ته مي په پښتو او هم په خپله ژبه ښکنځل وکړل چې ګوندي په غوسه يې کړم او مړ مي کړي. هغه څو ځله په خپله سپلاوه تهدید کړم خو زه نه چوپ کېدلم. کله چې دی پوه سو چې زه له مرګه نه بېرېږم نو یې راته ویل چې که نه چوپېږې مسلمانوم دي او زه هم چوپ سوم.

څه وېروونکې صحنې مي په لاره کې ولیدې! پښې او لاسونه له واورو څخه راوتلي. اروپاییان او هندوستانیان په واورو کې ښخ سوي ول. آسونه او اوښان ټول مړه ول! داسي صحنه وه چې په ژوند به مي هېره نه سي. کله چې د آس خاوند ولیدل چې زه مرګ تر ژوند بهتر بولم نو زړه یې راباندي وسوځېدی. له آس څخه یې خلاص کړم او پر اوښ باندي یې وتړلم. که څه هم چې دلته هم ډېر په

تکلیف وم خو دا چي پر یابو باندي ځېدلم تر هغه مي دا حالت مي بهتر وو. هغه افغان زما پر زخم باندي واوره وموښل او درد مي کرار سو. مرمۍ مي د سر پر پوست باندي لګېدلې او پوست یې څیرلی وو. موږ په څلور یا پنځه ورځي کي کابل ته ورسېدلو. په ما یې افغاني جامې واغوستلې او د غلامانو په بازار کي یې خرڅ کړم. شتمنو افغانانو هندوستانیانو ته ارزښت ورکاوه او له هغوی څخه یې د نوکرانو په توګه کار اخیست. زه ښه جګ لوړ او غښتلی وم او په (۲۴۰) روپۍ خرڅ سولم. د عثمان بېګ په نوم یوه سړي را نیولم. د غلامانو په بازار کي مي نور هندوستاني عسکر او یو څو تنه اروپاییان هم ولیدل. له اروپاییانو څخه د افغانانو د پوځیانو په روزلو کي کار اخیستل کېدی. څرنګه چي دوی ته یو څه شیرازي شراب هم رسېدل نو زموږ په څېر یې له سرنوشت څخه ډېر زیات شکایت نه کاوه.

په اروپاییانو کي مي یو صاحب ولیدی چي د کمپنۍ له پوځ سره یې اړه درلوده. ده زما سره خبري وکړې او ویل یې چي سرکار به ډېر ژر د افغانستان د بیا اشغالولو له پاره یو لوی پوځ را ولېږي او موږ ټول به وژغوري. زه ګومان کوم چي خپل نوم یې والان وښود. زما یې اوس نوم هېر دی خو د ده خبري یو څه د زړه ډاډ راکړ. زما نوي بادار زما سره بد سلوک ونه کړ؛ مګر دا یې راته وویل چي که مي د ده امر نه مانه او یا مي د تښتېدلو هڅه وکړه نو بیا مي خصي کوي او په ډېره لوړه بیه مي بیرته خرڅوي او زما څخه به د حرم په ساتلو کي کار اخیستل کیږي. که ماته د والان صاحب خبرو یو څه د زړه ډاډ نه وای راکړی نو ما به ځان وژلی وای او یا به مي حتماً د تښتېدلو هڅه کړې وای. زه یې د محمدصفي په نوم یوه مولوي ته وسپارلم. مولوي به ماته کرۍ ورځ بد رد ویل او زه به یې بت پرست بللم. خو وروسته چي پوه سو چي زه غواړم د ده لعنتي ژبه زده کړم نو بیا یې زما سره ښه سلوک کاوه او کوښښ یې کاوه چي ما مسلمان کړي..." سیتارام ص ص ۱۱۵-۱۱۶

لکه څرنګه چي انګرېز صاحب منصب سیتارام ته ویلي وه چي انګرېزي پوځونه به بیرته افغانستان اشغالوي او له دوی سره به مرسته کوي، همداسي وسوه او انګرېزان د پېښور او کندهار له لارو کابل ته ننوتل او د کابل له خلکو او د استالف او شمالي له اولسونو څخه یې کسات واخیست؛ مګر سیتارام ته یې مرسته ونه رسېده. سیتارام وروسته د یوه کاروان له مشر سره د پنځو سوو روپیو رشوت په منلو له شمالي څخه وتښتېدی او ځان یې په ډېرو خواریو بیرته هندوستان ته ورساوه.

په افغانستان کي د عمومي پاڅون د پیل او په نتیجه کي د برتانیې د پوځ د بشپړي ماتي او تباهۍ

اصلي او عمده عامل پر دې هیواد باندې د انګرېزانو تېری او له پردیو او په تېره بیا له فرنګیانو او غیر مسلمانانو څخه د افغانانو ژور نفرت وو. په دې کې شک نه سته چې د افغانانو عمومي پاڅون او د انګرېزانو د لښکر تباهي به نور هم ډېر زیات عوامل لري؛ خو که انګرېزانو هر څومره کوښښ کړی او هر څومره یې د اشتباهاتو مخه نیولې وای نتیجه به یوه وای. انګرېزان به د نورو پردیو قدرتونو په څېر حتماً وتلای او د افغانانو پاڅون به حتماً بریالی کېدلای. د انګرېزانو د پوځ د ژر ناکامۍ او تباهۍ یو مهم علت دا وو چې ګورنرجنرال لارډ آکلینډ د افغانستان په باب په هیڅ نه پوهېدی او د افغانستان نیول یې هم د نورو هیوادونو او سیمو سره یو شان یا ورته بللي ول. د دې دونه مهم ماموریت عمومي قومانده یې جنرال الفینسټون ته وسپارله، چې له لومړۍ ورځې یې له دردونو څخه سم حرکت نه سو کولای او حتی د افسرانو په مجلس کې یې منظمه برخه نه سوای اخیستلای. جنرال له کاره لوېدلی او سیاسي استازی مکناټن چې تقریباً ټول واک یې په لاس کې وو دونه په خپل قوت مغرور وو چې له کابل څخه یې په لوی لاس خپل ډېر قوي جنرالان او لوی قوتونه وایستل. دی هغه وخت خپلې دې اشتباه ته متوجه سو چې هیڅ شي ګټه نه کوله. د انګرېزانو پوځ دا وخت دونه روحیات بایللي وه چې د هیڅ ډول مړاني او غیرت تمه ورڅخه کېدلای نه سوای.

له مکناټن سره، د وروستیو خبرو په ورځ د هغه مرستیال جورج لارنس او کپتان میکینزي ژوندي ونیول سول او د اکبرخان سره پاته سول. د غازیانو مشرانو فیصله وکړه چې جورج لارنس د انګرېزانو قشلې ته واستوي او له افغانستان څخه د انګرېزانو د وتلو په باب ورستیو شرایطو باندې خبرې وکړي. جورج لارنس قشلې ته ولاړ او د ده له وینا څخه په ځرګنده معلومېږي چې انګرېزان څومره بې زړه سوي ول.

"... زه په قشله کې خبر سوم چې، د ډسمبر پر دیرویشتمه چې مکناټن او د هغه ورسره ملګري ونیول سول نو له هغه سره پر بدرګه عسکرو باندې ډزې وسوې او هغوی سمدستي قشلې ته وځغستل؛ د خپلو صاحب منصبانو د ژغورلو له پاره یې هیڅ حرکت ونه کړ. کله چې دوی وځغستل نو د بدرګې له بلې ټولۍ سره چې ضابط لې ګېټ یې مشري کوله مخامخ سول هغوی هم له دې تښتېدونکو عسکرو سره یو ځای سول او خپل زړه ور صاحب منصب یې له ځانونو سره یووړ. موږ ته محمداکبرخان وروسته وویل چې یوازې د موتي رام په نوم یوه راجپوت چې د چپراسیانو جمادار وو، د مکناټن د ژغورلو له پاره مخامخ توره په لاس را وځغستل او ځای پر ځای ټوټې ټوټې سو. په قشله کې ماته عسکرو وویل چې مکناټن او د هغه ورسره ملګري ونیول سول او لاس تړلي

يې ښار ته يووړل. دغه مبهم رپوټ چي يو څو تنو بېرندوکو او بې غيرتو کسانو ورکړی وو پوځي مقاماتو هم منلی او کافي بللي وو. يو سړی هم د حقيقت د معلومولو له پاره وانه ستول سو، هيڅ عسکر چا د څارلو او نظارت کولو له پاره ونه لېږل، هيڅ حمله ونه سوه او حتی يو ډز ونه سو په داسي حال کي چي په هغه وخت کي د دښمن پياده او سپاره عسکر وليدل سول چي د محمودخان د قلا خوا ته يې ځغستل او څو تنو صاحب منصبانو ماته وويل چي دوی له قلا څخه په دوربين کي ليدل چي په ميدان کي دوه مړي پراته دي، چي بايد د مکناټن او د هغه د زړه ور جمادار به وه؛ خو هيچا د هغو مړو د راوړلو له پاره هم هڅه ونه کړه. په دې توګه مکناټن په سپينه ورځ په داسي ځای کي چي زموږ د توپکو ډزي هم ور رسېدلای سوای زموږ په مخ کي ووژل سو. مړی يې په ښار کي وګرځول سو، مګر موږ نه د خپلو ملګرو د ساتلو له پاره اقدام وکړ او نه مو پر خپل حيثيت او عزت باندي د دغه تېري د کسات اخيستلو له پاره عمل وکړ..." لارنس ۱۳۷-۱۳۸

د نومبر پر دوهمه د پاځون له پيل څخه بيا د انګرېزانو د پوځ تر بشپړي ماتي پوري هره ورځ انګرېزانو يوه ماته وخوړه او يا يې بد خبر واورېدی. داسي ښکاري لکه بدنونه او مغزونه چي يې يو ځای فلج سوي او له کاره لوېدلي وي. مکناټن د ډسمبر پر ديرويشتمه له اکبر خان سره د خپل مرګاني مجلس څخه مخکي، د ګورنرجنرال په نوم يو ناتمام ليک پرې ايښی وو. د دې ليک له متن څخه د مکناټن او د هغه د ټولو ملګرو بېچارګي او بې زړه توب ښکاره کېږي.

"... زه باور لرم چي پر پېښو باندي زما له مخکنيو تبصرو څخه به درته څرګنده سوې وي چي ماته له مذاکراتو پرته بله لاره پاته نه وه. ما دا خپل ځان ته معلومه کړې وه چي د ياغيانو مشران زموږ د بېچارګي په وضع خبر دي او دوی به هيڅ داسي شرايط ونه مني چي له افغانستان څخه زموږ وتل پکښي راغلي نه وي.

تر هغه ځايه چي ماته معلومات سوي دي ټول هېواد زموږ په مقابل کي پاځېدلی دی. زموږ ارتباطات له هري خوا سره قطع دي. هر حکومتي مامور، که موږ تنخوا ورکوو او که له شاه شجاع څخه تنخوا تر لاسه کوي، د نوي حکومت غوښتنه کوي. تر اوسه پوري ډېر زيات شمېر کسان، حتی د شاه شجاع ملکي مامورين، له کارونو څخه تښتېدلي دي. موږ څلوېښت ورځي له ډېر زيات شمېر کسانو سره، په ډېرو بدو شرايطو کي، د ډېرو ارزښتمنو کسانو د لاسه ورکولو سره وجنګېدلو. موږ ښايي په دوو ورځو کي له لوږي هلاک سو. د ساړه ژمي اغېزې خو لا پرېږده، چي زموږ

عسکر، په تېره بیا هندوستانیان ډېر سخت ورڅخه په تکلیف دي. ماته پوځي مقاماتو پرله پسې ویلي دي په دې پوځیانو موږ هیڅ نه سو کولای. زه باید په خواشیني سره درته ووایم چې زموږ له پوځ څخه هره ورځ عسکر د دښمن خوا ته تښتي. ما چې له افغانانو سره کوم شرایط لاسلیک کړي دي تر هغه بهتر مي نه سوای تر لاسه کولای. که څه هم چې زه پوهېږم چې که موږ تباه سو نو زموږ حکومت به حتماً زموږ کسات اخلي خو د دې پنځلسو زرو کسانو ژوند هم په خپله یو ارزښت لري او باید چې په هره توګه وژغورل سي. موږ باید له افغانانو سره د دوستانو په حیث خدای په اماني وکړو او زه له دې امله راضي یم چې که له دې وروسته په دې هیواد کي هر حکومت منځ ته راځي هغه به زموږ سره د ښو اړیکو غوښتونکی وي.

موږ باید له افغانستان څخه د وتلو له پاره شرایط کښېږدو او له شرایطو پرته به وتل غیر عملي وي. دا حقیقت دی چې د شرایطو له منلو او د موافقې د کولو سره موږ د ټول هیواد له فتح کولو څخه منع کېږو او تر کومه ځایه چې زه معلومات لرم زموږ حکومت په هیڅ ډول مساعدو شرایطو کي هم دغه هدف نه درلود. مګر زه چې د هند د حکومت مالي وضعیت ته ګورم او ګورم چې موږ په مختلفو ځایونو کي پوځیانو ته ضرورت لرو نو په دې باره کي بېخي فکر نه سو کولای. که په دغه صورت کي لګښتونه د تحمل وړ نه وي... دلته جمله ناتمامه پاته سوې ده.

زه د دې پاڅون د عواملو په باب خپلو ټولو پخوانیو لیکونو ته اشاره نه سم کولای. تر دې خبري چې را تېرسو چې دا خلک له لویه سره پاڅون او بغاوت ته تیار ناست دي؛ موږ چې د فاتحینو او د بل مذهب درلودونکو خارجیانو په حیث دې هیواد ته راغلو، له لومړي ورځي د خلکو، په تېره بیا د هغوی د مشرانو ښه نه راڅخه راتلل او په کرکه یې راته کتل. په داسي حال کي چې په موږ کي ځینو کسانو داسي کارونه وکړل چې په لوی لاس یې هم دا حساس خلک پاڅون ته وپارول. د شاه شجاع مغرور وضعیت د اشرافو او مشرانو خوښ نه وو. د دې تر څنګ هغه اقتصادي اقدامات چې د ضرورت له مخي وسول، خصوصا پر خلکو ښه ونه لګېدل.

د دې پاڅون په جریان کي زه هر وخت د خپل مرستیال جان کانلي له لاري چې تل به په بالاحصار کي حاضر وو، له شاه شجاع سره په تماس کي وم. د ډسمبر پر اتلسمه موږ موافقه وکړه چې زموږ پوځیان باید له بالاحصار څخه قشلې ته راسي او د بارکزیو مشران به له اعلیحضرت سره یوه غونډه وکړي او پر دې به بحث ورسره وکړي چې هغه د خپلي پاچهۍ له صلاحیتونو څخه څونه ګټه اخیستلا سي. دوی د خپل حفاظت له پاره د بالاحصار په لوړه برخه کي خپل محافظین ودرول،

کله چي زموږ پوځيان له بالاحصار څخه را ووتل نو اعليحضرت يا له وارخطايي او يا د سوء تفاهم په اثر د بالاحصار دروازه وتړله او هغه کېدونکی کنفرانس پاته سو. بارکزي دونه خوابدي سول چي ويل يې بيا به هيڅ وخت اعليحضرت ته دغه ډول شرايط وړاندي نه کړي. اعليحضرت وايي هغه ځکه دا کار وکړ چي هغه کسان چي بارکزيو غوښتل په خبرو کي دي برخه واخلي؛ هغه خلک نه ول چي موافقه ورباندي سوې وه.

اعليحضرت وتړل ...

دلته ليک ناتمام پاته سوی دی. کې ص ص ۶۷۴-۶۷۶

په افغانستان کي د انگرېزي قواوو بشپړه ماته نه يوازي د دوی له پاره يو لوی سياسي گوزار سو او د کلونو له پاره يې سياستمدارانو او تاريخ پوهانو ته د ليکنو او نظر ځرگندولو له پاره مواد برابر کړل، بلکي گاونډيو هيوادونو ته يې هم دا وښودله چي د افغانستان نيول او ساتل څه اسانه خبره نه ده. روسيه چي په مرکزي اسيا کي به يې يو وخت د انگرېزانو له نفوذ او يا د کومي سيمي د احتمالي اشغال څخه وېره درلوده، هم تر ډېره ځايه بې غمه سوه. ميخايل گريگوريوف چي شل کاله د لوېديځي سايبيريا گورنر وو په مرکزي اسيا کي د برتانيې د احتمالي حرکت له درکه اطمينان ځرگندوي: "دا به يو څه له امکانه ليري خبره وي چي اينگلينډ به له بخاراسره د وسلو مرسته وکړي؛ دا نه له دې کبله چي د دوی په مقابل کي فيزيکي او طبيعي خنډونه او موانع موجود دي؛ ځکه چي له پېښور څخه د آمو تر سيند پوري لاره سته او نه يوازي سپکي وسلې ورباندي تېرېدلای سي بلکي درانه توپونه هم ورباندي تېرېدلای او انتقالېدلای سي. مگر د وسلو لاره د افغانستان په مستقل هيواد کي تېره سوې ده او افغانان پرديو ملکونو ته اجازه نه ورکوي چي د دوی په خاوره کي وسلې انتقال کړي او انگرېزانو تر اوسه پوري د (۱۸۴۲م.) کال خطرناک درس نه دی هېر کړی. دوی که بل ځل داسي گام پورته کاوه او ځانونه يې خطر ته ورکوله نو اووه ځله به غور ورباندي کوي." راولنسن ص ۲۷۱

د افغان او انگليس د لومړي جنگ څخه وروسته بې حسابه ليکني وسوې. د دغه جنگ او د پوځ او د چارو له سياسي سستم سره يو له تر ټولو سخت مخالف جنرال ناټ وو، چي وروسته يې پر کابل باندي په انتقامي عملياتو کي برخه واخيستله. جنرال ناټ د کابل له پاڅون څخه څو مياشتي مخکي د اوړي په موسم کي، چي لا مکناټن ته هر څه گل و گلزار ښکارېدل وليکل: "موږ چي دلته را ورسېدلو نو د دې هيواد اوسېدونکو داسي فکر کاوه چي انگرېزانو چي خبره وکړه نو خپله

خبره مقدس حیثیت ورته لري او له خپله قوله نه تیرېږي. اوس له چا سره هغه عقیده نه سته. موږ چې د هر څه تضمین کړی وو او موږ چې هره وعده کړې وه هغه مو تر پښو لاندې کړه. د مجازات او ډېر سخت انتقام ورځ به را ورسېږي. ما ویل چې را وبه رسېږي؟ هغه ورځ دا دی را رسېدلې ده. افغانانو د وخته خپلې توري تېرې کړې دي. په غرونو او کلیو کې د افغانانو یاغي سندري آزانګې کوي او د قتل عام او وینو بوی یې ځي. زما دا خلک خوښ دي او زه کولای سم چې د هغوی په تر ټولو لیري او لوړو غرونو کې دوی ته ځان یوازې وسپارم. کله چې زه د غلجیو سیمو ته ورغلم نو هغوی ډېر ژر پوه سول چې څوک د دوی شتمنې لوټي او څوک یې ساتنه کوي. زما خېمه به له خلکو ډکه وه او ماته به یې زاری کولې چې د یوه خدمت ږغ ورباندې وکړم او ماته یې ویل چې ته هر څه غواړې موږ ته ووایه او امر وکړه. دا هغه خلک ول چې نه د پاچا او نه د سیاسي استازي خېمې ته ور نیژدې کېدل او چې د هغوی به یو سړی په کار سو په ټولو کې یې څوک د کار له پاره نه سوای پیدا کولای. د غلجیو یو مشر زما خېمې ته راغی او په ډېره زړه ورتیا یې راته وویل: "مخکې له هغه چې ته دلته راسې زموږ سره بې اندازې وحشت سوی دی. اوس به څرنګه څوک حاضر سي چې ستا سره د عسکري بارک په جوړولو کې مرسته وکړي؟ تا زموږ سره عدالت او ښه سلوک کړی دی موږ ته ستا د خپل شخصي خدمت ووایه موږ ټول درته حاضر یو." یو څوک چې دونه احمق یا دونه تنبل سي چې خپلې ټولې ته عسکري انضباط نه سي ورښودلای نو مقاماتو ته تېټ او پاس کیږي او هغوی یې هم په سیاسي دفتر کې په کار وګوماري او په عسکري قطعه کې سیاسي استازیتوب ورکړي. هغه نو طبعاً داسې کارونه کوي چې د ده د حکومت او هیواد د بدنامی سبب سي. مخکې له هغه چې زه له هندوستان څخه را ووځم، دا صحنې زما مخې ته تېرې سوي دي. هغه پوځیان چې ما نن ولېږل ښایي کار یې حکومت ته ډېر ګران تمام سي او صاحب منصبان او عسکر باید له (۱۲۰) څخه تر (۱۳۰) درجې فارنهایټ تودوخه کې کار وکړي او دا ټول د یوه احمق سیاسي آمر د عمل تاوان دی چې موږ ته را رسېږي. هغه سیاسي آمر داسې یو کلی تباه کړی دی چې یوازې دیرویشت تنه پکښې اوسېدل. ده ولې دا کلی تباه کړ؟ دا ځکه چې ده فکر کړی وو چې د هغه کلي خلکو ده ته له دې امله ته په سپک نظر کتلي وه چې له ده سره بې ضرورته دوه سوه تنه سپاره بدرګه ورسره وه! که زه هلته وای نو ده ته مې تر اته تنه زیات محافظین نه ورکول. په هغه صورت کې به نو ده له کلیوالو سره انساني وضع کړې وای او یا لږ تر لږه وحشیانه سلوک به یې نه وای کړی. تاسې فکر وکړی چې له یوه ځوان افسر سره دوه سوه تنه بدرګه د څه له پاره استول

کيږي؟ زما سره يو ساتونکی هم ملګری نه وي مګر په دغه سيمه کي تر اتو او لسو ميلو پوري يوازي پر آس باندي سپور ځم او اکثر وختونه خپل اردلی هم راسره ملګری نه وي. زه د دوی باغونو او کليو ته ورځم او خلک په ورين تندي زما هرکلی کوي. بيا هم زه وايم، چي زه د خپل وطن له خلکو څخه شرمېږم چي دا خبره کوم چي زه تر ټولو پاته بلوڅ تر ډېرو خلکو بهتر بولم. دغه نن سهار مي د مارش په وخت کي له دوو انګليسيانو څخه چي خپل ځانونه شريف او د قدر وړ خلک بولي واورېدله چي ويل يې د دې وطن د هر اوسېدونکي غاړه بايد غوڅه سي! او ولي؟ ځکه چي دغه بدبختان د خپلو ښځو، ماشومانو او شتمنيو څخه د دفاع په منظور کله کله زموږ پر عسکرو باندي يو نيم ډز کوي. کې ص ص ۳۵۰-۵۱

دا چي انګرېزانو پر افغانستان باندي څومره ظلم وکړ. څومره کلي يې وسوځول او څومره بېګناه خلک، ښځي او ماشومان يې قتل کړل، داسي يو حقيقت دی چي د اثبات له پاره يې موږ د جنرال ناټ خبرو ته چنداني ضرورت نه لرو. په خپله د يوه مستقل هيواد پر خاوره باندي تېری کول، پرخلکو باندي يې خپل يو ګوډاګی د پاچا په حيث تحميلول او د هغوی د خپل مشر او مشرانو له منځه وړل يو نه بخښل کېدونکی جنايت دی. او نور چي هر څه پېښېږي هغه د دغه لوی او عمومي جنايت محصول دی. پر دې حقيقت باندي د دوی خپلو مؤرخينو، سياسيونو او ژورناليستانو اعترافونه کړي دي.

البته د جنرال ناټ دا خبري له مبالغې خالي نه دي چي وايي: دی د غلجيو په سيمه کي له خپل کمپ څخه اته او لس ميله ليري په يوازي سر د هغوی کليو او باغونو ته ورغلی دی او خلکو يې ډېر تود هرکلی کړی دی او دا هم ځکه چي ده له خلکو سره بې موجبه بې عدالتي نه وه کړې. د افغانستان خلکو يوازي د برنس او مکناټن په مقابل کي نه بلکي د ټولو پرديو يرغلګرو په مقابل کي پاڅون کړی وو او هر انګرېز ته يې د دښمن په سترګه کتل او چي تر څو پوري يې ټول پردي ايستلي او وژلي نه وه تر هغه وخته پوري کرار نه کښېنستل. له خاوري او ناموس سره مينه، له پرديو يرغلګرو سره مقاومت او له پرديو څخه نفرت د افغانانو د وينو خصوصيت دی.

افغانانو په ژوند کي انګرېزان ليدلي نه وه او له هغوی سره د ګوزارې کولو او عمر تېرولو خبره خو بېخي مطرح نه ده نو هغوی به څرنګه پوه سوي وه چي انګرېزان پر قول ولاړ خلک دي. او که په دې حقيقت پوه سوي هم وای د انګرېزانو په مقابل کي د هغوی نفرت ځکه نه کمېدی چي هغوی انګرېزانو ته په هرصورت د کفارو په سترګه کتل. حقيقت خو دا دی چي انګرېزانو برعکس هيڅ وخت له چا سره پر خپل قول وفا نه کړې او نه يې عادت دی. موږ وليدل چي انګرېزانو په يوه

کال کې له ایرانیانو سره د افغانانو پر ضد او له افغانانو سره د ایرانیانو پر ضد تړونونه لاسلیک کړي دي. دلته به دوی څرنګه پر قول د دربدلو او اعتماد کولو خبره وکړي؟

بمبیي ټایمز ورځپاڼې د دې غیرعادلانه جنګ په پای کې د بې ځایه تویو سویو وینو او د دواړو خواوو د تلفاتو په باره کې یو دقیق رپوټ خپور کړ. "د (۱۸۳۹م.) کال د نومبر د میاشتې څخه چې د سرجان کین او سر ویلشایر پوځونه له افغانستان څخه ووتل، بیا د (۱۸۴۱م.) کال د نومبر تر میاشتې پورې زموږ پوځیانو له دښمن سره څلوردېرش نښتې کړې دي چې په بېلو بېلو حملو کې له پنځوسو څخه نیولې تر دوو زرو تنو پورې پوځیانو برخه اخیستې ده. په دې جګړو کې زموږ تلفات ۱۵۰۰ مړه او ټپیان دي او له یاغیانو څخه پنځه زره تنه وژل سوي دي. پر دې برسېره (۲۵۰۰) افغانان د جګړې په پیل کې له منځه تللي دي. ګواکې د (۱۸۳۹م.) کال د فبروري څخه د (۱۸۴۱م.) د اکټوبر تر میاشتې پورې موږ (۷۵۰۰) افغانان ووژل. بیا مو هم دوی نمک حرامه بلل؛ ځکه چې موږ له دوی سره د وینو پیوند جوړ کړی او دوی زموږ احسان نه وو منلی. د وینو دا پیوند موږ په راتلونکې کال کې د (۵۰۰۰) نورو افغانانو په قرباني کولو سره ښه ټینګ کړ! په دې توګه د وژل سویو افغانانو شمېر (۱۲۵۰۰) تنو ته ورسېدی. د (۱۸۴۲م.) کال د ډسمبر له میاشتې څخه مخکې زموږ خپل (۱۸۰۰۰) پوځیان او د کمپ نوکران او خدمه ووژل سول." بویسټ ص ۲۸۵

پر افغانستان باندې د انګرېزانو د یرغل په لومړیو شپو ورځو کې یعنې له کندهار څخه د کابل پر لور د حرکت په وخت کې د پنجاب واکمن رنجیت سینګهه هم مړ سو. د هغه له مړینې سره نه یوازې په پنجاب کې ثبات له منځه ولاړ، بلکې له برټانیې سره د پنجاب د واکمنانو په اړیکو او دوستۍ کې هم بشپړ تغییر منځ ته راغی. د سیکهانو په قلمرو کې نه یوازې د انګرېزانو د پوځي کاروانونو پر وروستی برخې باندې حملې کېدلې او په مالونو بار حیوانات به یې ورڅخه بېول بلکې داسې باوري رپوټونه موجود وه چې د سیکهانو لویو مشرانو په لاهور او را ولپینډۍ کې د افغاني یاغیانو مشرانو ته پناه ورکوله او هغوی ته یې په پنجاب او پېښور کې پوځي مرکزونه په اختیار کې ورکول، څو له هغو ځایونو څخه پر افغانستان باندې حملې وکړای سي. د سیکهانو سرداران که څه هم په نامه د انګرېزانو متحدین ول، مګر ټولو په افغانستان کې د برټانیې د قواوو ماته غوښته. په هند کې انګرېزي مقامات ځکه له لویې ستونزې سره مخامخ ول چې کابل ته د دوی د مرستو رسولو لنډه لار د پنجاب د واکمن په قلمرو کې تېرېدله او چې هغه سیمه ورته خرابه سوه نو بیا خپلو قواوو ته د اکمالاتو په رسولو کې له سختو ستونزو سره مخامخ ول. جان کالوین چې مخکې د مکناټن سکرټر وو، لارډ اکلینډ ته ولیکل چې پنجاب باید له هند سره وتړل سي او که نه نو زموږ اکمالاتي لارې ته خطر متوجه کوي. ده لیکلي وه چې تر اوسه لا بحراني حالات نه دي راغلي مګر په چټکۍ سره هغې خوا ته روان دي. ډال ریمپل ص ۲۳۳

## ماءخذونه

۱: کهزاد، احمدعلي. بالاحصار کابل و پیش آمد های تاریخي. پیښور پاکستان. ۱۳۷۸

۲: رشتیا، سیدقاسم. افغانستان در قرن نزده. کابل دولتي مطبعه. ۱۳۴۶

۳: کاتب، فیض محمد. سراج التواریخ. کابل. مطبعه حروفي دارلسلطنه کابل. ۱۳۳۱

۴: هراتي، محمدحسین. واقعات شاه شجاع. مطبعه عمومي کابل ۱۳۳۳

۵: حبیبي، پوهاند عبدالحی. تاریخ مختصر افغانستان. چاپ ,۱۹۸۹

۶: غبار، میرغلام محمد. افغانستان در مسیر تاریخ. کابل ,۱۹۶۷

۷: خافي، میرزا یعقوب علي. پادشاهان متاخر افغانستان. کابل ,۱۳۳۴

8: Correspondence. Persia and Afghanistan. London. 1839.

9: Mohan Lal. Life of Amir Dost Mohammed Khan of Kabul Vol 2. Karachi, Pakistan. 1978.

10: Ferrier, J.P. History of the Afghans. London. 1858.

11: Dalrymple, William. Rrturn of a King. London 2013.

12: Frontier and Overseas Expeditions from India Vol3. Quetta Pakistan 1982.

13 : Kaey, John Willim. History of the War in Afghanistan Vol1and 2. New Delhi 1999.

14: Stocqueler, J.H. Momorials of Affghanistan. Peshawr Pakistan 1983.

15: Cunningham, J.D. History of the Sikhs. Delhi Reprint 1990.

16: Malleson, G.B. History of Afghanistan. Reprint 1984. Peshawar, Pakistan.

17: Watson, Robert Grant. A History of Persia from the Beginning of the Nineteenth Century to the Year 1858. London 1866.

18: Jeffery, J. Roberts. The Origins of Conflict in Afghanistan. London 2003.

19: Bellew, Henry Walter. The Races of Afghanistan. Reprint Pakistan 1979.

20: Lawrence, Sir George. Forty Three Years in India. London 1874.

21 Sita Ram . From Sepoy to Subedar. London. 1873.

22: Rawlinson, Major Gen. Sir Henry. England and Russia in the East. London 1874.

23: Buist, L.L.D. Outline of the Operations of the British Troops in Scinde and Afghanistan. Bombay: Printed and published at the Times Office.

24: Lady Sale. A Journal of the Disasters in Afghanistan, 1841-1842. London 1843.

25: Eyre, Vincent. The Military Operations at Cabul. London 1843.

26: Expeditions. Frontier and Overseas Expeditions from India, Vol3. Second Edition Published in Pakistan. 1982.

27: Papers, Related to Military Operations in Afghanistan. London, 1843.

28: Forrest, George. W. Life of Field-Marshal Sir Neville Chamberlain. London. 1909.

## افغانستان د انګرېزانو له ماتې او وتلو وروسته

په افغانستان کې د انګرېزانو د پوځونو له ماتې او وتلو وروسته د دې هیواد ستونزې ختمې نه سوې، بلکې لا نورې ستونزې هم ورته پیدا سوې. هغوی لکه څرنګه چې پر افغانستان باندې د ظالمانه او بې موجبه یرغل سره هم ځانونو او هم افغانانو ته تاوان ورساوه، هغسې یې له وتلو سره د قومي اختلافاتو او ستونزو داسې تخمونه وشیندل چې افغانانو تر ډېره وخته پورې د آرامۍ مخه و نه لیده او که یې کرارې په برخه سوې وې نو هغه به هم موقتي او د ډېر لږ وخت له پاره وه.

سردار محمد اکبر خان د انګرېزانو یرغمل، تر ډېره ځایه له دې امله ورسره ساتلي و چې په دې توګه جنرال سېل له جلال آباد څخه وتلو ته مجبور کړي. جنرال سېل چې په یوه میاشت کې یې ځان له کابل څخه جلال آباد ته نیژدې تر فتح آباد پورې رسولی او ټوله لار یې جنګونه کړي او تلفات یې لیدلي وه، د جلال آباد پرېښودلو ته حاضر نه وو. هغه پوهېدی چې که یې د ګارنیزون څخه حرکت وکړ تر پېښور پورې به یې له ټولې قوې څخه یو تن هم ژوندی و نه رسېږي. له جنرال سېل څخه مخکې مکناټن هم غوښتنه کړې وه چې کابل ته ورسي او هغه ته نجات ورکړي مګر جنرال سېل او د هغه قوه په داسې حال کې وه چې ایله ځان یې ساتلی وای. جنرال سېل په خپله مرستې ته ضرورت درلود. ده په پېښور کې د ګورنر جنرال استازي کپتان مکسن ته ولیکل چې ما غوښتل چې د کابل د قوې سره د مرستې له پاره هغې خوا ته حرکت وکړم خو له یوې خوا مې د بار وړونکو حیوانانو څښتنان را څخه تښتېدلي دي او نور پیدا کولای نه سم او له بلې خوا مې سم نیمایي مواد له کابل څخه تر فتح آباد پورې د دښمن لاس ته ورغلي دي او په عین وخت کې جلال آباد د لغمان له لورې تر تهدید لاندې دی. جنرال سېل له مکسن څخه هیله کړې وه چې که له سیکانو څخه وغواړي چې دوه سوه زره د توپک مرمۍ ورته برابرې کړای سي ځکه چې دوی د دفاع له پاره مهماتو ته اړتیا لري. (پېپرز، ص: ۱۶-۱۷)

جنرال سېل، د نومبر پر پنځلسمه پېښور ته لیکلي وه چې که له جلال آباد څخه کابل ته حرکت وکړي نو لږ تر لږه په شپږو ورځو کې به ځان کابل ته رسوي؛ په داسې حال کې چې له ده سره یوازې د دوو ورځو جګړې له پاره مرمۍ او مهمات موجود دي او ضمناً یې د ټپیانو شمېر دریو سوو تنو ته رسېدلی دی او دا کسان ورسره نقلولای نه سي. ده لیکلي وه چې په اوسنیو شرایطو کې د

خپل حکومت د حیثیت او ګټو د ساتلو له پاره دا لازمه بولي چې له جلال آباد څخه دفاع وکړي. جنرال سېل ضمناً لیکلي وه چې تېره ورځ د دښمن پنځو زرو تنو حمله ورباندې وکړه او څلرویشت ساعته یې مرمۍ ورباندې و اورولې. موږ ته یې سخت تلفات را واړول. که څه هم چې زموږ ډګرمن مونتیت هغوی ته ماته ورکړه خو زه یقین لرم چې هغوی به بیا راځي او موږ باید د خپلې دفاع له پاره ځانونه تیار کړو. (هغه کتاب، ص: ۱۷)



د افغان-انګرېز لومړۍ جګړه

جنرال سېل د نومبر پر دیارلسمه سهار جلال آباد ته ننووت او د ښار په اشغالولو یې بناء وکړه. د ښار او شاوخوا اوسېدونکي ځکه وارخطا سول چې دوی فکر کاوه د انګرېزانو دا قوه هندوستان ته روانه ده. کله چې د سېل قوه ښار ته داخله سوه نو اوسېدونکي یوې او بلې خوا ته وتښتېدل او ښار بېله جنګه د سېل لاس ته ورغی. سېل لا په ښار کې خپله قوه نه وه ځای پر ځای کړې او لا یې د ښار د دفاع په تقویه کولو لاس نه وو پوري کړی چې د ښار له شاوخوا څخه غازیان ورباندې را وګرځېدل او دوی ته یې اخطارونه ورکول چې که له ښاره څخه و نه وځي نو ټول به قتل کړي. د ښار دفاعي حالت ډېر سخت کمزوری وو او جنرال سېل سمدستي جنګي شورا جوړه کړه. په دې شورا کې مهم سوال دا وو چې قوه بالاحصار ته، چې هم تنګ وو او هم یې له سره جوړېدل غوښتل، نقل

کړي او که په ښار کي پاته سي او خپله دفاع وکړي. د اکثریت صاحب منصبانو نظر په ښار کي د پاته کېدلو پر خوا وو؛ ځکه چي دوی فکر کاوه که چیري بالاحصار ته انتقال سي نو افغانان به دا د دوی کمزوري وبولي او د محاصرې د کار سختولو او حملو ته به زور ورکړي. (کې، ص: ۲۰۱-۲۰۲)

رابرټ سېل د نومبر پر اتلسمه، په پېښور کي سیاسي استازي ته ولیکل چي ګارنیزون ته زموږ له رسېدلو سره په سبا ماښام، له څلورو خواوو حمله راباندي وسوه. سېل د دښمنانو شمېر لږ تر لږه پنځه زره تنه ښیي او وایي چي زموږ عسکرو په متقابله حمله لاس پوري کړ او دښمنانو ته یې له سختو تلفاتو رسولو څخه وروسته هغوی پر شا کړل او له هغه راهیسي بیا چا حمله نه ده راباندي کړې. (پیپرز، ص: ۱۸، مکتوب لمبر ۱۵)

اکبر خان ته په فتح آباد کي معلومه سوه چي جنرال سېل د تسلیمېدلو یا پېښور ته د حرکت کولو خیال نه لري؛ نو خپل یرغمل یې محمد شاه خان ته وسپارل او په خپله یې په جلال آباد کي د دښمن د ګارنیزون د محاصره کولو کار پیل کړ.

په فیروز پور کي د ګورنر جنرال د استازي مرستیال کپتان هینري لارنس په هغه ښار کي له کرنل وایلډ څخه وغوښتل چي د ګورنر جنرال له امر سره سم د پېښور پر لور حرکت وکړي او چي هر څومره ژر کېدلای سي، په جلال آباد کي د محاصره سوي قوې سره مرستي ته ځان ورسوي. (هغه کتاب، مکتوب، ۲۱)

کرنل وایلډ د ډسمبر پر اووه ویشتمه ځان پېښور ته ورساوه او د جنوري په میاشت کي یې د خیبر د درې پر لور حرکت وکړ. دا وخت د مکناټن د وژل کېدلو او په کابل کي د انګرېزانو د پوځ د تباه کېدلو رپوټونه پېښور او شاوخوا ټولو سیمو حتی هندوستان ته رسېدلي وه او ټولو مسلمانانو ته یې د انګرېزانو له سلطې څخه د ژغورل کېدلو هیله پیدا کړې وه. د انګرېزانو د پوځ د نه ماتېدلو طلسم مات سوی وو او سیمه ټوله په ښور کي وه. کرنل وایلډ په دغه حال کي د خیبر پر خوا حرکت وکړ. علي مسجد ته یې ځان په ډېرو خواریو ورساوه او په علي مسجد کي د اپرېدیو له سخت مقاومت سره مخامخ سو. قوه یې ګډه وډه سوه او په خپله کرنل وایلډ هم داسي سخت ټپي سو چي پېښور ته یې په کجاوه کي ورساوه. (ډیورنډ، ص: ۳۹۰)

د کرنل وایلډ د قوې له ماتېدلو سره، جنرال سېل له هري خوا د مرستي له رسېدلو څخه نا امیده سو او د انګرېزانو د پوځ اعلی قوماندان سر جسپیر نیکول ته یې ولیکل چي موږ بیا هم ستاسي مرستي ته سترګي پر لاره یو او باور لرو چي را و به رسیږي او موږ به تر وروستي سړي پوري

مقاومت کوو. (هغه کتاب، ص: ۳۹۱)

په لومړي سر کي گورنر جنرال لارډ الینبرا د افغانستان او لږ تر لږه د کابل د بیا اشغالولو پلان نه درلود. هغه د جنرال سېل د قوې محاصره کېدلو او په وروسته کي، په خیبر کي د کرنل وایلډ د قوې ماتېدلو وارخطا کړی وو او د جنرال پالک د لېږلو څخه یوازینی هدف یې د جنرال سېل د قوې ژغورل وه. خو په جلال آباد کي د جنرال سېل د قوې ماتېدلو یو څه زړه ورکړ او د لیکونو لهجې یې تغیر رکړ. ده په لومړي سر کي غوښتل چي له کندهار څخه د جنرال ناټ قوه د کوږک له لاري هندوستان ته ورسوي او په سند او بلوچستان کي یې تورن جنرال اینگلینډ ته هدایت ورکړی وو چي د جنرال ناټ سره د قواوو په را ایستلو کي مرسته وکړي او اکمالات ورته برابر کړي، خو کله چي جنرال ناټ ورته ولیکل چي غواړي د کلات او غزني له لاري کابل ته ورسېږي نو گورنر جنرال هم د ده فیصله ورسره ومنله خو بیا یې هم زړه ډېر دربېدی او هغه ته یې د بشپړ احتیاط توصیه کوله.

"که تا د غزني، کابل او جلال آباد له لاري د را وتلو فیصله کړې وي نو زه وایم په هغه صورت کي به ته ډېرو زیاتو اکمالاتو او د انتقال وسایلو ته اړتیا ولرې او ته به له کندهار څخه د حرکت کولو سره سم، له هندوستان سره د ارتباط ټینگولو څخه محروم یې. زه ستا د پوځ پر زړه‌ورتیا او ستا د قوماندې پر وړتیا باندي باور لرم او په دې کي هیڅ شک نه لرم چي ته به په دې عملیاتو کي بریالی سې. مگر دا چي ته به د خپل مارش په جریان کي د پوځ له پاره خوراکي مواد او د حیوانانو له پاره واښه پیدا کړای سې که نه؟، ستا برې په دې دوو خبرو پوري تړلی دی.

تا ته باید دا معلومه وي چي دا د افغانانو فوق العاده جرأت نه وو چي موږ ته یې ماته راکړه بلکي د خوراکي موادو نیستي او ساړه موسم شکست را په برخه کړ او په کابل کي زموږ د پوځ د تباهی علت سو. تا ته باید ما غوندي معلومه وي چي که زموږ پوځ د هر علت له مخي یو ځل بیا ماته وکړي نو په هند کي به زموږ د حکومت له پاره مرگاني گوزار وي.

زه دا نه وایم چي په غزني او کابل کي به، چي زموږ پر پوځ باندي تباهی راغلي دي، ستا بریالی مارش په هند کي زموږ د حکومت له پاره چنداني ارزښت و نه لري، بلکي زه په دې پوهېږم چي ستا دغه برې به زموږ د عسکرو پر روحیاتو، په اسیا کي زموږ پر دښمنانو او دوستانو، زموږ پر ټولو وطنوالو او پر ټولو خارجي هیوادونو او اروپا باندي څه اغېزه ولري. دا یوه داسي عادلانه آرزو ده چي که پوره سي نو تر ما به هیڅوک زیات په خوشاله نه وي مگر زه دا هم وینم چي په دغه لاره

کي ناکامي به مونږ ته داسي تباهي راولي چي په هيڅ توګه به جبرانېدلای نه سي او زه تا ته توصيه کوم چي په دې مارش کي له ضروري احتياط څخه کار واخلې او ځان په دې حقيقت پوه کړې چي هر څومره چي د دې مارش د بري ګټي ډېري دي، په هغه اندازه يې د ناکامېدلو تاوانونه هم زيات دي.

که تا د غزني پر لار د راوتلو فيصله کړې وي نو ته بايد هغه ډېر په ځان غښتلي او جوړ روغ پوځيان درسره واخلې او باقي پاته عسکر د قلعه عبدالله او کوټي له لاري واستوه.

ته د هغه ځای اوضاع ته وګوره او بيا نو فيصله وکړه چي د کندهار کلا او دفاعي ترتيبات تباه کوې که نه؟ مګر مخکي له هغه چي ته دغه له خطرونو ډک سفر پيل کوې نو بايد چي د هغو عسکرو غم وخورې چي تر شا يې پرېږدې او هغوی ته د سند او سکر له لاري د وتلو له پاره بشپړ هدايتونه ورکړه.

ته بايد دا په ياد ولرې چي ستا دغه مارش به هغه وخت ښه بريالی وي چي په غزني او کابل کي دي له خطرونو ډک عمليات و نه ځنډوې. تا بايد دا وخت ښه محاسبه کړې وي چي بايد د اکتوبر په لومړۍ هفته کي خپل ځان جلال آباد ته ورسوې او په دې توګه به د تورن جنرال پالک د پوځ تر شا روان سې او محافظه به يې کړې. که ته چيري وکړای سې چي په يوه ناڅاپي او قاطع حمله غزني او کابل ونيسې نو بيا به هغه څه چي لازم بولي هغه کوې او د برتانيې د پوځ طاقت به ثابت کړې، پرته له دې چي د بشر پر حقوقو تېری وکړې. ته به د غزنوي محمود له قبر څخه د هغه ګروز راوړې، چي د ده د قبر پر سر ځوړند دی او د ده له مقبرې څخه به هغه دروازې راوړې چي له سومنات څخه يې وړي دي. دا به ستا د بريالي مارش منصفانه غنيمت وي... " (پېپرز مکتوب، ۴۰۴)

سره له هغه چي جنرال ناټ او جنرال پالک دواړو، ګورنر جنرال ته اطمينان ورکړی وو مګر له هغه سره بيا هم په افغانستان کي د راتلونکو عملياتو په باب داسي ژوره اندېښنه موجوده وه چي د لاسه ورکړو توپونو او حتی بنديانو تر سر هم تېرېدلو ته حاضر وو او سِري کمېټې ته د اګسټ د مياشتي په رپوټ کي يې وويل تاسي به زما د مکتوبونو له روحيې څخه پوه سوي ياست چي ما هر وخت له افغانستان څخه زمونږ د پوځيانو د را ايستلو پر موضوع باندي ډېر ټينګار کړی دی.

ايلينبرا وويل ما په هغه خاوره کي چي د برتانيې پوځونو ماته پکښې خوړلې ده، د توپونو د بيرته تر لاسه کولو او د بنديانو د خوشي کولو په منظور يو څه خطرونه هم منلي دي مګر زه په افغانستان کي د خپل پوځ حفاظت، په هند کي د برتانيې د امپراطورۍ د حفاظت له پاره ضروري بولم؛ خو که

زه په افغانستان کي د هر هدف د تر لاسه کولو له پاره خپل پوځ جدي خطر ته ورکړم بیا که مي نړۍ بخښي او که مي ستاینه کوي زه به خپل ځان و نه بخښم.

زما هیله دا ده چي زه باید خپل پوځ خطر ته ور نه کړم او له خپلو هدایتونو څخه باید هغه څه تر لاسه کړم چي د اینګلینډ د خلکو غوښتنه وي. (مکتوب، ۴۱۰)

ګورنر جنرال لارډ ایلینبرا د (۱۸۴۲م.) کال د مارچ پر پنځلسمه په هند کي د برتانوي پوځونو اعلی قوماندان سر جسپیر نیکول ته د افغانستان په باره کي یو مفصل مکتوب ولیکی او هغه ته یې وویل چي په کابل کي د تېر کال د نومبر پر دوهمه، شورش نه بلکي انقلاب پیل سو او بالاخره یې زموږ پوځ داسي تباه کړ چي په هند کي مو زموږ په تاریخ کي داسي تباهي نه وه لیدلې. د افغانستان ټول خلک زموږ پر ضد په مذهبي او ملي احساس یو موټی سول او موږ دې نتیجې ته ورسېدو چي که موږ افغانستان بیرته اشغال کړو نو دا به د لوېدیځ له لوري د هر یرغلګر قدرت په مقابل کي زموږ د قوت عامل نه بلکي د کمزوری عامل سي. په دې اساس نو هغه پالیسي له منځه تللې ده چي موږ ته یې د افغانستان پر لور د پرمختګ توصیه کوله.

لارډ ایلین برا لیکي چي موږ باید خپل پوځونه له جلال آباد، کلات، کندهار او غزني څخه په سالمه توګه را وباسو او افغانانو ته داسي ګوزار ورکړو چي هم دوی ته، هم زموږ اتباعو او هم زموږ متحدینو ته څرګنده سي چي موږ هغو کسانو ته د سزا ورکولو توان لرو چي زموږ پر پوځیانو یې ظلمونه کړي او له ترونونو څخه یې سرغړوني کړي دي. ګورنر جنرال وایي موږ باید دا وښیو چي له افغانستان څخه د کمزوری له امله نه راوځو، بلکي موږ ته معلومه سوه چي هغه پاچا چي موږ قدرت ته ورساوه، زموږ د انتظار په خلاف، د خپلو خلکو ملاتړ نه درلود.

ګورنر جنرال ولیکل چي په جنګ کي شهرت، قوت دی. مګر که څوک خپل زړور پوځیان بېځایه خطرونو ته ورکړي او پر له پسې شکستونه وخوري نو د هغو پوځیانو روحیات کمزوري کېږي چي زموږ د پوځ پر قوت یې حساب کړی وي او هر وخت یې بری ګټلی وي. موږ په سند او افغانستان کي خپلو پوځیانو ته توصیه کوو چي خپل ځانونه هسي بېځایه خطرونو ته ور نه کړي او ضمنًا افغانانو ته، په هغو ځایونو کي چي لازمه وي، داسي ضربه ورکړي چي زموږ له قوت څخه و وېرېږي.

د ګورنر جنرال دفتر ته معلومه سوه چي د پښتنو په سیمو، په تېره بیا د خیبر په درو او له جلال

آباد څخه تر کابل پوري غرونو کي، تېرېدل او بېرته را ستنېدل اسانه کار نه دی نو ځکه یې جنرال پالک ته وظیفه ورکړه چي له یوه لوی او ښه مجهز پوځ سره د افغانستان پر لور حرکت وکړي او د جنرال سېل قوه، چي هیڅ خوا ته د وتلو لاره نه لري، وژغوري. جنرال پالک هم ځان پېښور ته ورساوه او هلته د لښکر په تنظیمولو، د اکمالاتو په برابرولو او د خیبر په غرونو او درو کي د تېرېدلو له پاره د سیکانو څخه د مرستو اخیستلو او د هغوی د پوځیانو د ملګري کولو په کار لګیا سو.

د ګورنر جنرال دفتر، جنرال پالک ته درې داسي توصیې وکړې چي د افغانستان په باره کي د هغوی دایمي بد نیت له ورایه ورڅخه څرګند وو. لومړی دا چي جلال آباد باید سیکانو ته وسپارل سي. دوهم دا چي افغانان باید داسي بې اتفاقه کړي چي هیڅ وخت انګرېزانو ته خطر متوجه نه کړای سي او دریم دا چي هغوی ته داسي سزا ورکړي چي د تل له پاره یې عبرت سي او بیا له انګرېزانو سره د مقابلې کولو جرأت و نه کړي.

د ګورنر جنرال دفتر، د (۱۸۴۲م.) کال د مې پر شپږویشتمه، جنرال پالک ته ولیکل چي ستاسي د دې میاشتي د اتلسمي له لیک څخه ښکاري چي سیکان غواړي جلال آباد او یا کابل او یا دواړه د دوی وي. مګر د لاهور دربار غواړي چي د جلال آباد له نیولو څخه مخکي د ټول افغانستان په برخه کي د برتانیې د حکومت په وروستی پالیسي وپوهېږي.

د ګورنر جنرال دفتر ولیکل چي جنرال پالک باید سیکان په دې پوه کړي چي د افغانستان په برخه کي د برتانیې د حکومت پالیسي او د لاهور د حکومت پالیسي باید دا وي چي هغه هیواد باید په اینده کي دا توان و نه لري چي د ختیځ لوري ته خطر متوجه کړي او چي څه توان لري نو هغه د لوېدیځ لوري څخه د تهدید د مخنیوي له پاره په کار واچوي.

که د لاهور حکومت یا د هغوی په اجازه، د جمو راجه ګان وغواړي چي د اباسین ښي اړخ ته پرتو سیمو سره د سپین غر سلسله او د هیمالیا سیمه یو ځای کړي نو د برتانیې حکومت، د اوسنیو شرایطو سره سم، د هغوی له دې هدف سره کوم مخالفت نه لري او د سیکانو کنټرول ته د جلال اباد په سپارلو کي به مرسته ورسره وکړي.

د ګورنر جنرال دفتر له دې سره یوه بله ماده تړلې ده چي د سیکانو د تشویقولو له پاره یو دام وو مګر سیکان یې تر پایه پوري و نه غولول. جنرال پالک ته یې هدایت ورکړی وو چي سیکان باید د جنرال پالک د لښکر تر شا علاقه بنده نه کړي بلکي یا باید په مخ کي ځایونه اشغال کړي او یا د کابل د سیند پر کیڼ اړخ باندي حرکت وکړي او هغه سیمي ونیسي چي بالاخره به د لاهور حکومت

ته سپارل کیږي.

انګرېزانو غوښتل په دې توګه سیکان د بلا مخې ته سپر کړي او د خیبر د اپرېدیو ټول زور پر هغوی باندې ختم کړي. په دې توګه به یې هم خیبر له زیاتو تلفاتو پرته تر لاسه کړی او هم به یې سیکان دونه کمزوري کړي وي چې بیا د دوی له غوښتنو او امر څخه د سرغړونې توان ور پاته نه وي. مګر وروسته معلومه سوه چې سیکان د انګرېزانو په چال پوهېدل او په دام کې و نه لوېدل.

د ګورنر جنرال دفتر په پای کې ولیکل چې جنرال پالک باید د ارتباطاتو د ساتلو له پاره نه د سیکانو په ملګرتوب، چې چنداني په باور نه دی، اعتماد وکړي او نه د اپرېدیو پر پیمانونو باندې حساب وکړي بلکې ټوله تکیه یې باید پر خپل مټ او قوت کړې وي، خو که یې دا قوت نه درلود او نه یې تر لاسه کولای سوای نو که هر څونه خطرونه ورته متوجه کیږي باید چې پر شا سي او تر ټولو سالمه او پټمنه لاره غوره کړي. (پېپرز مکتوب، ۳۳۹)

د ګورنر جنرال دفتر له دې څخه مخکې جنرال پالک ته، د افغانستان په برخه کې، د لاهور او برتانیې د حکومتونو د ګډو دلچسپیو او ستراتیژیو په باره کې، یو بل مکتوب لیکلی او په هغه کې یې د افغانستان په باره کې خپل بد نیت څرګند کړی دی. په مکتوب کې راغلي دي چې د شاه شجاع له وژل کېدلو څخه وروسته باید په اوس حالت کې د هیچا واک او حکومت په رسمیت و نه پېژندل سي. ګورنر جنرال فکر کوي چې د لاهور حکومت به هم دغه ډول عقیده ولري. د ګورنر جنرال دفتر لیکي چې له شاه شجاع څخه مخکې امیر دوست محمد خان، د لوېدیځو ګاونډیو په مرسته، خپلو ختیځو ګاونډیانو ته خطر پېښاوه. خو اوس نه یوازې دوست محمد له قدرته لیرې کړه سوی دی بلکې هغه هیواد په داسې جنګونو اخته سوی دی چې که سبا دوست محمد خان بیرته قدرت ته ورسېږي دا به یې په وس کې نه وي چې خپل هیواد بیرته د پخوا په څېر غښتلی کړي.

د ګورنر جنرال دفتر لیکي چې زموږ د وروستیو اقداماتو نتیجه دا ده چې په افغانستان کې باید نه داسې دوست او نه داسې دښمن پاچا پیدا سي چې خپل هیواد یو موټی کړي او یو واحد قدرت ورڅخه جوړ کړي. افغانان په خپلو غرونو کې، که څه هم وړي وي، د یرغلګرو په مقابل کې د مقاومت کولو توان لري مګر که دوی هم سره وېشلي او هم نېسمتن وي نو بیا پر چا باندې د حملې کولو زور نه لري. ګورنر جنرال زیاتوي چې دا باید زموږ پالیسي وي چې هیڅ داسې کار و نه کړو چې افغانان خپل اختلافات پرېږدي. بې اتفاقي له دوی څخه دا زور اخلي چې تر خپلو پولو بهر چا

ته خطر متوجه کړي او خپل زور زموږ په مقابل کي استعمال کړي. د گورنر جنرال دفتر جنرال پالک ته هدایت ورکوي چي د لاهور حکومت ته دا خبره روښانه کړي چي زموږ دواړو هدف باید دا وي چي افغانستان په داسي یوه حالت کي وساتو چي له لوېدیځ لوري د یرغل په مقابل کي د دېوال حیثیت ولري او پر ختیځ لوري باندي د حملې کولو توان پیدا نه کړي. (هغه کتاب مکتوب، ۳۱۸)

گورنر جنرال پر افغانستان باندي د بل ځل یرغل کولو او له افغانانو څخه د انتقام اخیستلو له پاره د جنرال پالک په څېر ازمېیل سوی سړی انتخاب کړی وو. دا داسي انسان وو چي نه یې د کلیو په سوځولو، نه په قتل عامونو او نه د ماشومانو او ښځو په وژلو زړه سړېدی. هغه په حقیقت کي داسي سړی وو چي انساني عاطفه یې په قاموس کي نه وه.

نوی گورنر جنرال لارډ ایلینبرا په بې رحمي او افغان دښمني کي تر پخواني گورنر جنرال لارډ آکلینډ په کمه نه وو. ده ټول هغه هدایتونه تائید کړل چي پخواني گورنر جنرال، پالک ته ورکړي وه. ده پالک ته د اکبر خان په باره کي ولیکل چي هر کله ستا او د جنرال ناټ لښکري ښکاره سي هغه ښايي له کابل څخه ووځي. افغانستان ته ستاسي د قواوو له رسېدلو سره به د هغه مخالف مشران زړور سي او دا احتمال ډېر لیري نه دی چي اکبر خان به را وپرزېږي او په کابل کي به یو تش په نامه شاهي حکومت، یا د فتح جنگ او یا بل کوم مشر تر رهبری لاندي جوړ سي.

لارډ ایلینبرا هم جنرال پالک ته ولیکل چي په کابل کي ستا او د جنرال ناټ د قواو له گډو عملیاتو څخه هدف دا دی چي په هغه ځای کي چي موږ ماته خوړلې ده، خپل زور ښکاره کړئ. افغانانو ته گوزار ورکړئ خو نه د انتقام اخیستلو په خاطر بلکي هغوی ته د سزا ورکولو په خاطر. تاسي به په دې عملیاتو کي له لاسه ورکړي توپونه او سامانونه تر لاسه کړی او خپل بندیان به خوشي کړی.

گورنر جنرال د اکبر خان په باره کي ولیکل چي داسي یو احتمال هم لیري نه دی چي د اکبر مخالفه ډله به هغه تاسي ته ژوندی تسلیم کړي. ما ته د اکبر خان نیول کېدل او په لاس راوړل بې اندازې زیات اهمیت لري. ته دا واک او اختیار لرې چي هغه ته د ژوندي پاته کېدلو ضمانت ورکړې؛ مگر په دې موضوع کي به نور شرایط پر ځان نه مني. زه جدًا دا هیله لرم چي دغه مشر، چي د مکناټن ښکاره قاتل دی او د برتانیې له پوځ سره یې خیانت کړی دی، پرته له هیڅ ډول شرایطو زموږ لاس ته راسي.

گورنر جنرال یو ځل بیا پالک ته ولیکل چې ته باید د خپلو اهدافو د تر لاسه کولو له پاره ټوله تکیه او حساب پر خپلو قواوو وکړې او په داسي توګه د برتانیې زور وښیې؛ چي نه د جنګ له اصولو او نه د برتانیې له بشر دوستی سره مخالف عمل وي. مګر کله چي دي خپل زور وښود نو بیا به د حکومت له امر سره سم، له افغانستان څخه راوځې.

ګورنر جنرال په تکرار ولیکل چي ته باید په هغه ځای کي چي د برتانیې پر پوځ باندي بدبختي راغلې ده دا وښیې چي د برتانیې پوځ نه ماتېدونکی دی. ته باید پوځي قواوي په سالمه توګه بیرته هند ته را ورسوې؛ چي دلته ورته ډېره سخته اړتیا ده. (پېپرز مکتوب، ۴۱۵)

ګورنر جنرال د اکبر خان له نیول کېدلو سره ډېره زیاته علاقه درلوده او له یوه لیک څخه صفا معلومېږي چي ده اکبر خان ته د اعدام سزا غوښته. د اګسټ پر درېیمه یې جنرال پالک ته د هغه په باره کي خاص مکتوب واستاوه. ده ولیکل چي که دي چیري اکبر خان بیله قید او شرطه، په لاس درغی خو د ژوندي پاته کېدلو غوښتنه یې کړې وه؛ نو زما غوښتنه دا ده چي ته به هغه ته ووایې چي د سر ویلیم مکناټن د قتلولو په ګناه به محاکمه کیږي. نو ته به دی بندي کړې او داسي سلوک به ورسره وکړې لکه د کوم بل دغه ډول جنایتکار سره چي کیږي او کله چي محکوم سو نو له هغه سره د هغه د جنایت په مطابق داسي عمل وکړه لکه د یوه بل قاتل سره چي باید وسي.

ته باید د هغه په محاکمه کي تلوار و نه کړې او داسي نه وي چي د ده د قتل محاکمه چي څوک انکار نه سي ورباندي کولای او یو منلی حقیقت دی، په نیمګړو شواهدو پیل کړې.

یوازینی دلیل چي ته باید د اکبر خان محاکمه وځنډوې دا کېدلای سي چي که چیري هغه اعدام سي نو افغانان به هغو انګرېزي بندیانو ته تاوان ورسوي چي اوس هم د هغوی په لاس کي دي. په هغه صورت کي نو ته د خپل قضاوت سره سم عمل کولای سې. (مکتوب، ۴۳۹)

که څه هم چي ګورنر جنرال خو جنرال پالک ته، د افغانستان د بیا فتح کولو او د افغانستان اولسونو ته چي انګرېزانو ته یې هیڅ تاوان نه وو رسولی، بلکي د خپلي خاوري څخه یې دفاع کړې وه، د سزا ورکولو هدایت ورکړی وو او د دي هدف له پاره یې یو مجهز او لوی پوځ ترتیب کړی وو؛ مګر دا قوه هم له پېښور څخه تر جلال آباد پوري د پښتنو له مقاومت سره مخامخ وه او ځای پر ځای یې تلفات ورکول. دا قوه نه یوازي، د خپلو متحدینو، سیکانو له حملو سره مخامخ سوه؛ بلکي په خیبر کي اپرېدیو هم پر کراره پرې نه ښودله.

په هغه رپوټ کي چي ګورنر جنرال لارډ ایلینبرا سِري کمېټې ته ورکړی دی، راغلي دي چي په لالپوره کي د مومندو قومي مشر سعادت خان د جنرال پالک پر قوې باندي حملې کړي او له ډېر مقاومت څخه وروسته بیرته غرونو ته تښتېدلی دی. (پېپرز مکتوب، ۲۶۴)

سعادت خان مومند له لویه سره د انګرېزانو د مداخلې مخالف وو او د هغوی ګوډاګی پاچا شاه شجاع یې نه مانه. انګرېزانو هغه لیري کړ او پر ځای باندي یې د هغه تربور طره باز خان ته قدرت وسپاره. طره باز خان د انګرېزانو وفادار ملګری وو او د جنرال سېل له محاصره سوي قوې سره یې مرستو ته دوام ورکړ. د انګرېزانو له ماتي وروسته سعادت خان د خپل قام په مټ، له طره باز خان څخه قدرت ونیوی. انګرېزانو د سعادت خان پر ځای بیرته طره باز خان ته خاني وسپارله. البته د انګرېزانو له وتلو څخه وروسته بیرته حق و خپل حقدار ته ورسېدی او د مومندو قام بیرته خپل واک سعادت خان ته وسپاره.

که څه هم چي په کابل کي خو د شاه شجاع حکومت هسي هم تش په نامه اداره وه خو د اپرېل پر پنځمه د هغه له وژل کېدلو سره دا تش په نامه مرکزیت هم له منځه ولاړ او په کابل کي د مشرانو تر منځ د قدرت پر سر شخړي پیل سوې. اکبر خان هم تر قیامته پوري د جنرال سېل د قوې محاصرې ته دوام نه سو ورکولای. هغه ته په څلورو میاشتو کي له کابل څخه هیڅ مرسته را و نه رسېدله او له هره پلوه له ستونزو سره مخامخ وو. که نه نو د جنرال پالک قوې به هم د خپل ګورنر جنرال د توصیو عملي کولو ته فرصت نه وای پیدا کړی.

البته ډېر داسي قومي مشران موجود ول چي تر پایه پوري د انګرېزانو زور او زر ته تسلیم نه سول. له هغه لیک څخه چي محمد شاه خان غلجي کپتان میګریګور ته لیکلی دی، په ځرګنده ښکاري چي میګریګور له هغه څخه غوښتنه کړې ده چي بندیان د جنرال پالک کمپ ته واستوي او په بدل کي به انعام تر لاسه کړي خو محمد شاه خان غلجي منفي جواب ورکړی دی او ورته لیکلي یې دي چي تاسي مهرباني کړې وه چي زما سره مو د دوستۍ اظهار کړی او جنرال پالک ته مو د انعام په بدل کي، د بندیانو د سپارلو غوښتنه کړې وه خو زه باید دونه درته ووایم چي نمک حرامي نه ستاسي په مذهب او نه زما په مذهب کي روا کار دی. زه به بندیان سردار محمد اکبر خان ته سپارم او هغه به یې د خوشي کولو په برخه کي فیصله کوي. تاسي د بندیانو د خوشي کېدلو په برخه کي له سردار سره تماس ونیسی او ما ته به ولیکئ چي زه سردار ته څه ووایم. (پېپرز مکتوب نمبر: ۳۹۹)

د سېل قوه له څه باندي څلورو میاشتو راهیسي محاصره وه او له هره درکه، په تېره بیا د خوراکي

موادو له اړخه تر سخت فشار لاندې وه. د اپرېل پر لومړۍ نېټه يې عسکرو په يوه ناڅاپي حمله کې د اکبر خان د قوې هغه پنځه سوه پسونه او اوزګړي کمپ ته ننه ايستل چې د انګرېزانو له ګارنيزون سره نيژدې يې څر کاوه. د کمپ دننه محاصره سوو عسکرو ته دې غيبي مرستي ډېر لاس ورکړ. د ګارنيزون عسکر په غوښو ماړه سول او څو ورځي وروسته يې د جنګ له پاره جسماني قوه پيدا کړه.

د اپرېل پر شپږمه هم د اکبر خان له کمپ څخه داسې رپوټ را ورسېدی چې د جنرال پالک قوې د خيبر په دره کې د اپرېديو له لاسه ماته خوړلې او پالک بېرته پېښور ته پر شا سوی دی. ضمناً په کابل کې د يوه بل انقلاب په باره کې هم رپوټونه را ورسېدل او ويل کېدله چې اکبر خان خپل کمپ ټولوي او کابل ته ځان رسوي. جنرال سېل جنګي شورا را وبلله او د سبا له پاره يې د حملې د پيل کولو فيصله وکړه. د اپرېل پر اوومه يې د اکبر خان پر قوه باندې له دريو خواوو حمله پيل کړه. د اکبر خان قوې چې د دې ناڅاپي حملې انتظار يې نه درلود، له څو ساعته سخت مقاومت او انګرېزانو ته د تلفاتو اړولو څخه وروسته ماته وکړه. د جنرال سېل د کمپ څخه په رسېدلي رپوټ کې ويل سوي دي چې د حملې په سبا د اکبر خان قوې د لغمان پر لور حرکت وکړ او دوی ته د نورو غنيمتونو تر څنګ هغه څلور توپونه هم لاس ته ورغلل چې افغانانو له انګرېزانو څخه له کابل څخه د وتلو وروسته په لاره کې غنيمت کړي وه. د انګرېزانو رپوټونه وايي چې د اکبر خان له ماتې وروسته د جلال آباد ښار او شاوخوا سيمه د دوی لاس ته ورغله او افغانانو ته درانه تلفات ورسېدل. (کې، ص: ۳۴۴)

جنرال پالک په پېښور کې له تقريباً دوو مياشتو تم کېدلو او د خيبر په دره کې له ننوتو وروسته، د مې په مياشت کې جلال آباد ته ورسېدی. دا وخت د اکبر خان قوې ماته کړې او اکبر خان کابل ته رسېدلی وو او پالک د ګورنر جنرال ايلينبرا د هدايت سره سم له جلال آباد څخه تر کابل پوري پرتو افغانانو ته د سزا ورکولو له پاره، تياري ته منتظر سو.

د ګورنر جنرال دفتر جنرال پالک ته هدايت ورکړی وو چې افغانانو ته داسې سخت ګوزار ورکړي چې د هغوی په هيواد کې زموږ پوځي قوت او اعتبار بېرته را ژوندی کړي. پالک ته د دغه راز سخت ګوزار د وخت او ځای د انتخاب اختيار ورکړه سوی دی چې هر ځای يې زړه غواړي هلته افغانانو ته يو ګوزار ورکړي. (پېپرز مکتوب نمبر: ۲۳۲)

د ګورنر جنرال دفتر د جون پر لومړۍ نېټه يو ځل بيا جنرال پالک ته هدايت ورکړ چې له

افغانستانه د راوتلو څخه مخکې باید دښمن ته په یوه مناسب فرصت کې، یو سخت ګوزار ورکړي او څرنګه چې وضع داسې ښکاري چې ته بنايي د اکتوبر تر میاشتې پورې هلته پاته سې نو ګورنر جنرال تا ته هدایت درکوي چې دښمن یوه داسې ځای ته راولې چې هلته یوه موثره ضربه ورکړای سې. ته د هر کار د کولو له پاره چې لازم او ضروري یې وبولې، بشپړ واک او صلاحیت لرې. (پیپرز مکتوب نمبر: ۳۵۰)

له هغو لیکونو څخه چې جنرال پالک، له جلال آباد څخه د ګورنر جنرال دفتر ته لېږلي دي، ښکاري چې پالک هره ورځ د غلجیو له مقاومت سره مخامخ وو. د هغه د اکمالاتو پر قافلو باندې یې حملې کولې او په موادو بار اوښان به یې ورڅخه بېول. پالک مجبور وو چې له لویو کلیو څخه تر عسکري کمپ پورې امنیتي پوستې جوړې کړې او د لویو قومي مشرانو او خانانو کلاوې، د پوځي پوستو له پاره اشغال کړې. (مکتوب ۴۴۰)

پالک د مې له میاشتې څخه د سپټمبر تر میاشتې پورې په جلال آباد کې تم سو. په دې موده کې یې یوه شپه هم پر کراره تېره نه کړه او د غلجیو افغانانو سره یې واړه او لوی جنګونه وکړل. پالک تقریباً هره ورځ، د خپلو عملیاتو په باب د ګورنر جنرال دفتر ته اطلاعات ورکول او د خپلو جنګي جنایاتو په باره کې یې، چې ګورنر جنرال یې اجازه ورکړې او حتی توصیه یې ورته کړې وه، مفصل رپوټونه ورکول. د جولای پر نهه ویشتمه یې ولیکل چې شینواري پرون کرې ورځ د خپلو مړو په ټولولو لګیا ول. ده ولیکل چې یقین لري د شینوارو د قوم دومره بشپړه ماته، دومره مړي او د دومره کلاګانو تباهي به ډېر ګټور اثر وکړي. (مکتوب ۴۴۷)

## کابل د انګرېزانو له وتلو وروسته

سردار محمد اکبر خان، د هغه د اکا زوی سردار سلطان احمد خان یا سلطان جان، محمد شاه خان غلجی او د هغه ورور دوست محمد خان د انګرېزانو پوځ بدرګه کړ. محمد اکبر خان او سلطان جان په جلال آباد کې د انګرېزانو له محاصره سوي پوځ سره په جنګونو لګیا سول او محمد شاه خان ته یې د انګرېزي یرغملو د ساتلو وظیفه وسپارله.

په کابل کې، لکه څرنګه چې انتظار یې ایستل کېدی، د انګرېزانو له وتلو سره سم، د قدرت پر سر داخلي اختلافات او په وروسته کې جنګونه پیل سول. هراتي لیکي چې د انګرېزانو د چوڼۍ له

ختمېدلو په سبا واړه او لويان، د بالاحصار پر شاوخوا باندي را ټول سول او غوښتل يې چي بالاحصار هم د انګرېزانو د چوڼۍ په ډول چور کړي. ځينو کسانو شاه شجاع ته وويل چي تر څو پوري امين الله خان لوګري ستا اطاعت و نه کړي؛ خلک له شورش څخه لاس نه اخلي. شاه شجاع پوه سو چي خاص او عام يې د انګرېزانو استازی بولي نو بله چاره يې و نه ليده او د بارکزيو دښمني دومره ژر ختمېدونکې نه ده نو د امين الله خان او نورو مشرانو له استازو سره يې خپل زوی شهزاده شاه پور ملګری کړ او د امين الله خان کور ته يې واستاوه. شهزاده شاه پور څو ورځي او شپې د امين الله خان په کور کي د غلجيو، درانيو او شيعه ګانو له مشرانو سره خبري وکړې او هر يوه ته يې، د خپل مقام او قدرت سره سم خلعتونه او انعامونه ورکړل. امين الله خان يې د شاه شجاع طرفدارۍ ته وهڅاوه او له محمد زمان خان سره يې دوه لکه روپۍ ومنلې. نواب محمد زمان خان په لومړي سر کي پيسې و نه منلې او ويل چي هغه په خپله خليفه دی او شاه شجاع بايد له بالاحصار څخه ووځي. خو وروسته يې وليدل چي زور يې نه رسېږي نو د شاه شجاع اطاعت يې ومانه. (هراتي، ص: ۱۴۰-۱۴۱)

لکه څرنګه چي هم د انګرېزانو مشرانو او هم د افغان ولس مشرانو ته معلومه وه چي شاه شجاع، د انګرېزانو له مرستي او پوځونو پرته، يوه هفته هم خپل تخت نه سي ساتلای؛ په خپله شاه شجاع هم په دې پوهېدی چي هغه په يوازي سر او په خپل تدبير د قدرت د ساتلو نه دی. هراتي وايي کله چي شاه شجاع د غلجيو، درانيو، شيعه ګانو او کوهستانيانو له مشرانو سره روغه جوړه وکړه او هر يوه ته يې منصبونه او انعامونه ورکړل او زړه يې يو څه بېغمه سو نو له ميګريګور سره يې تماس ونيوی او هغه ته يې وويل چي مفسدين مي راضي کړي دي او تاسي په بېغمه زړه خپل کار ته دوام ورکړئ. کله چي محمد اکبر خان د شاه شجاع او مشرانو له دې روغي جوړي څخه خبر سو نو د کابل خلکو او مشرانو ته يې پيغام واستاوه او هغوی ته يې وويل چي که شاه شجاع په رښتيا هم د انګرېزانو ګوډاګی نه وي نو له خپلو قواوو سره يو ځای دي د جلال آباد پر لور حرکت وکړي څو د انګرېزانو وروستي قوتونه په ګډه له وطنه وشړو. شاه شجاع پوهېدی چي که د جلال آباد پر لور حرکت وکړي او ولسونه ورسره ملګري سي، هسي نه چي په جلال آباد کي د انګرېزانو پراته عسکر روحيات له لاسه ورکړي او ميدان خوشي کړي نو يې خلکو ته وويل چي لومړی بايد اکبر خان له جلال آباد څخه کابل ته راسي او له دغه ځايه به په جلال آباد کي د انګرېزانو له قواوو سره خبري پيل کړو او په کراره به يې وباسو. (هغه کتاب ۱۴۱-۴۲)

په جلال آباد کې د انګرېزانو محاصره سوې قوه، که څه هم چې د عسکرو شمېر یې دوه نیم زرو ته نه رسېدی، هغسې چې اکبر خان او نورو غازیانو یې فکر کړی وو، کمزورې نه وه او په دوو میاشتو کې یې د افغانانو ډېرې زیاتې حملې په شا تمبولې او سخت تلفات یې هم ور اړولي وه. په جلال آباد کې د انګرېزانو له قوې سره نه یوازې د توپچې ښه قوه ورسره وه بلکې د جنرال سېل، کرنل مونتیت، کرنل ډیني او میګریګور په څېر غښتلي او د عسکرۍ او جنګ په کار پوه او په میدانونو کې ازمېیل سوي افسران ورسره وه او په مقابل کې یې له افغانانو سره زیاتره یوازې قوي روحیه او د جهاد جذبه ملګرې وه. البته جنګي روحیه ډېره مهمه ده خو د جګړې په میدان کې د روحیې تر څنګ عصري وسلو او جنګي کمال ته هم اړتیا وي او یوازې په روحیه ګوزاره نه کیږي.

د جلال آباد له محاصره سوي قوې سره مهمات پر ختمېدلو وه او له ډېرې مودې راهیسې یې عسکرو په نیمایي استحقاق ګوزاره کړې وه خو د عسکرو له پاره یې دغه د نیمایي استحقاق خوراکي مواد هم دومره لږ وه چې دوې هفتې یې هم کفایت نه کاوه. جنرال سېل پرله پسې له پېښور څخه د مرستو غوښتنې کولې. دغه راز اکبر خان هم د جنګ د دوام له پاره، نه مهمات برابرولای سوای او نه یې دونه پیسې درلودلې چې جنګ ته تر نامعلومې مودې پورې دوام ورکړي، ځکه یې نو کابل ته د مرستو د ور استولو خواستونه کول.

په کابل کې د مشرانو تر منځ د اختلافاتو او دښمنیو رپوټونه انګرېزانو ته رسېدل او ګورنر جنرال سِرې کمپتې ته په ډېره خوشالۍ رپوټ ورکوي چې د کانلي له لیکونو څخه ښکاري چې په کابل کې د ډلو تر منځ اختلافاتو ډېر زور اخیستی دی او د جلال آباد د قوې د ماتولو له پاره اکبر خان ته مرستې نه سي لېږلای او هغه په خپلو لږو قواوو او مهماتو سره نه سي کولای چې د جلال آباد د قوې محاصرې ته دوام ورکړي. (پېپرز مکتوب ۲۱۹)

شاه شجاع له بالاحصار څخه د راوتلو زړه نه سو کولای؛ ځکه چې په هیچا یې باور نه درلود. خبره یې نن او سبا ته کوله او ټوله ورځ یې جلال آباد او ګورنر جنرال ته په لیکونو تېرېدله. هغه فکر کاوه چې پیسې د ټولو ستونزو د حلېدلو کیلي ده او په هر لیک کې یې ویل چې ارمان! پیسې یې لرلای، ټول کارونه به سم سوي وای.

شاه شجاع د جنورۍ پر یوویشتمه په جلال آباد کې سیاسي استازي کپتان میګریګور ته ولیکل چې ته ښه خبر یې، دلته څه پېښ سوه. سره له هغه چې ما انګرېزانو ته د دې خلکو د خیانت په باره کې خبرداری ورکړ؛ دوی زما پر خبرو غوږ و نه نیوی او زما د دښمنانو بارکزیو مشورې یې ومنلې او

هغوی کندي ته واچول. د بارکزيو اصلي هدف دا وو چي تاسي ما ته بدبين کړي او درته ووايي چي شاه شجاع له ښورښيانو سره لاس لري او ولس ته يې ويل چي شاه شجاع او انګرېزان دواړه يو دي. دوی زه په دغه توګه بد نامه کړم. د قسمت لکه چي دغسي فيصله وه. ده وليکل چي ما خو له انګرېزانو څخه څو ځله وغوښتل چي په بالاحصار کي دېره سي خو دوی زما مشوره و نه منله. دوی ووتل او زه محاصره وم. ما خپلي ټولي پيسې مشرانو ته په انعامونو او رشوتونو ولګولې. خدای دي وکړي چي دوی ما ته اوس هم وفادار پاته سي.



کابل بالاحصار ۱۸۸۰ع

عکاس: جان بورک

شاه شجاع وليکل چي دا خلک له ما پرته بل هيڅوک نه سي اداره کولای. انګرېزانو ته زما وفاداري او دوستي پخوا هم معلومه وه او اوس خو ټولي نړۍ ته د لمر په شان څرګنده ده. که ما خزانه درلودلای او دا د ژمي مياشتي مي ځان په بالاحصار کي ټينګ کړی او تقويه کړی وای نو ته باور وکه چي بيا مي هيڅوک ليري کولای نه سي. ده وليکل چي د دې هيواد خلک له پيسو پرته نه خپلېږي. خدای دي زما د زړه دغه آرزو پوره کړي. له دې څخه مخکي مي څلور لکه روپۍ لګولي وې او اوس مي دوه لکه نوري ولګولې او اوس هيڅ شی را پاته نه دي. که زه د دې خلکو د طرفدار

کولو له پاره یو څه پیسې ولرم نو د خدای په زور به ټول کارونه زما له آرزو سره سم وچلېږي. ته به وګورې چې زه په څو میاشتو کې سپاره او پیاده عسکر برابرولای سم. خدای دي زما د زړه دغه آرزو پوره کړي.

(کې، دوهم جلد، ص: ۳۶۱-۳۶۲)

شاه شجاع د فبروري پر دوهمه ګورنر جنرال لارډ اکلینډ ته یو اوږد لیک واستاوه او په هغه کې یې هم تقریباً مخکني لیک ته ورته موضوعات طرحه کړي وه. ده لیکلي وه چې زما دوسته، تا ته دي معلومه وي چې زه پاچا یم او خپل خلک ښه پېژنم. له هر ډول خلکو سره باید د هغوی له فطرت سره سم سلوک وسي. له ځینو سره په مهرباني او له ځینو سره په سختۍ.

ځیني شریرو خلکو زما له ویري، د سر ویلیم مکناټن او سر الیکزانډر برنس لمني ته لاس واچاوه او ما دوی ته څه نه سوای ویلای. دوی خلک ښورښ ته ولمسول. په تېرو دوو درو کلونو کې ما صاحبانو، په تېره بیا مکناټن ته چې ما ته یې تر خپل ژوند زیات ارزښت درلود، له ځان سره په مساوي سترګه وکتل او د دوی له خوښي پرته مي هیڅ کار نه کاوه.

دا د خدای اراده وه چې داسي څه یې پېښ کړل چې زما آرزو نه وه او خدای دي بیا داسي نه پېښوي. کشکي زما دښمنان او د هغوی کورنۍ زما د دوستانو پر ځای تباه سوي وای.

شاه شجاع په دې لیک کې له ګورنر جنرال او ټولو انګرېزانو سره خپل اخلاص ښودلی او اکبر خان، مشران او افغانان یې په ډېرو بدو نومونو یاد کړي دي. په پای کې وایي چې ټول مسلمانان ستاسي له کبله زما سره دښمنان سول او ما ستاسي په خاطر درې میاشتي خواري وګاللې او په پای کې مکناټن موافقه وکړه چې ټول هیواد محمد اکبر ته وسپاري او ما ته له کاله یو لک روپۍ او یا په هندوستان کې څلور لکه روپۍ ومني. مګر زه پوهېدلم چې که دوی له چوڼی څخه حرکت وکړي، ټول به تباه سي او هغسي هم وسوه.

شاه شجاع په پای کې لیکلي دي چې زما او ستاسي تر منځ نه اختلاف موجود دی او نه به موجود سي. کله چې ما ولیدل چې پېښي کومي خوا ته ځي نو مي له اکبر څخه د خلکو د راګرځولو او د ځان د طرفدار کولو له پاره ډېري زیاتي پیسې ولګولې. مګر زه اوس پیسې نه لرم او هیڅ نه سم کولای. (هغه کتاب، ص: ۳۶۳-۳۶۶)

شاه شجاع له دې څخه وروسته میګریګور ته درې څلور نور لیکونه واستول. یو لیک یې د

ګورنر جنرال سکرتر ښاغلي کلرک ته واستاوه او په ټولو کي یې د پیسو غوښتنه وکړه. په پای کي د مارچ پر نهمه کپتان میګریګور شاه شجاع ته ولیکل چي ته فقط یوه میاشت نور هم ځان په بالاحصار کي ټینګ کړه او ټول کارونه به ستا له آرزو سره سم سر ته ورسېږي. ته آرام وکه. د جنرال پالک او سیکانو قواوي پېښور ته را رسېدلي دي او ښايي موږ ته نیژدې راغلي وي. نور به نو قاصد په خوله درته ووايي. (هغه کتاب، ص: ۳۷۷)

دا وخت کپتان جان کانلي او ځیني نور انګرېزي صاحب منصبان د نواب زمان خان په کور کي، د یرغملو په توګه اوسېدل. دوی د نواب له مېلمه پالني څخه دونه خوشاله ول چي ویل یې، هغه موږ د خپل اولاد په ډول نازولو. جان کانلي په هغو شپو ورځو کي، په کابل کي د مشرانو تر منځ د اختلافاتو او د کابل د عمومي ناکراریو په باب، میګریګور لو جنرال پالک ته ډېر په زړه پوري لیکونه لېږلي دي.

جان کانلي د جنوري پر اووه لسمه میګریګور ته ولیکل، داسي ورځ نسته چي سړی د خپل بدبخته پوځ په باره کي خواشینونکي خبرونه وا نه وري. ښار ته په سلهاوو زخمي یخ ځپلي، وږي او لوڅ عسکر راوستل کیږي. ډېره برخه یې اوزبکان رانیسي او ځیني یې موږ ته راځي او یا تر روغتون پوري رسېږي. په روغتون کي نور ځای نسته او دا بدبخته غریبان هره ورځ په ډلو ډلو مري. امین الله د دې ناروغانو مړیني ته خوشاله دی؛ ځکه چي دی هسي هم مرسته نه ورسره کوي او په دې برخه کي زموږ پر خواستونو باندي هم غوږ نه نیسي. نواب په بشپړه توګه د نایب په کنټرول کي دی او ځکه نو هغه هم هیڅ مرسته نه سي کولای. (کې، ص: ۳۵۵)

او وینسنټ ایري چي هغه هم دا وخت په کابل کي بندي وو، لیکي چي په سلهاوو هندوستانیان د کابل په لارو کوڅو کي د یوې ګولۍ ډوډۍ له پاره ګدایي کوي. نواب جبار خان او نواب زمان خان هغوی ته هره ورځ ډوډۍ ورکوي. په کابل کي دننه او دباندي د ټولو طبقو خلکو له اروپایي یرغملو او بندیانو سره دومره په انسانیت سلوک کاوه چي سړی حیران ورته پاتېږي. (ایري، ص: ۳۲۰)

کانلي د کابل د وضع په باره کي، په خپلو یاداښتونو کي لیکي چي نن سهار نواب، امین الله او ټول مشران په بالاحصار کي پاچا ته ورغلل. پاچا تر اوسه پوري دوه لکه روپۍ ورکړي دي او ژمنه یې کړې ده چي په لسو ورځو کي به یو لک روپۍ نوري ورکړي. نواب وزیر دی او امین الله نایب

دی. دوی ټولو په قرآن سوګندونه یاد کړل چي یو د بل ملګري به وي او د اسلام د رښتیني دین ملاتړ به کوي. نواب په وازه خوله او په عامه پاچا ته ښکنځل کوي. پاچا هم په عامه ټولو بارکزیو ته ښکنځل کوي. امین الله خان سوګند یاد کړی دی چي تر مرګه به د اعلیحضرت ملګری وي. وروسته یې په جومات کي سر لوڅ کړ او چي څه سوګندونه وه هغه یې ټول یاد کړل او وئې ویل چي د نواب حیثیت به د پاچا او د ټولي شاهي کورنی په مقابل کي وساتي.

کانلي لیکي چي ما ته پاچا څو پیغامونه را لیږلي او را ته ویلي یې دي چي هغه څکه خانانو ته درې لکه روپۍ ورکړې چي د هغوی په مقابل کي بې وسه دی او کله چي یو ځل د انګرېزانو لښکر را ورسېږي نو بیا به دی خپله لوبه کوي او داسي کار به وکړي چي ګټه یې هم ده ته او هم موږ ته ورسېږي. ما ته داسي را معلومېږي چي د ده زړه زموږ سره دی او فکر نه کوم چي بل ډول دي وي.

کانلي د جنوري پر څلرویشتمه ولیکل چي پاچا هره ورځ دربار کوي او ټول مشران حاضروي. دی داسي ښیي چي زموږ له حکومت سره یې ټولي اړیکي شلولي دي؛ مګر ما ته پټ پېغامونه را لېږي او راته وایي چي دی موږ ته بشپړه وفاداري لري. د هغه پوځ سره چي وایي له هندوستانه را روان دی، د مقابلې له پاره د یوې لویي قوې د جوړېدلو په باره کي خبري کیږي؛ مګر پیسې نسته. زموږ په مقابل کي مذهبي احساسات ډېر په جوش کي دي او که یو لوی پوځ را و نه لیږل سي، دا ټول مشران به زموږ په مقابل کي سره یو لاس سي.

کانلي لیکي چي موږ د خپل حکومت په پلان نه یو خبر. محمد اکبر پرله پسې د توپونو او مهماتو غوښتنه کوي؛ مګر هیڅوک بې تنخوا عسکرۍ ته تیار نه دي او د محمد اکبر خان له ورځ په ورځ زیاتېدونکي قدرت سره هر څوک حسادت ښیي. د ده د ډلي بارکزي مشران هر یو پر بل باندي بدګومانه دي. کانلي لیکي چي نواب زمان خان زموږ سره بې اندازې زیاته مهرباني کوي او په رښتیا یې زړه غواړي چي د برتانیې له حکومت سره ښې اړیکي ولري. له پاچا او محمد اکبر څخه بېرېږي او له هغو خانانو څخه بېزاره دی چي له ده سره یې سوګندونه کړي او بیا یې وغولاوه. په ښار کي زموږ پر ضد سخت احساسات را پارېدلي دي او که یو زورور پوځ دې هیواد ته و نه لیږل سي نو هر څوک به افغانستان ته زموږ له بیا ننوتلو سره مخالفت وکړي. (کي، ص: ۳۵۶-۳۵۷)

کانلي د فبروري پر پنځلسمه ولیکل چي نایب امین الله هغه توپونه چي ده ته سپارل سوي ول، تسلیم کړي دي او بارکزي اوس چنداني اعتماد نه پر کوي. دغه راز دوی له دې څخه اندېښنه لري چي شاه شجاع ځان ورځ په ورځ قوي کوي او که له بارکزیو سره دښمني و نه کړي نو لږ تر لږه

مستقل کیږي. پرون نایب د شاه له خوا، له نواب څخه وغوښتل چي خپل توپونه تسلیم کړي. نواب د هغه غوښتنه مستقماً رد کړه او وئې ویل چي تر څو پوري شاه شجاع خپل صداقت ثابت کړی نه وي، د هغه په دربار کي به حاضر نه سي...

کانلي وايي، ده اورېدلي دي چي شاه شجاع د بارکزیو په مقابل کي، د امین الله، پوپلزیو، شیعه ګانو او د کابل له ځینو مشرانو څخه یوه ډله جوړوي. په دې ډله کي د امین الله، عبدالسلام او سکندر په څېر کسان شامل دي چي زموږ سخت دښمنان دي او له دې ډلي څخه موږ هیڅ ګټه نه سو اخیستلای. کانلي ولیکل چي که شاه شجاع په دغه توګه زموږ له دښمنانو سره لاس ورکوي نو دا عمل يې خصمانه ګڼل کېدلای سي.

کانلي وايي په ښار کي عمومي عقیده پر دې ده چي وروستی پاځون شاه شجاع لمسولی دی. که څه هم چي زه د دې ادعا د اثبات له پاره کوم دلیل نه لرم خو دونه ویلای سم چي اعلیحضرت په دغه ښورښ کي یا مستقیم او یا غیر مستقیم لاس درلود... زما پېشنهاد خو دا دی چي یا تاسي ورته وواياست او یا ما ته هدایت راکړی چي پوه يې کړم چي یا باید زموږ له غوښتنو سره سم عمل وکړي او یا خپله لاره واخلي. دلته اوضاع دونه ګډوډه ده چي سړی هر څومره پوه وي، دا نه سي ویلای چي سبا به څه پېښېږي. کانلي لیکي چي دلته پرته له نفاق څخه بل هیڅ شی نسته؛ هر سړی پر خپل ګاونډي باندي شکمن دی. که زموږ لښکر را ورسېږي نو په پایتخت کي هر څه زموږ پر زړه دي. زه د پیسو د لګولو په برخه کي ستاسي اجازې ته منتظر یم. تر ټولو د مخه غواړم چي خپل کوربه نواب زمان خان ته یو غټ امتیاز تضمین کړم، څو یا زموږ پر خوا سي او یا بې طرفي غوره کړي. دی د قدر وړ او ریښتینی سپین ږیری دی او په وروستیو ویرجنو پېښو کي يې هیڅ لاس نه درلودی. غلام محمد خان هم په وروستي ښورښ کي لاس نه درلود.

کانلي د مارچ پر پنځمه مګریګور ته ولیکل چي د شاه شجاع زوی فتح جنګ پرون له اکبر سره د یو ځای کېدلو له پاره روان سوی دی. اوضاع ډېره ناکراره ده او کوهستانیان په خپلو منځونو کي سره جنګېږي... نواب اوس هم موږ ډېر نازوي مګر موږ بندیان یو. امین الله څو ځله هم په چم او هم په تهدید کوښښ وکړ چي موږ هغه ته وسپارل سو. زه یقین لرم چي دی غواړي موږ قتل کړي؛ خو د نواب له برکته موږ تر اوسه ساتلي یو. پاچا په بالاحصار کي ناست دی مګر هیڅ واک نه لري او ټول اختیارات له امین الله سره دي.

کانلي د مارچ پر اتلسمه جنرال پالک ته ولیکل چي دلته اوضاع د امکان تر سرحده پوري ناکراره ده. وړمه ورځ اعلیحضرت د نواب زمان خان د عسکرو قوماندان ته رشوت ورکړ او هغه له خپلو ټولو عسکرو سره بالاحصار ته ولاړ. نواب د هغه د بیرته تسلیمولو غوښتنه وکړه مګر چا ورسره و نه منله. پرون اعلیحضرت نواب ته احوال واستاوه او هغه ته یې وویل چي که بندیان امین الله ته سپارل کیږي نو دغه قوماندان باید د هغه کور ته ولېږل سي خو له نېکه مرغه چي نواب دا پېشنهاد و نه مانه... بالاحصار ته د نواب د قوماندان د تښتېدلو راهیسي په ښار کي ناکراري ده. دوکانونه تړلي دي او هر چا وسله اخیستې ده. زموږ پر ضد ذهنیت را پارېدلی دی. د بالاحصار دروازې نیمایي بندي دي او هر مشر خپل طرفداران راغونډ کړي دي. زموږ د کوربه پر شاوخوا باندي درې څلور زره کسان را ټول سوي دي. د بارکزیانو او سدوزیانو ډلي ځانونه تیاروي. پاچا ته چنداني څوک ورپاته نه دي. دی په امساک او کنجوسی ډېر مشهور دی او زموږ سره یې مشکوک ارتباط محبوبیت نور هم لږ کړی دی. نایب کوهستانیانو ته لیکلي دي چي په جهاد کي ورسره ملګري سي. که له پاچا سره یو څه مرسته و نه سي نو بالاحصار به لومړی ځای وي چي حمله ورباندي کیږي؛ ځکه چي هلته د چورولو له پاره ډېر څه موجود دي. (هغه کتاب، ص: ۳۵۸-۳۶۱)

د افغانانو ټولو لویو مشرانو له شاه شجاع څخه هره ورځ غوښتل چي د جلال آباد پر لور حرکت وکړي او په خیبر کي د انګرېزانو د قوي مخه ونیسي. شاه شجاع په مشرانو کي داسي د نفوذ او اعتبار خاوند طرفدار نه درلود چي د ده له رایي سره سم پوځي حرکت وځنډوي. بالاخره د کابل تر ټولو لوی روحاني مشر میر حاجي په ښار کي خېمه ووهله او د انګرېزانو پر ضد یې جهاد اعلان کړ. امین الله خان لوګري یې سمدستي ملاتړ وکړ او شاه شجاع یې حرکت کولو ته مجبور کړ. په دغه حال کي نواب زمان خان خپله مېرمن له مهر کړي قرآن سر، شاه شجاع ته ور ولېږله او له هغه سره یې قول وکړ چي نواب زمان خان به ستا له ملاتړ څخه لاس وا نه خلي. شاه شجاع به خرنګه له یوې خوا د ښځي تر پلو او هغه هم د نواب زمان خان مېرمن او له بلي خوا تر دومره زیاتو سوګندونو تېر سوی وای. ده ته نوره هیڅ پلمه پاته نه وه. یا یې باید له مشرانو سره ښکاره مخالفت پیل کړی وای چي د ده له پاره یې د ځان وژني معنا درلوده او یا یې باید له هغوی سره حرکت کړی وای. شاه شجاع دوهمه لاره غوره کړه او د اپرېل پنځمه یې د حرکت له پاره وټاکله. شاه شجاع د هغې ورځي په سهار حرکت وکړ خو د کمپ او بالاحصار تر منځ د نواب زمان خان زوی، شجاع الدوله او د هغه سره ملګرو شپېتو کسانو حمله ورباندي وکړه. شاه شجاع یې څو ډزه وویشت او ځای پر ځای یې

وواژه. د ده له وژل کېدلو سره د کابل په بحراني حالت کي بېخي بل فصل پیل سو او نوو پېښو، دسیسو او اړودوړ ته لاره خلاصه سوه. په دې توګه د شاه شجاع ژوند، چي ټول په حوادثو کي تېر سوی وو، بالاخره په حادثه کي پای ته ورسېدی؛ خو د ده د ملګرو انګرېزانو په شمول یې چنداني څوک غمګین نه کړل.

د شاه شجاع د وژل کېدلو خاصه انګېزه معلومه نه سوه او ځینو کسانو په خپله نواب زمان خان د هغه د قاتل محرک باله. خو سر جان کې، د کپټان جانسن له خولې چي په کابل کي بندي وو، وایي چي نواب زمان خان تر بل هر چا خوابدی وو او سوګند یې یاد کړ چي بیا به شجاع الدوله خپل کور ته پرې نه ږدي او هیڅا ته به اجازه ور نه کړي چي د ده په مخ کي د هغه نوم یاد کړي. (کې، ص: ۳۸۰)

شاهي کورنۍ د قاتل د پیدا کېدلو او محاکمه کېدلو غوښتنه وکړه او ویل یې چي تر څو پوري قاتل په سزا نه وي رسېدلی، شاه شجاع به خاورو ته و نه سپاري. ملایانو د قاتل د سنګسارېدلو فتوا ورکړه خو امین الله خان مداخله وکړه او وئې ویل چي دا د سزا ورکولو وخت نه دی او اوس باید چي ټول کسان د فرنګیانو پر ضد سره یو موټی سي او خپلي ټولي دښمني هېري کړي. (هغه مخ)

سر جان کې د شاه شجاع د شخصیت په باره کي لیکي: "دی د خدای یو غریب بنده وو چي چنداني ښه صفتونه یې نه درلودل خو دونه انصاف باید وکړو چي که د ده پر ځای یو غښتلی او بهتره څوک واکمن وای، هم یې د ده په شرایطو کي تر دغه اضافه کار نه سوای کولای. شاه شجاع له ډېره وخته خپل حالت او موقف ته حیران وو. دی د ګوډاګي له حالت څخه ستړی وو او ویل به یې چي یا خو په رښتیا پاچا وای او یا بیرته لودیانې ته تللی وای او باقي ژوند یې په ارامه تېر کړی وای. ده به ویل چي په افغانستان کي ټول ښه کارونه مکناټن کړي دي او چي بد کارونه سوي دي دا هم د مکناټن کار دی. ځکه چي ده په خپله هیڅ کار نه دی کړی. هغه اجراآت چي د خلکو نه وه خوښ، هغه د ده په نامه کېدل. دی مجبور وو چي هغه په ظاهره تائید کړي، په داسي حال کي چي په زړه کي به ورسره مخالف وو. ده لیدل چي شاوخوا خطرونو محاصره کړی دی مګر د هغوی د رفع کولو هیڅ وس یې نه درلود. ده به ویل چي زه صفر وم او د هیڅ کار د کولو واک مي نه درلود خو اوس ټول پېغورونه لا هم راته متوجه دي. " (کې، ص: ۳۸۷-۳۸۸)

سر جان کې لیکي چي د شاه شجاع په باره کي به ډېر ناحله سوالونه پاته وي چي یو له هغو

ښځه یې موږ ته د وفادارۍ خبره ده، چې هر وخت مشکوکه وه. هغه چې په کابل کې یوازې پاته سو نو پر له پسې یې د برتانیې حکومت ته په ډېر تلوار خطونه لیکل او لېږل، چې چنداني مضمون او محتوا یې نه درلوده. هغه په هر لیک کې د پیسو غوښتنه کوله او ویل به یې چې که یې پیسې لرلای نو ټول مشکلات به حل سوي وای. خو د ده مرگ دا څرگنده کړه چې دی څومره حریص وو؛ ځکه په هغه ورځ چې دی قتل سو نو ولیدل سول چې ده د مرگ په وخت کې شل لکه روپۍ او ډېر زیات قیمتي جواهرات درلودل. (هغه کتاب، ص: ۳۸۱)

## فتح جنگ او د کابل عمومي وضع

شهزاده فتح جنگ دا وخت په ده خدایداد کې وو او په ډېره وارخطایي یې د بالاحصار پر لور حرکت وکړ. د بالاحصار دروازې بندې وې او ده ځان د محمود خان بیات کلا ته ورساوه. محمود خان او د هغه زوی غوښتل چې نواب زمان خان ته یې وسپاري خو شهزاده شاهپور له امین الله خان ښخه د مرستې غوښتنه وکړه او د امین الله خان، خواجه خانجي دراني او نورو مشرانو په مرسته یې فتح جنگ د محمود خان بیات ښخه وژغوری او بالاحصار ته یې ورساوه. په سبا ورځ امین الله خان، دراني او کابلي خانان، میر حاجي او د قزلباشو مشران بالاحصار ته حاضر سول او شهزاده فتح جنگ ته یې د پاچهۍ مبارکي ورکړه. (هراتي، ص: ۱۴۶-۱۴۷)

فتح جنگ په دې پوهېدی چې د انگرېزانو له مرستې پرته قدرت ته دوام نه سي ورکولای ځکه چې ده لږ تر لږه د خپل پلار هوښیاري او طرفداران هم نه درلودل. فتح جنگ پوهېدی چې انگرېزان په نن او سبا کې د کابل پر لور حرکت کوي او دا ځل به له ډېر لوی پوځ سره راځي؛ ځکه یې پر تخت باندې له کښېنستلو سره د جلال په کمپ کې سیاسي استازي کپتان میگریگور ته یو مفصل لیک واستاوه. هغه په دې لیک کې میگریگور ته وویل چې د ده پلار له انگرېزانو سره د دوستۍ په گناه ووژل سو. که هغه د انگرېزانو له دښمنانو سره لاس یو کړي وای نو چا به داسې بد نه وای ورسره کړي. فتح جنگ هم ولیکل چې زما پلار خپلې ټولې پیسې د دوستانو په پیدا کولو ولگولې خو خلک له دې غوښتنې ښخه نه تېرېدل چې هغه باید جلال آباد ته حرکت وکړي او د انگرېزانو پر محاصره سوي پوځ باندې حمله وکړي. شاه شجاع ورسره و نه منله او هغوی هم کافر وباله. فتح جنگ ولیکل چې دی هم د خپل پلار په څېر د انگرېزانو دوست او نېکخواه دی. دوی

زه پر تخت کښېنولم مګر زه په دې تخت خوشحاله نه یم. که خدای ما پر تخت کښېنوي؛ که دا وطن بیرته د انګرېزانو لاس ته ورسي او دوی زما سره د خپل پلار د کسات په اخیستلو کې مرسته وکړي نو زه به ډېر خوشاله یم. فتح جنګ ولیکل چې شاه شجاع خپل ژوند او شتمني د انګرېزانو د دوستۍ قرباني کړل اوس که دوی په رښتیا هم د هغه دوستان وه نو باید چې د هغه له کورنۍ سره ښه وکړي. که ستاسي پوځ په څو ورځو کې کابل ته را و نه رسېږي نو دوی به د شاه کورنۍ له منځه یوسي. ما ته ژر لیک را ولېږه او راته ووایه چې زه څه وکړم او د شاه کورنۍ څه وکړي. فتح جنګ ولیکل چې خلک را ټول سول او زما څخه یې وغوښتل چې له دوی سره جلال آباد ته ولاړ سم. ما ورته وویل چې دوی باید لومړی زما د پلار د مرګ کسات واخلي، بیا به زه هم جلال آباد ته ورسره ولاړ سم. مګر زه بې وسه یم او په ډېره تلوسه ستا د لیک انتظار باسم. راته ووایه چې زه څه وکړم. اوس دې خلکو ته ماته ورکول ډېر اسانه کار دی؛ ځکه چې دوی سخت سره بې اتفاقه دي. ډېر ژر د کابل پر لور حرکت را وکړئ. (کې، ص: ۳۳۰-۳۳۲)

نواب محمد زمان خان د فتح جنګ پاچهي و نه منله او ډېر ژر دواړي خواوي د مقابلې په میدان کې سره مخامخ سوې. د مې پر لومړۍ نېټه امین الله خان او فتح جنګ ډزي پیل کړې او په ټول ښار کې اړودوړ پیل سو. امین الله خان د مې پر دوهمه د محمد زمان خان طرفدار میر حاجي ونیوی او بالاحصار ته یې بوت. میر حاجي هم د کابل د خلکو او هم د کوهستانیانو مرشد وو او امین الله خان په دې کار سره ټول خلک په غوسه کړل. خلکو یې پر کور باندي حمله وکړل. کور یې چور کړ، نوکران یې ور قتل کړل او کور یې وسوځاوه. امین الله خان په بالاحصار کې پناه واخیستله او فتح جنګ هم هرکلی ورته ووایه. فتح جنګ غوښتل چې په دې توګه د امین الله خان طرفداران خوشحاله وساتي او خپله جبهه قوي کړي او دغه راز یې غوښتل چې هر کله جنرال پالک کابل ته را ورسېږي نو دی به د بالاحصار دروازې ورته پرانیزي او امین الله به لاس تړلی ور ورسپاري؛ ځکه چې نور به د هغه ملاتړ ته اړتیا نه وي. نایب امین الله خان پوهېدی چې په ډېر خطرناک او نازک حالت کې دی نو اعلان یې وکړ چې ځان به انګرېزانو ته تسلیم کړي؛ پربېرده چې هغوی یې غرغره کړي. هغه له بالاحصار څخه دباندي یې د بارکزیو په شان زوروز دښمنان درلودل چې تر هر چا خطرناک ول. (کې، دوهم جلد، ص: ۵۳۲-۵۳۳)

له فتح جنګ سره په بالاحصار کې پنځه زره عسکر ورسره وه او د مهماتو، خوراکي موادو او پیسو یې هیڅ کمی نه وو. پر ښار باندي یې له بالاحصار څخه د ګولیو باران جوړ کړ. اکبر خان

کپتان میکنزي له جنرال پالک سره د خبرو له پاره جلال آباد ته واستاوه. داسي ښکاري چي هغه له جنرال پالک څخه قانع کوونکی جواب را نه ووړ. میکنزي یې د دوهم ځل له پاره هغه ته ولېږی او په خپله د پوټینجر او ټروپ سره کابل ته ستون سو.

اکبر خان په کابل کي داسي آوازه ګډه کړه چي له جنرال پالک سره یې خبري سوي او ټړون یې ورسره لاسلیک کړی دی او هغه د پاچا په حیث پېژندلی دی. په دې توګه یې د فتح جنګ په طرفدارانو کي بې اتفاقي واچوله او ډېر هغه کسان چي تر دغه ګړي پوري بېطرفه وه، د اکبر خان خوا ته واوښتل. (کې، ص: ۵۳۳-۵۳۴)

سر جان کې لیکي چي موهن لال د مې پر نهمه میګریګور ته ولیکل چي تېره شپه خان شیرین خان راغی او راته وئې ویل چي بارکزي دی مجبوروي چي له دوی سره ملګری سي او د فتح جنګ سره مخالفت اعلان کړي. ده وویل چي که زه دا کار وکړم نو بیا خو به تباه سم. نو غواړي چي خپلي ښځي په اطرافو کي کلاګانو ته واستوي او بیا نو یا بالاحصار ته ولاړ سي او یا به په جلال آباد کي میګریګور ته ځان ورسوي. ده وویل چي فکر کوي د کابل ټول شیعه ګان به ورسره ملګري سي. موهن لال د مې پر لسمه په خپل یوه بل لیک کي وایي چي تېره شپه اکبر خان په خپله خان شیرین خان ته راغی او تر ډېرو خبرو وروسته یې خان شیرین خان په دې قانع کړ چي د فتح جنګ سره متحد سي. خو کله چي نواب زمان خان خبر سو نو سمدستي یې شیرین خان ته احوال ورکړ چي کله ما درڅخه وغوښتل چي له شجاع الدوله سره مرسته وکړه نو نه ته راغلې او نه دي خپل زوی ورته را واستاوه؛ اوس باید له اکبر خان سره هم ملګری نه سې. شیرین خان د نواب زمان خبره ورسره ومنله. موهن لال وروسته ولیکل چي کله اکبر خان د فتح جنګ سره د جنګ میدان ته داخل سو نو عبدالسلام له هغه سره خیانت وکړ او له اکبر خان سره یو ځای سو. اکبر خان هغه ته یو آس ورکړ او هیله یې ورڅخه وکړه چي خپل کلي ته ولاړ سي. دې کار د فتح جنګ طرفداران ووېرول او خپلي کلاوي یې له جنګه پرته خوشي کړې او په بالاحصار ننوتل. اکبر خان هغوی تعقیب کړل او یو توپ یې ورڅخه واخیست. اکبر خان په دې حمله کي پوټینجر هم ورسره اخیستی وو. (کې، ص: ۵۳۴-۵۳۵)

فتح جنګ یو ځل بیا میګریګور ته ولیکل چي د کابل د جنګونو علت دا دی چي ما غوښتل بارکزي او نور فساد پېشه او شریر کسان په داسي جنګونو سره لګیا کړم چي د خپل سر ګرولو ته خلاص نه وي او تاسي په اسانی سره، پرته له مقاومته کابل ونیسی. اوس زما پیسې ټولي ختمي سوي

دي او هيڅ راپاته نه دي. که تاسي ډېر ژر حرکت و نه کړی نو ډېر لوی فساد به پېښ سي، بارکزي به قدرت ونيسي او ستاسي د ملګري شاه شجاع کورنی به تباه سي. بيا به مو هيڅ شی لاس ته نه راځي او پښېماني به کوو.

د همدغه ليک د ليکل کېدلو په ورځ درې تنه سيدان او شيخان د شهزاده فتح جنګ مخي ته ودرېدل او د سردار له خوا يې د سولي پېشنهادونه ورته راوړل. دوی شهزاده ته وويل چي اکبر خان به په قرآن سوګند درسره وکړي چي غدر به نه کوي. فتح جنګ له يوې بلي خوني څخه قرآنونه را وغوښتل او سيدانو ته يې ور وښودل. په دې ټولو کي د بارکزيو، پوپلزيو، کابليو، شيعه ګانو او کوهستانيانو مشرانو لاسليکونه کړي وه او يوه وعده هم نه وه پر ځای سوې. د بارکزيو مشرانو ليکلي دي چي د شاهي کورنی دښمنان، د رسول صلعم دښمنان دي مګر بارکزيو زما پلار وواژه. که له اسمان څخه کوم بل قرآن نازل سوی وي نو بارکزي دي په هغه سوګند ياد کړي، ځکه چي په دغه قرآن بېحده زيات سوګندونه سوي او يو هم نه دی پر ځای سوی. سيدان رخصت سول او محمد شاه خان ته وظيفه ورکړه سوه چي له فتح جنګ سره خبري وکړي. فتح جنګ د دې پېشنهادونو او د خپل نظر په باب ميګريګور ته ليک واستاوه چي:

د دې ځای د اوضاع په باب به داسي درته وليکم. له هغي ورځي چي محمد اکبر خان کابل ته راغلی دی نو بارکزيو، غلجيو، کابليانو او شيعه ګانو په ګډه پر هغو مورچلونو باندي چي موږ جوړ کړي وه، حملې پيل کړي دي. ځيني مورچلونه يې زما د ساتونکو د کمزوری او ځيني يې زما د محافظينو د خيانت په وجه راڅخه ونيول. ټول سنګرونه د دښمنانو لاس ته ورغلي دي او موږ په محاصره کي يو. پرون محمد شاه خان راغی او له امين الله خان سره يې خبري وکړې. د دوی د خبرو نتيجه داسي وه: زه به د پاچا په توګه پېژندل کېږم. محمد اکبر خان به وزير وي او امين الله خان به د هغه نايب وي. تر دې وروسته محمد شاه خان زما حضور ته راوستل سو او زه مجبور سوم چي هغه ته خلعت ورکړم مګر زما د طرفدارانو سلا دا وه چي زه د دې موافقې منل د دوو يا دريو ورځو له پاره وځنډوم.

دوی ما ته څلور پېشنهادونه وکړل: لومړی دا چي زه به محمد اکبر خان د خپل وزير په حيث قبولوم، امين الله خان به د هغه نايب وي. دوی به يو پوځ جوړوي او له هغو انګرېزانو سره به جنګېږي چي کابل ته راځي. دوهم دا چي که زما خوښه وي، دوی به بېطرفه پاته سي مګر زه بايد له

انګرېزانو سره وجنګېږم. درېیم دا چي که زه قوت لرم نو له بارکزیو سره باید وجنګېږم او که نه وي نو باید چي خپله کورنۍ راسره واخلم او چي هر ځای ته مي زړه غواړي، هلته ولاړ سم.

داسي ښکاري چي امین الله خان، زموږ د کمزورۍ له امله، له هغوی سره راضي سوی دی او د محمد اکبر خان سره د خبرو له پاره له بالاحصار څخه تللی دی. دې پېشنهادونو زه حیران کړی یم او اوس نه پوهېږم چي څه وکړم. که زه محمد اکبر خان خپل وزیر کړم نو هغه به د انګرېزانو سره د جنګ له پاره تیاری وکړي او زه به مجبور یم چي خپل توپچي قوت د هغه په اختیار کي ورکړم او دا ډېر خطرناکه کار دی. که د دوی خبره و نه منم نو د فقید پاچا کورنۍ به بې عزته سي.

زه لکه چي هسي ښېځایه له جلال آباد څخه کابل ته ستاسي د پوځ د حرکت په انتظار یم. څلوېښت ورځي کیږي چي ستاسي پوځ له خیبر څخه را تېر سوی دی او تاسي له جلال آباد څخه حرکت نه دی کړی. ما کوښښ وکړ چي یاغیان سره بې اتفاقه کړم، څو انګرېزان کابل ته په راتللو کي له ستونزي سره مخامخ نه سي. که څه هم چي ما د موهن له لاري څو لیکونه درلېږلي دي او دې خوا ته مي ستاسي د حرکت کولو غوښتنه کړې ده؛ مګر ستاسي هیڅ درک نه دی معلوم سوی. ستاسي له دغه ډول ځنډ څخه خطرناکي پېښي منځته راتلای سي.

ډېره موده وسوه چي ما میرزا امین الله درلېږلی او شفاهي پیغامونه مي ورکړي دي، مګر تاسي جواب نه دی راکړی... که ستاسي د عاجل حرکت کومه تمه کېدلای سي نو زه به پر ځان باندي زحمت تېر کړم او په بالاحصار کي به ورته ټینګ سم او له یاغیانو سره به وجنګېږم. که تاسي ځنډېږی نو بیا به هدف نه سي تر لاسه کېدلای او هغه څه چي اوس په اسانه تر لاسه کېدلای سي، بیا په ډېر زحمت لاس ته نه راځي.

زه به نور څه درته ولیکم. (کې، ص: ۵۳۷-۵۳۸)

فتح جنګ جنرال پالک ته ولیکل چي تېره شپه بارکزیو د بالاحصار تر دېوال لاندي د ماین د الوزولو کار پیل کړی دی. زه نور هیڅ وس نه لرم. وسلې او مهمات راسره ختم سوي دي. زه په بحراني حالت کي یم که تاسي ژر ځان را و نه رسوی بالاحصار او تخت ټول د بارکزیو لاس ته لوېږي او هر څه به له لاسه ووځي او تاوان به یې تاسي ته ورسېږي.

د اکبر خان عسکرو د بالاحصار له دېوال سره د ماین د الوزولو کار په سمه طریقه نه وو کړی. یوه لویه چاودنه وسوه خو د دې پر ځای چي دېوال ونړوي، عسکرو ته یې تلفات واړول. له پاسه د

فتح جنگ عسکرو ډزي کولې او د اکبر خان طرفدارانو ته یې سخت تلفات واړول. موهن لال وایي د تلفاتو شمېر زرو تنو ته رسېدی.

د دې فاجعې په سبا سهار د مارچ پر اوومه اکبر خان پر بالاحصار باندي د لویو توپونو ډزي پیل کړې. د فتح جنگ هندوستاني او عرب عسکر چې ډېر یې له خپلو کورنیو سره په بالاحصار کي اوسېدل، له هغه څخه وغوښتل چې دوی پر خپلو کورنیو او ماشومانو باندي ویرېږي او باید چې له اکبر خان سره خبري پیل سي. فتح جنگ پوه سو چې نور نو مقاومت نه سي کولای او له وچه مجبوریته یې له اکبر خان سره روغي جوړي ته غاړه کښېښودله.



نایب امین الله خان لوگری

فتح جنګ د نایب امین الله خان، محمد شاه خان او قاضي سید احمد خان بالاحصاري په منځګړتوب دا ومنله چي دی به پاچا او اکبر خان به وزیر وي او په دواړو به په سلا او مشوره کارونه مخته وړي. اکبر خان دا فیصله ومنله او د قرآن مجید پر حاشیه باندي یې یوه عهد نامه ولیکله او فتح جنګ ته یې واستوله:

"په دې نېکمرغه وخت کي چي سلطان ابن السلطان والخاقان ابن الخاقان سلطان فتح جنګ شاه، زه د الله د درګاه بنده محمد اکبر خان بن امیر دوست محمد خان د وزارت په مقام سرلوړی کړی یم. نو د ده د زړه د تسکین له پاره په خپل ظاهر او باطن عهد کوم او د واحد او لا شریک عزوجل خدای او د هغه متعال د رسول محمد مصطفی او د ټولو پیغمبرانو او سترو څلورو یارانو او د پاکو امامانو رضوان الله علیهم په تقدس شاهدي ورکوم چي د ستایلي سلطان به د زړه له کومي په پاچهي منم او د هغه اطاعت به لازم بولم او او له ده پرته به هیڅ بل څوک د پاچا په حیث نه پېژنم او د دین او دولت له خدمته پرته به بل هیڅ کار نه کوم او د ده په خد مت کي به له سر او مال څخه تېر یم او داسي هیڅ کار به نه کوم چي د پاچهی له مقام سره وړ نه وي او د ستایلي سلطان د حکم تابع به یم او د هغه امر به په خپله او په لښکر او خلکو قبولوم بلکي لازم او واجب به یې بولم. او هر څوک چي سلطان ممدوح د پاچا په حیث نه مني، زه چي محمد اکبر بن امیر دوست محمد خان یم، د هغه د سر، مال او ناموس دښمن به یم او که چیري له سلطنت سره په سر، مال او ناموس د دښمنی اراده وکړم او یا د نورو په لمسون په اشاره او کنایه د پاچا له امر څخه سرغړونه وکړم او یا له هغه سره د خیانت کولو لاره غوره کړم نو زه دي د خدای تعالی او ملایکو په لعنت او د پیغمبر آخرالزمان او سترو اصحابو، د دین د امامانو او د شرع متین د مجتهدینو په غضب ګرفتار سم او که زه په خپل دغه اقرار باندي ټینګ و نه دربدلم نو د خدای تعالی له رحمت او د حضرت احمد مجتبی محمد مصطفی صلی الله علیه وآله وسلم له شفاعت څخه دي بې نصیبه سم فقط." دلته سردار محمد اکبر خان مهر او لاسلیک کړی دی.

له دې وروسته، امین الله خان او محمد شاه خان یوه ضمانت نامه ولیکله او فتح جنګ ته یې وسپارله. او د بالاحصار دروازې پرانیستل سوې. (کاتب، ص: ۱۸۴-۱۸۵)

(فیض محمد کاتب د خپل مشهور کتاب سراج التواریخ په (۱۸۷) مخ کي د شاه شجاع له بل زوي شاه پور سره د قومي مشرانو د یوې بلي عهدنامې متن هم رانقلوي. څرنګه چي کاتب دا دواړي عهدنامې د واقعات شاه شجاع له درېیم کتاب څخه چي محمد حسین هراتي لیکلی دی،

ټکي په ټکي راخيستی دي او ما يې د تاريخ په بل هيڅ کتاب کي متن نه دی ليدلی نو بايد چي د احتياط په قيد سره ولوستل سي.)

اکبر خان بالاحصار ته ننووت او د فتح جنگ يې بې اندازې درناوی وکړ. هغه ته يې وويل چي د ده يوازينی هدف د سدوزيو د کورنی او په خاصه توگه د فتح جنگ شاه نېکمرغي ده او دی په خپله د دې کورنی نوکر دی. فتح جنگ اکبر خان ته پيسې پېشنهاد کړې مگر هغه و نه منلې او کله چي يې خلعت ورته راوړ نو ده يې له اغوستلو څخه ډډه وکړه او فتح جنگ ته يې وويل چي تر څو پوري يې له نواب زمان خان سره حسابونه فيصله کړي نه وي، تر هغه به خلعت وا نه غوندي او کرار به نه کښېني.

په خپله د عهدنامې کلمات له هغې څخه مخکي وضع، د فتح جنگ بېچارگي او د قومي مشرانو تر منځ د بې اتفاقی او جنگونو سابقه دا ښيي چي دا عهدنامه او په هغې پوري ټولو تړلو اقداماتو بايد موقتي حيثيت درلودلی وي. ليفټينينټ آيرې د جون پر نهمه پر خپلو ياداشتونو کي ليکي چي "کپتان ميکينزي راته راغلی وو او د هغه له خولې خبر سوم چي فتح جنگ، د خپلي کمزوری او بېچارگی په وجه، د محمد اکبر خان او نورو مشرانو شرايطو ته غاړه ايښې ده او بالاحصار يې د پوپلزيو، بارکزيو، غلجيو او قزلباشو تر منځ وېشلی دی، چي د دې قومونو استازيتوب فتح جنگ، محمد اکبر، نواب زمان خان، محمد شاه خان او خان شيرين خان کوي. په خپله فتح جنگ حرم سرای ته تللی دی. دا يو عجيب ترکيب دی. دا ټول قومي مشران له يو بل سره د اختلاف او دښمنی سابقه لري او هر يو په دې تلاښ کي دی چي څرنگه به د فتح جنگ خزانه او جواهرات تر لاسه کړي. څو ورځي مخکي د دوو زړو نوابانو، نواب زمان خان او نواب جبار خان تر منځ ډېره سخته شخړه وسوه. نواب زمان خان، نواب جبار خان تر ږيره ونيوی او ورته ويل يې، ټول ته وې چي پرنگيان دي زموږ ملک ته راوستل او دا ټولي ستونزي ستا له لاسه را پېښي دي. د نواب جبار خان زوی پر نواب زمان خان باندي توپنچه را وايستله او د خپل پلار د سپکاوي بازخواست يې ورڅخه کاوه. اکبر خان ورته ناست وو او له خندا شين وو. " (آيرې، ص: ۳۲۵-۳۲۶)

لکه څرنگه چي انتظار يې ايستل کېدی، نواب زمان خان د فتح جنگ پاچهي و نه منله او اعلان يې وکړ چي ده ته ولس د پاخون په وخت کي پاچهي ورکړې ده. اوس بايد دی پاچا سي، عثمان خان وزير سي او اکبر خان ته د قواوو قوماندانی وسپارل سي. جنگ له سره پيل سو؛ مگر دې

جنګ دوه درې ساعته دوام وکړ. د نواب زمان خان زامن او د هغه طرفدار مشران ژوندي ونيول سول. د نواب کور چور سو او په پای کي معلومه سوه چي د زمان خان سره ملګرو قومي مشرانو ته، د فتح جنګ له خزانې څخه ډېري زیاتي پیسې ورکړل سوي دي. فتح جنګ ایله پوه سو چي له ده سره ډېر لوی خیانت سوی دی. (کې، ص: ۵۴۲-۵۴۵)

اکبر خان ډېر ژر د بالاحصار ټول حساس ځایونه اشغال کړل او فتح جنګ ته خالي نوم پاته سو. انګرېزي بندیان چي د نواب زمان خان په کور کي ډېر خوشحاله ول، د کابل د خلکو د پرله پسې غوښتنو او فشار په وجه، میر حاجي ته تسلیم سول. اکبر خان وروسته میر حاجي هم مجبور کړ چي د څلور زره روپیو په بدل کي یې هغه ته وسپاري. اکبر خان بندیان له ځانه سره په بالاحصار کي وساتل او ضمناً یې فتح جنګ مجبور کړ چي ټولي پیسې او جواهرات هغه ته تسلیم کړي.

ضمناً اکبر خان خپل بندیان له بدیع آباد څخه د کابل درې میلي ته، د لوګر د سیند پر غاړه، د یوه قزلباش مشر علي محمد کلا ته انتقال کړل. علي محمد دا کلا تازه آباده کړې وه او ښې زیاتي خوني یې درلودلې. بندیان تر بدیع آباد په دي کلا کي ډېر آرام سول. له جلال آباد څخه د ضرورت وړ شیان، لیکونه او اخبارونه ورته رارسېدل. د دوی تر ټولو لویه اندېښنه دا وه چي اکبر خان به کابل ته د جنرال پالک له نیژدې کېدلو سره دوی ترکستان ته انتقال کړي. نور یې نو ژوند له هره درکه برابر وو. (کې، ص: ۵۵۰)

جنرال پالک کابل ته د حرکت کولو څخه مخکي د شینوارو کلیو ته، چي په تېر ژمي کي یې د انګرېزانو د لښکر په تباه کولو کي ډېره برخه درلوده، د سزا ورکولو په منظور، جنرال مونتیت ته وظیفه ورکړه چي د دغو کلیو له خلکو څخه د برتانیې د پوځ لوټ کړي مالونه او توپونه واخلي. مونتیت د جون پر شلمه د ګولایي کلي ته چي یو شمېر لویې کلاوي پکښې ولاړې وې او پر کورونو باندي یې د توت او ولو ونو سیوري غوړولي وه، ورغی. کلاوو ته نیژدې روڼې اوبه بهېدلې او په ګاونډ کي یې د مالوچو، وریجو او جوارېو کروندې اوبولې. دوې یا درې ورځې وروسته د دوی د حاصل ټولولو وخت وو. مونتیت په سبا سهار د تباهی کار پیل کړ. د خلکو کلاوي او کورونه یې تباه کړل او دېوالونه یې ورته والوزول. د ښایستو او مېوه لرونکو ونو منځ ته یې اوسپني ور دننه کړې او ټولي یې په دغه طریقه وچي کړې. د قلاو او کورونو د تباه کولو کار څو ورځي روان وو.

شینواري ډېر یاغي خلک ګڼل کېدل نو انګرېزانو هغوی ته د درس ورکولو فیصله کړې وه.

مونتیت د شینوارو په وادي کې مخ ته ولاړ. چا چې مقاومت کاوه هغوی یې د پټېدلو په ځایونو کې وویشتل. په وادي کې یې پنځه دېرش کلاوي وسوځولې. مونتیت د اګسټ پر درېیمه یعني له څه باندي یوې میاشتي تباهیو څخه وروسته کمپ ته راستون سو. دا وخت کپتان ټروپ او حاجي بختیار د اکبر خان له خوا جنرال پالک ته استول سوي وه. البته خبري بې نتیجې ختمي سوې. (هغه کتاب، ص: ۵۶۰-۵۶۴)

جنرال پالک د شینوارو د کلیو د سوځلو څخه مخکي په خیبر کي په اپرېدیو زړه سوړ کړی وو. د ده عسکرو به د اپرېدیو څخه سرونه غوڅول او پر نیزو به یې ګرځول او کمپ ته به یې ورسره یووړل. په دې جمله کي د ښځو سرونه هم وه او کله چې لیفټینینټ ګرینووډ عسکر له دې عمل څخه منع کول نو یوه هندي عسکر ورته وویل چې صاحب! په دې لعنتي دره کي زما دوولس وروڼه وژل سوي دي. که زه د یوې خیبرۍ ښځې په غېږ کي یو میاشتنی ماشومووینم په ډېره خوشحالي به یې قتل کړم. (ډال ریمپل، ص: ۳۸۳)

که اکبر خان خبر وای چې ګورنر جنرال د وخته د هغه په باره کي خپله فیصله صادره کړې او جنرال پالک ته یې د هغه د اعدامولو توصیه کړې ده نو ده ښایي له پالک سره د مذاکراتو کوښښ له سره کړی نه وای. اکبر خان له کپتان ټروپ او پوټینجر سره خبري وکړې. پوټینجر ورته وویل چې تر ټولو غوره لاره دا ده چې ټول بندیان د پالک کمپ ته واستوه او په دې توګه خپل جدیت ثابت کړه. دا یوازینی لاره ده چې پر کابل باندي د پالک د حملې مخه نیولای سې. اکبر خان ورته وویل چې که پالک د حملې خیال ولري نو زه به ټول بندیان ترکستان ته ولېږم او هلته به یې پر مشرانو باندي دوه دوه او درې درې ووېشم او په خپله به له خپلو جنګیالیو سره یو ځای د پالک جنګ ته راسم. پالک باید ما ته ولیکي چې د بندیانو له تر لاسه کولو سره د خیبر د لاري پېښور ته روانېږي. اکبر دا ځل جنرال پالک ته ټروپ او لارنس ولېږل خو خبرو بیا هم نتیجه ور نه کړه.

اکبر خان جنرال پالک ته پېشنهاد لېږلی وو چې که انګرېزان ده او د ده ملګرو ته د تېرو کارونو عفو کوي، د دوست محمد خان او د ده د کورنۍ سالم ستنېدل تضمینوي او دا ضمانت کوي چې له جلال آباد څخه به پېښور ته ستنېږي نو بندیان به خوشي کړي. پالک بیا هم شفاهي جواب ور واستاوه او ورته وئې ویل چې ټول انګرېزي توپونه او بندیان زما کمپ ته را واستوه او ستا پلار او کورنۍ به خوشي سي او له افغانستان څخه د وتلو په برخه کي به درته ووایم ؛ زه چې هر څه کوم

هغه زما خپل اختیار دی. محمد اکبر خان وروسته جنرال پالک ته یو تهدیدونکی پیغام واستاوه او هغه ته یې وویل چې که د برتانیې پوځیان له جلال آباد څخه د کابل پر لور حرکت وکړي نو دی به د برتانیې ټول بندیان بخارا ته یوسي او هلته به یې د غلامانو په بازار کې خرڅ کړي. پالک بیا هم شفاهي پیغام ور واستاوه او ورته وئې ویل چې زه په لنډو شپو ورځو کې د کابل پر لور حرکت کوم او که ته غواړې خپل صداقت وښیې نو ښځینه بندیاني سمدستي را ولېږه. (فاریسټ، ص: ۱۲۸- ۱۲۹)

جنرال پالک، کرنل ټېلر گندمک ته نیژدې د ماما خېل او کوچي خېل کلیو ته ولېږی. په غرونو او غونډیو کې یې پر غازیانو باندې د حملو سره یو ځای دواړو کلیو ته اورونه واچول او کلاوې او کورونه یې څو ورځې ورته وسوځول؛ د ونو او انگورو باغونه یې ورته تباه کړل او ونې یې د نورو کلیو په څېر ورته وچې کړې. (هغه کتاب، ص: ۵۶۸-۵۶۹)

جنرال پالک د جولای پر اووه لسمه، له جلال آباد څخه گورنر جنرال ته ولیکل چې اکبر خان او فتح جنگ هغه ته قومي مشران لېږلي دي خو دی پوهېږي چې فتح جنگ د اکبر خان په لاس کې یو گوډاگی دی او هغه تش په نامه پاچا دی او دا قومي مشران یوازې د اکبر خان استازیتوب کوي. ده د گورنر جنرال دفتر ته اطمینان ورکړ چې له افغانانو سره به داسې سلوک وکړي او داسې زور به ورته وښیي چې زموږ قوت یې بیا په ژوند کې هېر نه سي. له افغانانو سره د پیمانونو او مذاکراتو لاره نتیجه نه ورکوي ځکه چې دوی هیڅ وخت پر قول نه درېږي او یوازې د زور په ژبه پوهېږي. ده گورنر جنرال ته ولیکل چې اکبر خان غواړي په یوه او بله پلمه کارونه وځنډوي او یو هدف یې زموږ د تر ټولو سخت دښمن محمد شاه خان د مځکو او کلاوو ژغورل دي، چې په لغمان کې یې لري. دا وخت زموږ او د هغه د جایدادونو تر منځ درې سینډونه دي چې په پوري وتلو کې سخت مشکلات پېښوي او شاوخوا مځکې د وریجو د کښتونو اوبو نیولې دي او پوځ نه سي پکښې تېرېدلای. ده ولیکل چې تر اوسه یې لا له شینوارو سره حسابونه نه دي تصفیه کړي. ده ولیکل چې جنرال مونټیت یې د هغوی د کلاوو د تباه کولو او د غلې دانې او پروړو د راوړلو له پاره لېږلی دی. مجرمینو ته مو چې کومه سزا ورکړې ده هغې ښه نتیجه ورکړې ده او اوس څوک زموږ پر عسکرو باندې یو ډز نه کوي. (پیپرز مکتوب، ۴۲۰)

جنرال پالک د جولای پر نویشتمه د گورنر جنرال دفتر ته ولیکل چې جنرال مونټیت په شینوارو کې د خپلو عملیاتو په باب رپوټ راکړی دی. پر هغه سیمه باندې د مونټیت د حملو له امله باید چې سخت تلفات رسېدلي وي ځکه چې د شینوارو یوه مشر کپتان میگریگور ته لیکلي دي چې

دوی اوس هم د خپلو مړو په ښخولو لګیا دي. ده وویل چې د شینوارو دغه راز بشپړه ماته او د هغوی د دونه زیاتو کلاوو تباهي به ډیرې ګټورې اغېزې ولري. (پیپرز مکتوب، ۴۴۷)

له دې پېښو څخه لږ وروسته فتح جنګ له بالاحصار څخه د اکبر خان له بند څخه وتښتېدی او ځان یې په ګندمک کې د جنرال پالک کمپ ته ورساوه. جنرال پالک هغه ونازاوه؛ د ده په افتخار یې د توپونو ډزې وکړې او په یوه لویه خېمه کې یې هر څه ورته برابر کړل.

د ګورنر جنرال سکرتر ښاغلي مډوک د سپټمبر پر دیارلسمه جنرال پالک ته دوه لیکونه واستول. په لومړي کې یې ورته لیکلي وه چې فتح جنګ ته ووایي چې هغه باید په هیڅ توګه د برتانیې له حکومت څخه د مرستې انتظار و نه لري او د افغانستان له پاره د پاچا او مشر ټاکل د افغانستان په خپلو خلکو اړه لري. دغه راز باید فتح جنګ په دې وپوهول سي چې هغه ترون نور لغوه دی چې د ده د پلار فقید شاه شجاع، د برتانیې د حکومت او مهاراجا رنجیت سینګ تر منځ لاسلیک سوی وو. (مکتوب، ۴۷۹)

انګرېزانو په دې توګه وښودله چې له خپلو ګوډاګیانو او دوستانو سره د هغوی دوستي تر مطلبه پورې ده.

ښاغلي مډوک په همدغه تاریخ جنرال پالک ته یو بېل لیک واستاوه او په هغه کې یې ورته ولیکل چې ته باید محمد اکبر خان ته ووایې چې که بندیان د برتانیې د حکومت له شرایطو سره سم خوشي نه کړې نو ستا مېرمن او اولادونه به کلکتې او وروسته ښایي برتانیې ته ولېږل سي او دی باید په دې پوه کړل سي چې د برتانیې حکومت هغوی ته اسلامي تعلیم نه سي ورکولای. (مکتوب، ۴۸۰)

خو لکه څرنګه چې جنرال پالک د اکبر خان تهدیدونو ته لیکلی جواب نه ورکاوه ؛ اکبر خان هم د ګورنر جنرال په وروستي تهدید کې ری و نه واهه او د بندیانو مسله همداسي ناحله پاته سوه. اکبر خان د آزادی له پاره جنګ ته دوام ورکړ او جنرال پالک د تباهیو پروګرام ته مخه کړه. جنرال پالک د شینوارو د کلیو په تباهیو بسیا نه سو. د هغه زړه لا کابل ته پوخ وو. خو مخکي له هغه چې، د هغه د نورو تباهیو او جنایاتو په باب وږغېږو یو ځل به وګورو چې په غزني او کندهار کې څه تېرېدل.

# د غزني محاصره او د قوې تسلیمېدل

کله چې جنرال کین د غزني د کلا د فتح کولو څخه وروسته، د کابل پر لور حرکت وکړ نو نسبتاً وړه او کمزورې قوه یې هلته پرېښودله او دې ته یې فکر و نه کړ چې دا یوازې د غزني کلا او خلک نه ول چې د انګرېزانو په مقابل کې یې مقاومت وکړ بلکې د شاوخوا قبایلو په زرهاوو وسله والو خلکو په جګړو او مقاومت لاس پورې کړی وو. نو باید چې غزني تر بل هر ځای زیات تقویه سوی او غم یې خوړل سوی وای؛ او که یې ډېره قوه اچولای نه سوای او لوی پوځي مرکز یې په وس کې نه وو نو باید چې اصلاً یې په غزني کې پوځي مرکز جوړ کړی نه وای.

د (۱۸۴۱م.) کال د نومبر پر دوهمه، په کابل کې د الکېزانډر برنس له وژل کېدلو سره پاڅون پیل سو. ډېر ژر یې لمن ټول هیواد ته پراخه سوه او خبرونه یې تر هند، ایران او مرکزي اسیا پورې ورسېدل. غزنی چې له کابل سره ډېر نیژدې پروت وو، طبعاً له دې اور څخه خلاصېدلای نه سوای.

د نومبر په میاشت کې کندهار آرام وو او پوځي مقاماتو د کندهار د پاڅون څو تنه دراني مشران ضابط کرافورډ ته سپارلي وه چې کابل ته یې ورسوي. هغه ته یې هدایت ورکړی وو چې که بندیانو د تښتېدلو هڅه وکړه نو دی دې هغه ووژني. پر کرافورډ باندې غزني ته نیژدې غلجیو حمله وکړه. ډېر سړي او آسونه یې ووژل سول؛ بندیان پر خپله لاره ولاړل او یا به هغه هم تلف سوي وي او کرافورډ ایله ځان د غزني کلا ته ورساوه. کرافورډ پر غزني باندې د غازیانو د حملو، د قوې د محاصرې او د انګرېزانو د قوې د تسلیمېدلو په باره کې ټول ورځني یاداښتونه لیکلي دي. ښه به دا وي چې نور نکل د هغه له خپلې خولې واورو.

"زه له کندهار څخه تېر کال د اکتوبر پر دېرشمه روان سوم؛ درې تنه بندیان او اووه تنه یرغمل راسره وه چې باید کابل ته مې رسولي وای. زما د خپلې ټولۍ پوځیان راسره ملګري وه او یو قومي مشر ګدو خان راسره ملګری وو چې له هغه سره څلوېښت سپاره ورسره وه. مور د نومبر پر اوومه اوها ته ورسېدو. مور ډېر چټک خو په ډېره ارامۍ کې سفر وکړ او دا اندېښنه چنداني نه وه راسره چې په لاره کې به حمله را باندې وسي. تاسې تصور کولای سی چې زه به څونه وارخطا سوی او حیران سوی یم چې ګدو خان مې خېمې ته راغی او د هغې سیمې یو اوسېدونکی ورسره وو چې ویل یې عرض بیګي دی. هغه ما ته د کابل د خرابو حالاتو په باره کې رپوټ راکړ چې د دې

میاشتي پر دوهمه پېښ سوي وه. ما چي وروسته پوښتنه وکړه؛ د هغه خبري رښتیا وې خو یو څه یې وربانديٰ زیاتي کړي هم وې. ده موږ ته وویل چي بیرته شا ته ولاړ سو او ځانونه کلات ته ورسوو ځکه چي د غزني شاوخوا دوو زرو تنو نیولې ده او حتماً وژل کېږو. ما د یوه صاحب منصب په حیث شاته تګ، هغه هم د یوه سړي له خولې د کیسې په اساس، په هیڅ توګه مناسب نه باله او که چیري د دې سړي کیسه رښتیا هم وای نو کلات زموږ څخه نیوي میله لیري او غزني څلور پنځوس میله فاصله درلوده. موږ کلات ته په دوو ورځو کي رسېدلای نه سوای او غزني ته په یوه ورځ کي رسېدلای سوای. له بلي خوا تر کلات پوري لاره ټوله د غلجیو په منځ کي تېرېدله او هر ان د دښمن لاس ته د لوېدلو او وژل کېدلو خطر موجود وو. وروسته زه خبر سوم چي هغه سړی عرض بیګي نه وو بلکي د سیمي له غلجیو څخه وو او غوښتل یې چي موږ په دام کي واچوي. په هغه صورت کي به ټول وژل سوي وای او دونه څوک به پاته سوی نه وای چي زموږ کیسه یې د چا تر غوږه رسولې وای. له ښه ډېر فکر کولو څخه وروسته د شپې پر اته بجې پر آس سپورم سوم او د غزني پر لور مي حرکت وکړ. ټوله شپه مو مزل وکړ او سهار وختي د غزني په دیارلس میلي کي ناني ته ورسېدو. مګر سمدستي راته معلومه سوه چي شاوخوا خلک ټول یو څه ته منتظر دي. په یوه ګړي کي زموږ په باره کي له یوې کلا څخه تر بلي پوري اطلاع ورسېده او خلک زموږ پر اړخونو او شا ته پیدا سول او ډزي پیل سوې. ډېر زړور سپاره ول او شاوخوا لکه د مچیو سېل راباندي را وګرځېدل او له هري خوا یې ډزي کولې. د دونه زیاتو دښمنانو په مقابل کي موږ تقریباً بېچاره سولو. دوه ځله مو پر دښمن باندي حمله وکړه او څو تنه مو ووژل. هغوی به د نیژدې کلاګانو له دېوالونو سره نیهام سول او پر موږ به یې خندل. موږ لویه لاره پرېښودله او د دښت لاره مو واخیستله خو سپاره راپسي را رسېدل او بده خو دا وه چي هغه یابوګان چي بندیان وربانديٰ سپاره وه، ستړي سول او نور تللای نه سوای. ما پر دوو اسونو باندي دوه دوه تنه سپاره کړل او ځغاستي ته مي دوام ورکړ. یوه سپاره یو بندي په توره وواهه او مړ یې کړ او هغه نور دوه بندیان په یوه ارهټ کي ولوېدل. آس پر سربېره وو او پښې یې د آس تر نس لاندي په زولنو کي بندي وې. ما دوی خلاصولای نه سوای او هورې مي پرېښودل. ما دوې لاري درلودلې یا مي باید د راکړه سوي هدایت سره سم ویشتلي او وژلي وای او یا مي باید هلته پرې ایښي وای. د وظیفي تقاضا خو دا وه چي باید وژلي مي وای؛ مګر هغوی د دې حالت مسؤل نه ول او زموږ دښمنانو یو بندي هم وژلی وو او ښایي دوی یې هم وژلي وای. زه باید دا خبره زیاته کړم چي له دې پېښو څخه وروسته تحقیقاتي هیئت هم زه پر حقه وبللم. د نومبر پر

اتمه د سهار د لسو بجو په شاوخوا کي غزني ته ورسېدم. ټول سامان او بندیان مي له لاسه ورکړي وه. پنځلس تنه عسکر او شل آسونه راځخه وژل سوي او څو تنه زخمیان مي کلا ته ورسول. هره ورځ تر بلي بد خبرونه راته را رسېدل. په کابل کي زموږ د مشرانو اشتباهاتو او بې عقلیو نه یوازي دوی تباه کړل بلکي غزني یې هم فلج کړ. تاسي تصور کولای سی چي د غزني په کلا کي ضروري ترمیم کاری نه وې سوي او د غزني د قطعې مسؤل کرنل تامس اجازه نه درلوده چي په کلا کي ضروري مواد ذخیره کړي. کرنل تامس ایله اوس د کلا په ترمیمولو لګیا سو او چي د دښمن قوتونه د کلا دېوالونو ته را ورسېدل نو پوه سول چي محاصرې ته هیڅ تیاری نه لرو. دا یوازي دښمنان نه وه چي موږ جګړه ورسره کوله؛ د ژمي سوړ موسم تیار پیل سوی وو او هوا داسي سړه وه لکه سړی چي په کاناډا کي اوسېږي. دښمن او واوري په یوه سلا مخونه ښکاره کړل. د نومبر پر شلمه، ښار دښمن محاصره کړی او مځکه واوري پوښلې وه. مګر په یوه هفته کي دښمنان د ښار له شاوخوا څخه لیري سول ځکه چي داسي رپوټ ورته رسېدلی وو چي ډګروال میکلارن زموږ د نجات له پاره را روان سوی دی. مګر د ډسمبر پر اوومه دښمنان په ښه زیات شمېر را ورسېدل او موږ یې شاوخوا محاصره کړو. د ښار خلکو د شپې په دېوال کي یو سوری جوړ کړی وو او خپل وطنوال یې ښار ته بللي وه. د ډسمبر پر شپاړسمه، په زرګونو کسان ښار ته ننوتل. موږ کړی شپه او سبا ورځ جنګ ورسره وکړ مګر بالاخره یې مجبور کړو چي کلا ته ننوځو. څو ورځي وروسته هوا دونه سړه سوه چي تر منفي څوارلس پوري ورسېده او په دې هوا کي به هندوستاني عسکرو څرنګه ګوزاره کړې وای. له یوې خوا هوا سړه وه او له بلي خوا محاصره وه. عسکر مو د یخنۍ له لاسه ناروغ ول او روغتون به له ناروغانو ډک وو. هر عسکر چي به سر د کلا تر دېوال ور پورته کړ و به ویشتل سو. په ورځ کي درې څلور تنه وژل کېدل. د جنوري تر پنځلسمي پوري وضع په دغه ډول وه او په هغه ورځ یو ډول متارکه ټینګه سوه او موږ باید د شمس الدین خان راتګ ته معطل سوي وای او د هغه له را رسېدلو سره له کلا څخه وتلي وای. ډګرمن تامس هغوی د مارچ د میاشتي تر پیل پوري، په یوه او بله پلمه وځنډول؛ مګر تر هغه وروسته نه شمس الدین خان صبر کولای سو او نه موږ د ژوندي پاته کېدلو له پاره چنداني مواد درلودل . د اوبو چینلو له پاره مو له واوري څخه ګټه اخیستله مګر هغه هم ویلي سوې وه او نور نو له سختي تندي سره مخامخ وو. بله هیڅ لاره پاته نه سوه او د دښمن سره مو په دې هیله چي ګوندي ژوندي به مو پرېږدي، سوله وکړه. د مارچ پر شپږمه له کلا څخه د هغي جوړې په اساس را ووتلو چي ټولو مشرانو لاسلیک کړې او سوګند یې کړی وو چي موږ به تر

پېښور پورې رسوي. زموږ سره به وسلې، سامانونه، بيرغونه او د سړي پر سر پنځوس مرمۍ راسره وي او دوی ته به تسليمېږو. موږ يې کلا ته نيژدې په يوه وداني کې واچولو او په غرونو کې د واورې ويلېدلو او د انتقال د وسايلو برابرېدلو ته يې منتظر کړو. موږ ايله نوي کور ته رسېدلي وو چې غازيانو حمله راباندې پيل کړه او زه پوه سوم چې دوی له کافرانو سره سوګندونه څومره رعايت کوي. موږ له يوې خونې څخه بلې ته تللو او خونو پرله پسې اور اخيستی او بالاخره تر نيمې شپې پورې ايله نيم کور روغ پاته سو. هم وږي تږي وو؛ هم مو مرمۍ پر ختمېدلو وې او هم کور ټول له مړو او زخميانو ډک وو. موږ يو دېوال سوری کړ او ځانونه مو د ډګرمن پالمر کور ته ورسول. په سبا سهار غازيانو زموږ د ملګرو پر يوه بل کور باندې يرغل وکړ. لمسدن، د هغه مېرمن، ډېرش تنه هندي عسکر او د دوی نوکران يې ټول ووژل. افسران، ښځې، ماشومان، هندي عسکر او نوکران ټول په دوو کورونو ننوتلو. له هرې خوا مرمۍ اورېدلې او زه حيران وم چې مرمۍ پر دېوالونو لګېږي او چنداني تلفات نه رسوي. خپل ډېر ملګري صاحب منصبان مې وليدل چې پر څلورو به د خونې څخه ووتل او په ختو کې به يې کومه ټوټه يخې پيدا کړ او تنده به يې په ماته کړه. په سبا سهار زموږ پر کورونو باندې په زرهاوو، زموږ وينو ته تږي غازيان را ګرځېدلي وه او موږ ټولو د يوې لويې حملې او حتمي مرګ انتظار کاوه. خو شمس الدين خان لکه چې مشرانو ته قناعت ورکړی وو او موږ يې له مرګه وژغورلو. د شمس الدين خان او نورو مشرانو يو شرط دا وو چې موږ خپل ځانونه دوی ته وسپارو او هندي عسکر د غازيانو په لاس ورکړو. دا داسې شرط وو چې په هيڅ توګه د منلو نه وو. په دې وخت کې ځينو هندوستاني عسکرو سلا سره کړې وه چې د شپې به په پټه له کور څخه وځي او ځانونه به پېښور ته رسوي. موږ خبر سولو او زارۍ مو ورته وکړې چې دا د حتمي مرګ لاره ده خو دوی زموږ خبره و نه منله او يوه شپه وروسته يې زموږ په پټه حرکت کړی وو. وروسته خبر سولو چې غازيانو ټول وژلي ول. موږ لس تنه افسران يې په يوه کوټه کې چې ايله موږ پکښې ځايېدلو، واچولو. لږې ورځې وروسته ټولو شپږې وکړې. د اپرېل پر اوومه خبر سولو چې شاه شجاع وژل سوی دی او له دغې ورځې څخه زموږ سره نور هم ډېر سخت سلوک کېدی. حتی د وړې کوټې کړکۍ يې هم راته بنده کړه او د تازه هوا له اخيستلو څخه يې محروم کړو. د مياشتې له يويشتمې څخه شکنجې پيل سوې او موږ ته يې ويل چې تر څو پورې هغه څلور لکه روپۍ چې موږ په کلا کې پټې کړې دي، ور و نه ښيو موږ ته به هره ورځ شکنجې راکوي. بالاخره يې موږ ته وويل چې که پيسې ور و نه ښيو نو ټول به په نوبت په توپ کې والوزل سو. د اپرېل د مياشتې په

پای کي زموږ محافظین بدل سول او زموږ سره ډېر نرم سلوک پیل سو. موږ پوه سولو چي زموږ پوځونه لکه چي را رسېدونکي دي. زموږ ډوډۍ بهتره سوه او په څو ورځو کي مو روغتیايي حالت هم ښه سو. زموږ محافظینو به راته ویل چي که چیري ستاسي پوځونه را ورسېږي نو د پخوا په شان به ټول قتل کړي.

د اګسټ پر نولسمه یې موږ ته اطلاع راکړه چي باید سمدستي د کابل پر لور حرکت وکړو. په کجاوو کي یې پر اوښانو سپاره کړو. موږ په دریو ورځو کي کابل ته ورسېدو. په لاره کي له کومي پېښي سره مخامخ نه سولو مګر چي کابل ته ورسېدلو نو خلکو ډېر زیات ښکنځل راته وکړل. له ښکه مرغه چي موږ کابل ته ماښام ورسېدلو او په لارو کوڅو کي ډېر خلک نه ول، که نه نو یوازي په ښکنځلو به چا نه وای خوشي کړي. موږ یې سیده بالاحصار ته، د محمد اکبر خوني ته بوتلو. هغه په ډېره مهرباني زموږ هرکلي وکړ. ما خپل ځان ته هیڅ قناعت نه سوای ورکولای چي دې ښکلي، خوش طبیعته او مهذب سړي دي، چي زموږ د لاري د سترټیا پوښتني یې وکړې او هره خبره به یې په خندا کوله، مکناټن وژلی وي او زموږ د عسکرو په قتل عام کي دي یې برخه اخیستې وي. ده موږ ته وویل چي ډېر ناوخته کابل ته راغلو ځکه چي ده له شمس الدین خان څخه ډېر مخکي کابل ته زموږ د لیږل کېدلو غوښتنه کړې وه مګر هغه د ده امر ته اعتنا نه ده کړې. ده موږ ته وویل چي اوس نور غم مه کوی. زموږ پالنه به دی په خپله کوي او زموږ سره به د صاحب منصبانو په حیث سلوک کیږي. تر دې خوږو خبرو وروسته یې د ماښامنۍ ډوډۍ د راوړل کېدلو امر وکړ او په ټروپ او پوټینجر پسي یې احوال واستاوه. کله چي دوی را ورسېدل نو موږ، نور مشران او محمد اکبر ډوډۍ ته کښېنستلو چي ما په دې څو میاشتو داسي ډوډۍ نه وه لیدلې. وزیر پر ډوډۍ باندي د مختلفو شیانو په باره کي خبري او ټوکي وکړې او له ډوډۍ وروسته یې موږ ته وویل چي تاسي به د ټروپ او پوټینجر سره ولاړ سی ځکه زه پوهېږم چي تاسي به غواړی د ډېرو شیانو په باره کي خصوصي خبري سره وکړی. په سبا سهار یې موږ ته سبا ناری راوړ او څو آسونه یې راته راواستل او راته وئې ویل چي موږ به له کابل څخه څو میله لیري له نورو انګرېزي بندیانو سره یو ځای سو. ضمناً یې راته وویل چي د ضرورت وړ شیانو یو لیست ورته وسپارو. موږ خپل وطنوال ولیدل. هغو په داسي ځای کي ژوند کاوه چي موږ ته لکه کوچنی جنت داسي ښکارېدی. دوی ښې لویي خوني درلودلې، نوکران ورته ولاړ وه، هر یوه ښه ډېر سامان درلودی او یو ښایسته باغ یې درلودی چي ښه قدم پکښې وهل کېدلای سوای. خو زما له بدي طالع چي دې ژوند ډېر دوام و نه کړ او

څلور پنځه ورځي وروسته يې باميان ته واستولو. کله چي باميان ته روان سولو نو د محمد اکبر له مېلمه پالني څخه بې برخي سولو او زموږ سره بيا سخت سلوک شروع سو. زه پوهېږم چي زموږ ډېرو ملګرو به د بنديانو په باره کي ليکني کړي وي نو زه به خپله ليکنه دلته پای ته ورسوم. وېرېږم چي تکرار کيسې و نه ليکم. " (آيرې، ص: ۴۰۶-۴۲۰)

که څه هم چي ډګرمن پالمر له غزني څخه د مارچ پر لومړی نېټه، د جلال آباد د قواوو قوماندان ته، د يوه قاصد په لاس ليک استولی او په هغه کي يې ليکلي دي چي ما د مېجر پوټينجر او جنرال الفينسټون له هدايت سره سم کار کړی دی. هغوی راته ليکلي وه چي هر کله د امين الله خان زوی روح الله خان در ورسېږي نو تاسي به کلا او ښار تخليه کړی او د کابل پر لور به حرکت وکړی. له بلي خوا هم د دښمنانو له خوا محاصره وو او هم مو په ټول پوځي مرکز کي د چښلو اوبه نه درلودلې او دغه راز د غزني نوی ګورنر او سياسي استازی امير شمس الدين خان هم را ورسېدی او ما ته سر ويليم مکناټن هدايت راکړی وو چي غزني ته د ده له رسېدلو سره سمدستي د کابل پر لور حرکت وکړم. (پېپرز مکتوب، ۲۱۶)

مګر ګورنر جنرال لارډ ايلنبرا د پوټينجر، مکناټن، جنرال الفينسټون او ډګرمن پالمر له پاره د نظامي محکمې غوښتنه وکړه. (مکتوب، ۲۱۷)

البته پوټينجر او ډګرمن پالمر دواړه په محکمه کي تبريه سول. د غزني له ګارنيزون څخه يوازي لس تنه انګرېز صاحب منصبان کابل ته ژوندي ورسېدل او نور اکثر ووژل سول. انګرېزي منابعو په غزني کي د باقي پاته کسانو په باب، چي اکثريت هندوان، ګورکه او يو څه مسلمانان ول، چنداني څه نه دي ليکلي. د دې ډېر قوي احتمال موجود دی چي ډګرمن پالمر به د خپلو انګرېزي افسرانو د ژغورلو له پاره، د غازيانو د لومړی غوښتني سره سم هندي عسکر ټول تسليم کړي وي. د سيتارام او موتي رام له ليکنو څخه په څرګنده ښکاري چي په سلګونو هندي عسکر له ژوندي نيول کېدلو څخه وروسته، د غلامانو په بازار کي خرڅ سول او خلکو په کورونو او کروندو کي کار ورڅخه واخيست. د جان کانلي په ياداښتونو کي هغو په سلګونو هندي عسکرو ته اشاره سوې ده چي د کابل په بازارونو کي يې ګدايي کوله او نواب زمان خان او نواب جبار خان تقريباً هر ماښام ډوډۍ ورکول.

د تعجب خبره دا ده چي کله جنرال ناټ له کندهاره څخه کابل ته په لاره کي غزني ته ورسېدی

نو و یې لیدل چې ځیني هندوان او د دوی هندي عسکر په کلا کي اوسېدل او دوی ته یې له لیري د برتانیې بیرغونه ښورول او د شمس الدین خان په توپونو یې دوی ته عسکري سلامي وکړه. (کي، دوهم جلد، ص: ۶۰۴)

د دې عسکرو شمېر ښودل سوی نه دی خو دا چې د شمس الدین خان توپچي قوه ورسره وه نو یقیناً چې له ځینو څخه یې په پوځ کي کار اخیستل کېدی او ښایي ځیني او یا ښایي اکثریت به یې په کابل او اطرافو کي د نورو هندي عسکرو په سرنوشت اخته سوي وي.

د جنرال ناټ په پوځ کي موجودو انجنیرانو چې کله د غزني قشله وکتله نو و یې لیدل چې دا کلا اوس هم دونه ټینګه او مجهزه وه چې د شمس الدین خان او د هغه د غازیانو له پاره یې فتح کول چنداني ممکن نه وه او تر ډېره وخته یې مقاومت کولای سوای او په قشله کي دننه یو څاه وو چې اوس یې هم اوبه لرلې. د څاه د اوبو سطح له سیند څخه کښته وه او د وچېدلو احتمال یې موجود نه وو. دوی حیران سول چې پالمر دا کلا څرنګه تسلیم کړې او ځان او ملګري یې شمس الدین خان ته سپارلي او د هغه په غضب یې اخته کړي ول. (هغه کتاب، ص: ۶۰۴-۶۰۵)

له دې څخه ښکاري چې ډګرمن پالمر له وچه بې زړه توبه غازیانو ته ځان تسلیم کړی دی ځکه ده هر وخت په خپله دفاع کي ویلي دي چې په قشله کي یې یو څاڅکی اوبه نه درلودلې او ټول د تندي د مرګ له تهدید سره مخامخ ول او له تسلیمېدلو پرته بله هیڅ لاره ورته پاته نه وه.

د جنرال ناټ پوځ له دې څخه وروسته د ښار او کلا د تباه کولو کار پیل کړ. توپچي قواوو یې د شمس الدین خان توپونه وچاودل؛ انجنیرانو په کلا او د ښار په بېلو برخو کي ماینونه ښخ کړل او و یې چاودل. وروسته یې کلا او ښار ته اور واچاوه او د لرګیو څخه جوړو سوو ودانیو ډېر ژر اور واخیست او کړی شپه یې اسمان روښانه کړی وو. (هغه کتاب، هغه مخ)

## کندهار او شاوخوا سیمه

که د انګرېزانو په مقابل کي د افغانانو د پاڅون اصلي علت د هغوی له وجود او لیدلو څخه عمومي نفرت وبولو نو دا نفرت د هغوی په مقابل کي له لومړۍ ورځي موجود وو. له بده مرغه چې افغانانو د دې پېښو په باره کي خپلي لیکني نه دي پرې ایښي خو د انګرېزانو له یاداښتونو او لیکنو څخه د

افغانانو عمومي نفرت له ورایه څرګندېږي او په کندهار کې، چې د انګرېزي پوځونو لومړنی تم ځای وو، له لومړیو ورځو څخه حملې پیل سوې.

نیویل چمبرلین د کندهار له کمپ څخه خپلې مور ته په یوه خط کې لیکلي دي چې که له چا سره یوه ډله په وسله سمبال عسکر ملګري نه وي نو له کمپ څخه یو میل لیري نه سي تللای او که ولاړ سي نو د سر خطر موجود دی. چمبرلېن وروسته د هغو څو انګرېزي صاحب منصبانو کیسه کوي چې د ماهي نیولو له پاره د ارغنداو د رود غاړې ته تللي ول. نور د ماپښین په خوا کې بېرته کمپ ته راغلي او دوه تنه یې تر لمر لوېدلو پوري پاته سوي ول. خلکو حمله ورباندي کړې، یو یې وژلی او بل ژوندی ورڅخه تللی وو.

"زه یقین لرم چې قاتلان به هیڅ وخت پیدا نه سي. ګومان کوم دا کیسه به تا ته دا حقیقت روښانه کړي چې موږ په څه ډول ملک کې اوسیږو. د دې خلکو دا کار دی چې هر یو د خپل ګاونډي غاړه پرې کوي. تقریباً هر څوک یې یو آس لري او هیڅ وخت پر یوه آس باندي، په ورځ کې تر پنځوس شپېته میله زیات نه سپرېږي... " (فاریسټ، ص: ۳۵-۳۶)

د (۱۸۴۱م.) کال د جنوري په میاشت کې چې لا د افغانستان په ډېرو سیمو کې نسبتاً کراري وه، کپتان فارینګټن کندهار ته رپوټ ورکوي چې د تېرې میاشتي پر دېرشمه غازیانو د کندهار د جانباز ملېشو قوماندان محمد علم خان ته د ساروان کلا په شاوخوا کې ډېره سخته ماته ورکړې او توپونه او د کمپ نور وسایل او سامانونه یې ورڅخه اخیستي دي. په دغه رپوټ کې د یاغیانو د قواوو شمېر له (۱۲۰۰) څخه تر (۱۵۰۰) پوري، سپاره او پیاده ښودل سوی دی. (سټوکویلر، ص: ۱۴۱)

د جنوري پر درېیمه د زمینداور د اختر خان له ملګرو سره د بلې نښتي او د غازیانو د ماتي رپوټ ورکړه سوی دی. (هغه کتاب، ص: ۱۴۲)

د (۱۸۴۱م.) کال د مې پر یودېرشمه له کلات غلزایي څخه د کرنل وایمر په یوه رپوټ کې د ګورو او سلطان خان تر مشرۍ لاندي د یاغیانو شمېر څه باندي (۲۵۰۰) ښودل سوی او وایي چې وروسته نوري تقویتي قواوي هم ورته را ورسېدلې او شمېر یې زیات و کم (۵۰۰۰) ته ورسېدی. (هغه کتاب، ص: ۱۵۰-۱۵۱)

د جولای پر پنځمه له ګرشک څخه کندهار ته په رپوټ کې ویل سوي دي چې د اختر خان په مشرۍ یاغیانو چې شمېر یې (۳۰۰۰) ته رسېږي، شاوخوا سیمه نیولې ده او هره ورځ د انګرېزانو پر

قواوو باندي حملې کوي. (ص: ۱۵۳) په همدغه رپوټ کې بل ځای راغلي دي چې په زمینداور کې د اختر خان سره ډېره سخته نښته سوې ده او د هغه د قواوو شمېر يې (۶۰۰۰) تنه ښودلی دی چې درېيمه برخه يې سپاره دي. (هغه کتاب، ص: ۱۵۶)

په دې توګه د کندهار، هلمند او کلات د قومي مشرانو او خانانو لښکرو چې په هره سیمه کې يې شمېر زرهاوو ته رسېدی، پر کندهار باندي د انګرېزانو د حملې او پر تخت باندي د شاه شجاع له کښېنولو څخه د (۱۸۴۲م.) کال د اګسټ تر میاشتي پوري، چې انګرېزان له کندهاره ووتل او کابل ته روان سول، يوه ورځ هم هغوی پر کراره نه دي پرې ايښي او چې کله يې له کندهاره حرکت وکړ نو بیا له مقر څخه د کابل تر دروازو پوري هره شپه او هره ورځ حملېورباندي کېدلې او خپل نفرت او زور يې ورته ښودی.

کله چې راولنسن د خپلو افسرانو د رپوټونو په اساس مکناټن ته مکتوبونه ليکل او د کندهار او شاوخوا سیمو د اوضاع په برخه کې يې خپله اندېښنه ورته ښودله نو مکناټن به پر هغه باندي په غوسه سو چې ولي لمر په دوو ګوتو نه سي پټولای او ولي د جنګ د رپوټونو پر ځای نه ورته ليکي چې هر څه ګل او ګلزار دي.

پر افغانستان باندي د انګرېزانو د يرغل له پيل څخه جنرال ناټ د کندهار د قواوو د قوماندان او میجر راولنسن د سیاسي استازي په حيث ټاکل سوي ول. میجر راولنسن په خپل هغه مکتوب کې چې د (۱۸۴۲م.) کال د مارچ پر شپاړسمه يې له کندهار څخه د ګورنر جنرال دفتر ته لېږلی دی، د کندهار عمومي وضع په لنډ ډول بيان کړې ده:

"... جنرال ناټ د تېر ډسمبر د میاشتي په پيل کې لازمه وبلله چې ټولې قواوې په کندهار کې متمرکزې کړي او له زمينداور څخه يې ټول عسکر او توپونه کندهار ته انتقال کړل... ليفټينېټ هېمرسلي غوښتل چې له کوټې څخه کندهار ته خزانه را ولېږي؛ مګر ما منع کړ او ورته و مي ويل چې لږ به د اوضاع کرارېدلو ته انتظار وباسو. دا ډېر ښه کار وسو چې خزانه معطله سوه که نه نو ټوله به له منځه تللې وای. څکه چې موږ ته اطلاع را ورسېده چې محمد عطا خان له کابل څخه کندهار ته راغلی دی او غواړي چې خلک زموږ په مقابل کې ولمسوي. خلک د هغه تر بیرغ لاندي را ټول سول او خزانې ته يې لاره نیولې وه خو څرنګه چې خزانه معطله سوه نو د ده سړي هم خپلو کورونو ته ستانه سول؛ مګر خلک يې د راتلونکي له پاره ولمسول او د وروستیو بدو پېښو سبب سول... د کوږک په شاوخوا کې اځګزیو له جنوب سره زموږ ټول ارتباطات قطع کړي دي مګر صالو خان

اڅګزی اوس هم زموږ ملګری دی او د کندهار د جانبازانو په مرسته یې قلعه عبدالله بیرته ونیوله. ما د هغه د خدمتونو له امله د جانبازانو د سردار مهمه چوکۍ ور وسپارله او هغه اوس له هند سره زموږ د ارتباط په ساتلو کې ډېره ښه مرسته کوي.

اوس به نو د کندهار د ښار د وضعیت په باره کې یو څه درته ولیکم. کله چې ما د کابل د پاڅون په باره کې اطلاعات تر لاسه کړل نو پوه سوم چې د پاڅون اصلي مشران درانیان دي. زه مجبور سوم چې د کندهار درانیو ته د شک په نظر وګورم ځکه چې دوی ټول د کابل له قبایلو سره تړلي دي. ما له دوی سره ډېر نرم سلوک را واخیست، خبري مي ورسره کولې او د نومبر ټوله میاشت مي له دوی سره لیده کاته کول او دوی ته مي هر وخت ویل چې د کابل پېښي موقتي دي او ډېر ژر به ستونزي حل سي خو کله چې کرنل مک لارن کابل ته په لاره کې بیرته راستون سو او خلک په وضع خبر سول او په دې وخت کې محمد عطا خان هم د کندهار په سرحداتو کې لمسوني کولې نو له درانیو مشرانو سره په هغه نیم اعتماد چې ما تر دغه وخته په کړی وو، ګوزاره کول ګرانه سوه. ما درې لاري درلودې: یا به مي د درانیو ټول مشران بندیانول او د هغوی طرفداران به مي له ښاره ایستل، یا به مي دوي ټول له ښاره څخه وتلو ته مجبورول او په هغه صورت کې به مي د محمد عطا خان جبهه په لوی لاس غښتلې کوله او دریمه لاره دا وه چې په دوی به مي اعتماد کولای او د شاه شجاع ملاتړ کولو او له محمد عطا خان سره مخالفت کولو ته به مي تشویقولای؛ چې کندهار ته د بارکزیو سردارانو په استازیتوب راغلی وو. بارکزي دا وخت زموږ دښمنان او د شاه شجاع او پوپلزیو مخالف ول. په دې صورت کې نو ما دا لازمه وبلله چې دوې مخکنۍ لاري انتخاب کړم او مخکې له مخکې د ستونزو د پیښېدلو مخه ونیسم او دغه راز له خپل دریم انتخاب څخه هم یو څه کار واخلم او تر څو چې په کابل کې ارامي راځي، چې زما په عقیده حتماً به راتلله، په کندهار کې نسبي کراري وساتم او د جنګي لګښتونو مخه ونیول سي. تر ډېرو سلا مشورو وروسته مي دریمه او معتدله لاره انتخاب کړه او له والا حضرت شهزاده تیمور څخه مي وغوښتل چې خپل مشر زوی درانیو مشرانو ته ولېږي او د مالیاتو د اداري مدیر میرزا احمد ته یو لک روپۍ ورکړي چې د درانیو پوځیان خدمت کولو ته تشویق کړي او د درانیو پوځي قوه جوړه کړي. ما دغه راز د کندهار له ملایانو څخه فتوا تر لاسه کړه چې د کابل د حکومت ښورښیان یې یاغیان او خاینان وبلل، چې په دې دنیا او آخرت کې د سزا لایق دي. پوپلزي د ډسمبر په منځنیو شپو ورځو کې له کندهار څخه ووتل او تر خپله وسه یې په خپلو قبایلو کې د مذهبي جذبې او غزا د تبلیغ د خپرېدلو مخه ونیوله او تر هغه

وخته چې په دوی کې یې دا عقیده تبلیغول چې شاه شجاع هم زموږ مخالف دی نو پوپلزي کرار وه. زه په دې عقیده یم چې حکومت به زما په برخه کې دا قضاوت و نه کړي چې له پوپلزیو سره په دې لوبه کې مې له بې احتیاطۍ څخه کار اخیستی دی. وروسته له هغه چې شهزاده سکندر مو د درانیو مشرانو له هیئت سره واستاوه نو ما خپله توجه د جانباز قوې خوا ته واړوله. یوه برخه مې له شهزاده سره واستوله او بله برخه مې د هلمند ولایت ته واستوله چې د ګرشک کلا په وساتم. په دې توګه به هم دوی د کابل د انکشافاتو څخه بې خبره وساتل سي او هم به شاوخوا داسي قبایل ورباندي را ګرځېدلي وي چې د دوی د وینو تږي دي. دوی باید د ډسمبر پر اووه ویشتمه د ګرشک خوا ته حرکت کړی وای مګر یوه شپه مخکې د یوه تصادف له مخې دا خبره معلومه سوه چې دوی د شورش خیال لري، دوی فکر وکړ چې موږ یې په نیت خبر سوی یو نو ښکاره شورش ته یې لاس واچاوه، لیفټینیټ ګولډینګ یې وواژه او لیفټینیټ پېټرسن یې دونه سخت زخمي کړ چې اوس پر مرګ پروت دی، دوی د یوه عمومي شورش د پیل کولو په هیله دا کار وکړ. د یادوني وړ ده چې دوی د درانیو له کمپ سره یو ځای نه سول او دا یې ثابته کړه چې دوی فکر کاوه دراني مشران زموږ ملګري دي. د کپتان لي سن د سپرو عسکرو ټولۍ او د لیفټینیټ ویلسن د فارسي وانو جانباز کنډک چې موږ ته وفادار پاته ول او له خپلو نورو پښتنو جانبازانو سره یې په شورش کې ملګری و نه کړ، د شورشیانو د تعقیبولو له پاره واستول سول. زموږ قوه د کندهار څخه دوولس میله لیري په شورشي جانبازانو پسي ورسېده؛ حمله یې ورباندي وکړه او ډېر درانه تلفات یې ور واړول. ما غوښتل چې د ګرشک د کلا د ښه ترا ساتلو له پاره د محلي حکومت دوه توپونه هم واستوم او د جنرال ناټ هم موافقه وه. دغه ګړی مې د ګرشک د کلا د ساتلو له پاره بل څه په لاس کې نه وه او د ګرشک قلعه دار بلوان سینګ ته مې احوال ورکړ چې خپله قوه څلور سوو تنو ته زیاته کړي. دغه راز مې له شهزاده تېمور څخه اجازه واخیستل چې د مشهور فتح خان زوی چې په بارکزیو کې یې ډېر زیات نفوذ درلودی، د هلمند ګورنر مقرر کړم. دی هم د خپلې قبیلې له ځینو مشرانو سره مخالف دی او د پوپلزیو خو ځکه دښمن دی چې د ده پلار یې وژلی دی.

د ډسمبر پر نویشتمه یوه مهمه پېښه منځته راغله او هغه دا چې شهزاده صفدر جنګ چې د خپل ورور له قدرت سره یې حسد درلودی، د لاش د اوسېدونکي شاه پسند خان زوی وغولاوه؛ له ښاره وتښتېدی او زموږ په ختیځ سرحد کې د محمد عطا خان له یاغیانو سره ملګری سو. څرنګه چې پر شهزاده باندي هیڅ ډول محدودیتونه نه وه وضع سوي نو دا ممکنه نه وه چې موږ د هغه د تېښتي

مخه نيولې واى. له ياغيانو سره د ده ملګرتوب د هغوى داعيه ډېره قوي کړه او ډېر ژر يې طرفداران زيات سول. هغه جانباز چي له کندهار او د صالو خان څخه تښتېدلي ول، هغوى د محمد عطا خان تر بيرغ لاندي را غونډ سول او سردار خپل مرکز د کندهار په څلوېښت ميلي کي په دهله کي جوړ کړ. جنرال ناټ نه غوښتل چي د ژمي په موسم کي پر هغه باندي حمله وکړي او خپل عسکر خطر ته ورکړي. زموږ دغه څنډ عطا خان زړور کړ او له خپلو درو زرو سپرو او پياده لښکرو سره د ارغنداب وادي ته را شوه سو او د کندهار په ګاونډ کي يې ځاى ونيوى. له ده سره ډېر نور خلک هم ملګري سول او د جنوري پر دوولسمه يې د کندهار د لوېديځ په پنځه ميلي کي مرکز ونيوى. جنرال ناټ دلته حمله ورباندي وکړه او تر يوې لنډي نښتي وروسته يې ماته ورکړه. درانيو تر دغه وخته پوري نه غوښتل چي زموږ سره ښکاره دښمني وکړي، که څه هم چي د کابل له اوضاع څخه دوى داسي پوهېدلي وه چي موږ ډېر سخت مشکلات لرو او شاه شجاع کولاى سي چي زموږ له وتلو وروسته هم په قدرت کي پاته سي او بارکزيو ته ماته ورکړي نو دوى هم زموږ پر ضد دريځ ونيوى. دا خبره چي هر ډول وي، هغسي به وي خو کله چي درانيو وليدل چي موږ پر محمد عطا باندي حمله وکړه نو دوى هم خپل کمپ مات کړ او د خپلو وطنداړانو تر څنګ ودرېدل. خو دوى زموږ ګاونډ ته را نيژدې نه سول او داسي وخت راغلل چي د محمد عطا قواوو ماته خوړلې وه او دوى هم زموږ سره د مخامخ جګړې د مخنيوي په منظور ځانونه يو څه په څنګ وساتل. صفدر جنګ، محمد عطا او نورو له درانيو څخه مرسته وغوښتل او هغوى هم په ډېر درناوي ومنل. شهزاده سکندر د درانيو د مشرانو لاس ته ورغى خو موږ هغه وژغورى او مخکي له هغه چي صفدر جنګ ميدان ته را ورسېږي، شهزاده سکندر مو ښار ته ورساوه. ما په دغه ټوله موده کي له صفدر جنګ، ميرزا احمد او له نورو درانيو مشرانو سره تماس درلودى. که ما صفدر جنګ ته د وعدې ورکولو صلاحيت درلودلاى نو هغه ښايي بيرته پښېمانه سوى او راغلى واى. البته ما د هغه غوښتنه چي د کندهار حکومت يې غوښت نه سواى پوره کولاى. زه دا په زغرده منم چي د ميرزا احمد په باره کي غولېدلى وم. زه دا ويلاى سم چي هغه په خپلو وطنداړانو کي د لومړۍ درجې استعداد خاوند دى. ما داسي فکر کړى وو چي دى د خپلو خلکو او د برتانيې تر منځ د زور په تفاوت پوهېږي او ښايي خپلې شخصي ګټې يې دې ته راولي چي زموږ ملاتړ به وکړي. خو کله چي په کابل کي ښورښونه پيل سول نو ده ته به دا فکر ور پيدا سوى وي چي موږ حتماً ماته خورو نو ما چي ده ته د خلکو د کرار ساتلو وظيفه ورکړې وه، هغه يې په ښه توګه سر ته ورسول خو په ضمن کي يې خپله ډله هم د

دې له پاره تقویه کوله چې زموږ د ماتې په صورت کې به د افغانانو په هغه داعیه کې رهبري تر لاسه کړي چې مخکې یې زموږ تر نظارت لاندې فعالیت پکښې کاوه. زه له ډېره وخته د ده په دوه مخي پوهېدلم؛ خو بیا مې هم کوښښ کاوه چې دی په یو ډول راسره وساتم او که ما ته وظیفه نه وای راکړه سوې چې د ده رقیب میرزا ولي محمد ته د مالي چارو اداره وسپارم او د درانیو مشرانو په مقابل کې بله جبهه تقویه کړم، ښایي بیا مې هم دی تر یوه وخته کرار ساتلی وای. له دغه وخته څخه میرزا احمد د صفدر جنګ وزیر سو او خپل مخالفت ته یې دوام ورکړ. میرزا احمد په یوازې سر وکړای سوای چې د درانیو مخالفي ډلې سره یو کړي. د صفدر جنګ د جبهې مالي چارې په ښه توګه اداره کړي او دراني مشران د داسي حملې له کولو څخه را وګرځوي چې دوی ته یې د ماتې او تلفاتو خطر متوجه وي. په دغه موده کې چې میرزا احمد د خپلو قواوو په تنظیمولو لګیا وو؛ جنرال ناټ په کندهار کې د پنځو میاشتو له پاره مواد ذخیره کړل او د کندهار د کلا شاوخوا ځایونه یې ښه ترمیم کړل.

د جنرال الفینسټون مکتوب چې د ډسمبر پر پنځه ویشتمه یې لیکلی وو موږ ته د جنوري پر دوه ویشتمه را ورسېدی. د لیک راوړونکي د کابل په باب ښه معلومات درلودل. هغه وویل چې شاه شجاع په کابل کې پاچهي منلې ده. دې کار د کندهار درانیان زړور کړل او داسي اټکل یې وکړ چې ګواکي شاه شجاع د کابل د پاڅون ضمني ملاتړ کړی دی. د کندهار درانیو خپل یو استازی شاه شجاع ته واستاوه او له هغه څخه یې په کندهار کې پر موږ باندې د حملې کولو په باب هدایت وغوښت. درانیو موږ ته ولیکل چې شاه شجاع ستاسي له طرفدارۍ څخه لاس اخیستی دی او تاسي باید له کندهاره ووځئ او که و نه وځئ نو تر کابل به خراب حالات دربانديې راولو. ما د جنرال ناټ په موافقه ورته ولیکل چې موږ اوس هم د شاه شجاع طرفداران یو او تر کابل زیاته قوه په اختیار کې لرو او ستاسي مخه نیولای سو.

په کندهار کې (۶۰۰۰) داسي افغانان اوسېدل چې زموږ سره مخالف ول او له ښورښیانو سره یې اړیکې لرلې. په ښار کې د هغوی وجود موږ ته خطرناک وو. موږ فیصله وکړه چې هغوی باید له ښاره وباسو. د ښار شیعه ګان هر وخت د درانیو سره مخالف ول او زموږ یې ټینګه طرفداري کړې وه څکه مو په ښار کې د هغوی د پرېښودلو فیصله وکړه...

زه د نورو پېښو په باره کې یوازې دونه ویلای سم چې په تېرو دوو هفتو کې د بارکزیو یوې قوې، د ګرشک پر کلا باندې حمله وکړه خو بلوان سینګ هغوی پر شا کړي دي او موږ ته یې اطمینان راکړی دی چې تر څو پوري مهمات ورسره پاته وي، کلا ساتلای سي.



کندهار د لومړي افغان انگلیس جگړې پر مهال

جنرال ناټ پنځه کنډکه پیاده عسکر، شپاړس توپونه او زر سپاره ورسره واخیستل او د درانیو په جنگ ووت. زه یقین لرم چې د هغوی تر منځ به په نن او سبا کي یوه سخته نښته وسي. زه د والا

حضرت شهزاده تیمور له سلوک څخه راضي یم. دی په کابل کي زموږ په بد حالت خبر دی. له پلار څخه یې داسي لیک تر لاسه کړی دی چي زموږ سره د اعلیحضرت دښمني ښیي. ورور یې له ښورښیانو سره یو ځای سوی او ښورښیانو له ده څخه ځو ځله غوښتي دي چي له دوی سره یو ځای سي مگر دی تر اوسه پوري پر خپل دریځ باندي ټینګ ولاړ دی او زه هیڅ دلیل نه لرم چي موږ ته د ده د وفادارۍ په برخه کي شک را پیدا کړي. " (پیپرز مکتوب، ۲۵۱)

په کندهار کي پر انگرېزانو سربېره د ګاونډیو سیمو او ملکونو مشرانو او خلکو هم د غازیانو پر ضد تبلیغ کاوه او په جنګونو کي د دغو کسانو له مهارتونو څخه ګټه اخیستل کېدله. سِري کمېټي ته د ګورنر جنرال په رپوټ کي د سیستان، بلوچستان او د ګرمسیر د براهویانو نومونه اخیستل کیږي چي په جنګونو کي یې د ګرمسېر د درانیو د برخي اخیستلو په مخنیوي کي ډېر اغېزمن رول لوباوه. په دې رپوټ کي د اغا خان په نوم یوه ایراني مهاجر نوم راغلی دی چي ډېر زیات پوځي مهارت او تجربه لري او جنرال ناټ له هغه څخه هیله کړې ده چي د غازیانو پر ضد په جنګونو او د بې نظمه سوو شیعه جانبازانو په بیرته تنظیمولو کي برخه ورسره واخلي. اغاخان ته درې سوه سپاره ورکړه سوي دي او ګورنر جنرال وایي چي په راتلونکو پوځي عملیاتو کي به له جنرال ناټ سره ملګری وي. (هغه مکتوب)

که څه هم چي د (۱۸۳۹م.) کال د جون په میاشت کي له کندهار څخه د کابل پر لور د جنرال کین د لښکرو او شاه شجاع د حرکت په وخت کي، انګرېزان د غلجیو له مقاومت سره مخامخ سول او په جلال آباد کي هم له لویه سره، ناکرارۍ موجودي وې خو د (۱۸٤۱م.) کال په سر کي چي لا مکناټن د وضع له کرارۍ څخه ډېر خوشاله وو، د هلمند په ولایت کي درانیو قبایلو ښورښ ته لاس واچاوه. انګرېزي مؤرخین د دې ښورښ علت د نوي حکومت له خوا د درنو مالیاتو او باقیاتو حواله کول او د مالیاتو په ټولولو کي د حکومت د مامورینو بد سلوک ګڼي خو لکه څرنګه چي اجتماعي پاڅون یوې انګېزې ته ضرورت لري، دغه راز د هلمند او کندهار د درانیو قبایلو ښورښ هم یوې انګېزې ته اړتیا درلوده او د مالیاتو ټولول چي تر دې ډېر پخوا به هم د لویو جنجالونو د پېښېدلو علت کېدی، د کندهار په سیمه کي د پاڅون د پیل کېدلو یو علت سو. په زمینداور کي د پاچا د مالیاتو د مامورینو او له هغوی سره پر ورسره عسکري قوې باندي حمله وسوه او هغوی ځانونه په تېښته خلاص کړل. د ښورښ د ځپلو له پاره کپتان فارینګټن ور ولېږل سو او د درانیو له دوولسو څخه تر پنځلسو سوو سپرو پوري یوې قوې سره مخامخ سو. د درانیو د سپرو له پاره د انګرېزانو له

توپچي قوې سره مقاومت امکان نه درلود او د درانيو قوې ماته وکړه. کله چې راولنسن د دې پېښو ریوټ مکناټن ته ورکړ او هغه ته یې وویل چې خلک د وکیل څخه چې د مالیاتو د ټولولو مسؤل دی، په عذاب دي نو مکناټن په جواب کې ورته ولیکل چې ما له وکیل سره خبري وکړې او هغه راته وویل چې اعلیحضرت غواړي چې درانيان په خپلو دغو نامعقولو عکس العملونو کې حمایه سي. مکناټن وایي دا یوازي وکیل نه دی چې دا خبره یې وکړه بلکې نن سبا د وطن په هره گوښه کې دغه آوازه گډه ده. یوازي خدای پوهیږي چې ولې؟ خو دغه ډول آوازې د اعلیحضرت شخصیت ته تاوان رسوي. (کې، ص: ۵۷۶-۵۷۷)

داسي ښکاري چې انگرېزان له لومړیو ورځو څخه د شاه شجاع پر نیت او عمل باندي بدگومانه وه او مکناټن هسي بېځایه شک نه ښکاره کاوه. دې بدگوماني چې رښتیا وه که نه وه، تر پایه دوام وکړ او شاه شجاع خو خپل نارضایت په څرگنده ښکاره کاوه.

د درانيو د ښورښ لومړني مشران اختر خان او اکرم خان وه او یار محمد خان الکوزي، چې له انگرېزانو سره یې اړیکي خرابي سوي او له اېران سره نیژدې سوی وو، د خپل قدرت د زیاتولو له پاره، د درانيو پاڅون ته لاس را وغځاوه. مکناټن راولنسن ته ولیکل چې زه تر ډېره ځایه فکر کوم چې په دې ښورښونو کې یار محمد تر هغه چې ته یې فکر کوې، ډېر زیات لاس لري. زما له پاره به ممکنه نه وي چې له دوی سره د لارې د انتخابولو په باب قضاوت وکړم خو زموږ د نه ماتېدونکو وسایلو په مقابل کې باید داسي کسان مقاومت و نه کړای سي چې د بارکزیو له کمزوري قوت څخه ببرېدل. (هغه کتاب، ص: ۵۷۷)

په داسي حال کې چې په زمینداور او شاوخوا سیمو کې د درانيو تحریک روان وو، په لوېدیځ کې د غلجیو ناکراری هم ورځ په ورځ زیاتېدلې. په دې منځ کې مېجر لینچ له څو عسکرو او دوو صاحب منصبانو سره په کلات کې د یوه غلجي مشر پر کلا باندي چې هیڅ یې هم نه وه کړي، حمله وکړه. د کلا څښتن او د هغه پنځلس سړي یې قتل کړل. د مېجر لینچ دې عمل په هغه سیمه کې غلجي را وپارول. په کلات کې د یوه پوځي مرکز جوړول لازم سو. جنرال ناټ د هغوی د کرارولو او د مرکز د آبادولو له پاره کرنل وایمر له څلور سوه عسکرو او توپچي قوې سره ور واستاوه. د غلجیو یوه لوی مشر گل محمد خان چې په گلو مشهور وو، حمله ورباندي وکړه خو د غلجیو قوې د انگرېزانو د توپونو په مقابل کې مقاومت نه سوای کولای. تر پنځه سوه تنه تلفاتو

ورکولو وروسته یې له مقاومت څخه لاس واخیست؛ مګر هغه سیمه بیا هیڅ وخت کراره نه سوه. مېجر لینچ په دې ګناه چي غلجي یې په لوی لاس لمسولي ول، له سیاسي استازیتوب څخه برطرفه سو او الیکزانډر برنس هغه ته ولیکل چي زه هر وخت په دې عقیده وم او اوس هم په دغه عقیده یم چي افغانستان هیڅ وخت د وسلو په زور کرارېدلای نه سي. (هغه کتاب، ص: ۵۹۲)

غلجیو او درانیو دواړو د شاه شجاع او د هغه د ملاتړ کوونکو پر ضد وسلو ته لاس اچولی وو. لوېدیځ افغانستان په ډېر وېرونکي حالت کي وو او مېجر راولنسن لیدل چي حالات څومره نازک دي او چي کابل ته یې هر څه لیکل، مکناټن غوږونه ورباندي کاڼه کړي وه او ده ته یې هر وخت لیکل چي دغه راز مکتوبونه ورته را وا نه ستوي. (هغه کتاب، ص: ۵۹۴)

د افغانستان د ټولو چارو واک مکناټن ته سپارل سوی وو او هغه دونه ساده سړی وو چي تر مرګه یې نه افغانستان او نه د افغانستان خلک وپېژندل او تر پایه پوه نه سو چي انګرېزان ولي په افغانستان کي له دونه ستونزو سره لاس و ګرېوان دي. یوه ورځ یې راولنسن ته ولیکل چي د افغانانو له قومي مشرانو سره زموږ حالت په هیڅ توګه د رضایت وړ نه دی. دوی ډېر ناپوه او سرټمبه خلک دي. یو مشر به ګورې چي نن موږ ته د زړه له کومي او تر ټولو وفادار وي خو سبا چي یو شیطان سړی په پوست ورننوځي، زموږ دښمن به ورڅخه جوړ کړي.

د اختر خان په باره کي یې راولنسن ته ډېر زیات لیکونه ولیکل او راز راز هدایتونه یې ورکړل خو تر آخره پوري نه د اختر خان په زور خبر سو او نه یې هغه وپېژاند. کله به یې ویل چي هغه هیڅ شی نه دی او په ډېره اساني له منځه وړل کېدلای سي. کله به یې ویل چي هغه په لس زره روپۍ اخیستل کېدلای سي او کله به یې له هغه څخه تر ټولو خطرناک دښمن جوړ کړ. یوه ورځ یې راولنسن ته ولیکل چي ته څه فکر کوې؟ که ته اختر خان ته یو پټ او د اعتماد وړ سړی واستوې او ورته ووایې چي ستا ټولي خطاوي به در معاف کړو خو په دې شرط چي ته موږ ته ټول هغه کسان را په ګوته کړې چي ستا سره یې په کندهار کي مرستي کړي دي. که څه هم چي دی ډېر دروغجن او سپک سړی دی خو زموږ مطلب دی نه دی بلکي مطلب مو د ښورښونو کرارول دي. کله چي ده هغه کسان موږ ته را وښودل نو هغوی ټولو ته به داسي سزا ورکړو چي د نورو خلکو له پاره عبرت سي او بیا داسي څوک پیدا نه سي چي په خپله کرار ناست وي او زموږ پر ضد لمسوني کوي.

سړی نه پوهېږي چي دومره ساده سړي ته څرنګه د افغانستان په څېر یوه سرکښه هیواد د اداره کولو چاري سپارل سوي وې چي تر مرګه یې د دې هیواد قومي مشران و نه پېژندل او د یوه لوی قام

له یاغي مشر څخه یې په یوه معافي جاسوس جوړاوه.

د راولنسن په سویه هوښیار سړي ته په یوه بل لیک کې یې داسي د ماشومانو په سویه خبري لیکلي دي چي سړی یې د خوب له حاله هم نه کوي. دی هغه ته لیکي چي پرون ماښام مي له اعلیحضرت سره ډېري زیاتي خبري وکړې او په دا منځ کي د عطا خان او سیدال خان د ژر نیولو د ضرورت خبره راغله. اعلیحضرت زما د نظر په مقابل کي یوه خبره وکړه چي ډېره قانع کوونکې وه. ده وویل چي ما دې سپیانو ته یو وخت د ډېرو درنو کسانو په خوله بلنه ورکړې ده. که زه اوس دوی ونیسم نو بیا به سبا څوک زما په قول او خبره باور وکړي؟ نو اوس به دوی همداسي تر تعقیب لاندي وي او له قدرت او له پیسو څخه به بې برخي وي. اعلیحضرت په پای کي وویل چي که ته غواړې یو ړوند سړی تباه کړې نو وژنه یې مه بلکي لکړه ورڅخه واخله. (هغه کتاب، ص: ۵۹۶-۵۹۷)

سړی نه پوهېږي چي د شاه شجاع غریب د خبرو منطق په کوم ځای کي دی چي مکناټن ته یې داسي قناعت ورکړی دی چي د دښمنانو له نیولو څخه یې لاس اخیستی دی.

د پاڅون په درانیو مشرانو کي یو هم د دهراود اوسېدونکی اکرم خان وو چي له اختر خان سره یې ټینګې اړیکي درلودلې او د (۱۸۴۱م.) کال د پسرلي څخه یې سیمه ټوله ناکراره کړې وه. هغه د پاچا او انګرېزانو له خوا هر ډول بلني رد کړې وې او نیول یې هم اسانه کار نه وو. د آګسټ په میاشت کي یې د سیمي د یوه اوسېدونکي جاسوس په واسطه چي له انګرېزانو څخه یې یو څو طلاوي په رشوت کي اخیستي وې، د هغه د پټېدلو ځای کشف کړ او کپتان جان کانلي ګرفتار کړ. کندهار ته یې راوست او د شهزاده تېمور په امر یې په توپ کي والوزاوه. (هغه کتاب، ص: ۶۰۴)

له کابل څخه د انګرېزانو د پوځ له وتلو او جلال آباد ته په لاره کي د بشپړ تباه کېدلو څخه وروسته، په کندهار کي هم پاڅون زور واخیست. جنرال ناټ په کندهار کي سیاسي استازي مېجر راولنسن ته ولیکل چي ټول هیواد د شورښ په حالت کي دی او یوازي زموږ د پوځي قواوو تمرکز دی چي زموږ د پوځ کنډکونه یې له بشپړي تباهۍ او د کندهار ښار یې له محاصره کېدلو څخه ساتلي دي. (هغه کتاب، ص: ۴۰۳)

له هغه لیک څخه چي جنرال ناټ، له کندهار څخه د (۱۸۴۲م.) کال د مارچ پر دوولسمه د ګورنر جنرال دفتر ته لېږلی دی، ښکاري چي په کندهار او شاوخوا کي شورښ ډېر په زور کي وو. جنرال ناټ د ارغنداو د رود پر غاړه د غازیانو شمېر تر دوولسو زرو پوري او د منظمو سپرو شمېر

يې (۶۰۰۰) تنه بولي. ناټ ليکي چي افغانانو زموږ د توپچي قوې په مقابل کي د مقاومت کولو توان نه درلودی او په لږ وخت کي سره وپاشل سول. ناټ په همدغه ليک کي وايي چي د ده په غياب کي، په همدغه وخت کي د افغانانو يوې بلي قوې د کندهار ښار محاصره کړې وو او يوې دروازې ته يې اور اچولی وو. (پېپرز مکتوب، ۲۵۲)

له دې ليک څخه ښکاري چي يوازي د کندهار په ښار کي د غازيانو شمېر بايد تر شل زره اوښتی وي. دا وخت په هلمند، روزګان، کلات او له کلات څخه وروسته تر کابل پوري ټوله سيمه په ښور کي وه.

ناټ له دې حملې څخه وروسته د عطا محمد خان لښکري تعقيب کړې او رپوټ وايي چي ياغيانو بيا هم د مقاومت توان نه درلودی؛ غلجيو يوې خوا ته او جانبازانو بلي خوا ته وځغستل. د کليو خلک په کورونو کي پټ سول او د کلاچې په نوم کلي چي له کوهک سره نيژدې پروت او مستحکمه کلا يې درلوده، محاصره سو. عطا محمد خان د کلي د ژغورلو کوښښ وکړ خو پر شا تللو ته مجبور سو او ميدان يې پرېښود. د انګرېزانو پوځونه کلي ته ننوتل او ټول نارينه، ښځې او ماشومان يې قتل کړل. (کې، ص: ۴۰۴)

په دغه وخت کي شهزاده تېمور ته د شاه شجاع ليک را ورسېدی او دا په خپله په کندهار کي څکه تر ټولو مهمه پېښه وه چي پر هر څه باندي يې اغېزه کوله. شاه شجاع خپل زوی ته ليکلي وه چي اوس جنګ د پيغمبر د امتيانو او کافرانو تر منځ دی. د کابل خلکو د رايو په اتفاق دی د پاچا په حيث انتخاب کړی دی او زما هيله دا ده چي د کندهار د اوضاع په باره کي هر وخت احوال رالېږه. شهزاده تېمور د ليک د اخيستلو او لوستلو سره سمدستي وويل چي دا ليک جعلي دي؛ مګر راولنسن چي د خطونو په لوستلو او تشخيصولو کي يې خاص مهارت درلود، حکم وکړ چي ليک اصلي دی. (ايکسپيډيشنز، ص: ۴۱۱)

دې ليک د درانيو پر روحياتو باندي ډېره ښه اغېزه وکړه او راولنسن ته يې احوال واستاوه چي که زموږ پاچا هم ستاسي سره مخالف وي نو تاسي په افغانستان کي د پاته کېدلو له پاره څه دليل لرئ؟

ناټ فيصله کړې وه چي که له افغانستان څخه وځي نو هم به د کوټي له لاري نه بلکي د کلات او غزني له لاري وځي او چي تر څو پوري يې له جنرال پالک سره خپل ټول پلان تنظيم کړی نه وي، له کندهاره به حرکت نه کوي. د مې د مياشتي په وروستيو شپو ورځو کي د افغانانو حملو بيا زور واخيست او د بابا ولي له کوتل سره يې مورچې ونيولې. ناټ له ښار څخه حرکت و نه کړ او

غازیانو فکر وکړ چې انګرېزان د کمزورۍ او بې زړه توب له امله حرکت نه کوي. خپل مورچلونه یې پرېښودل او مستقیم د کندهار پر ښار باندي راغلل. د مې پر نویشتمه د جنرال ناټ او د غازیانو تر منځ په سخته نښته کي چې انګرېزانو بیا هم له توپچي قوې څخه زیات کار واخیست، غازیانو ماته وکړه او ډېر سخت تلفات ورته ورسېدل. ویل کیږي چې په دغه جنګ کي د اکرم خان، چې په کندهار کي اعدام سوی وو، کونډه د خپل مېړه پر آس سپره وه او بیرغ په لاس جنګېدله. لیفټینیټ راټرې په خپلو یاداښتونو کي لیکي: "د افغانانو په لښکرو کي مې یو سپین شی تر سترګو سو چې د غازیانو د لښکر د لومړي صف په مابین کي یې ځای نیولی وو او غازیان، مشران، ملایان، ډول وهونکي او بیرغ وړونکي ټول ورباندي را څرخېدل. وروسته معلومه سوه چې دا د هغه وژل سوي قهرمان اکرم خان مېرمن ده. دې خپله برقه غورځولې وه، ښځینه محیط یې پرې ایښی وو، د خپل مېړه پر آس سپره وه، د هغه بیرغ یې په لاس کي اخیستی وو او قبایل یې زموږ سره جنګ ته تشویقول." (کې، ص: ۵۸۸)

له دغي نښتي څخه وروسته صفدر جنګ ته د خپل مشر ورور فتح جنګ لیک ورسېدی او له ده څخه یې غوښتي وه چې له ښورښیانو سره د ملګرتوب څخه لاس واخلي او بیرته کندهار ته ستون سي او له انګرېزانو او شهزاده تېمور سره روغه وکړي. البته په وروستیو جنګونو کي د غازیانو پرله پسې شکستونو هم ښایي صفدر جنګ نا امیده کړی وي او له راولنسن څخه یې غوښتي وي چې دی غواړي بیرته کندهار ته ستون سي. ده راولنسن ته لیکلي وه چې آس یې تیار ځین کړی دی او غواړي چې د انګرېزانو کمپ ته ولاړ سي؛ مګر مخکي له هغه چې د راولنسن جواب ورته ورسېږي، میرزا احمد او نور مشران په خبر سول او دی یې د رود هغه بلي غاړې ته واړاوه. قومي مشرانو دی بندي کړ او په ښکاره یې خاین وباله. مګر د ده په عزم کي تغیر را نه غی او بیا یې هم له راولنسن سره تماس ونیوی او بالاخره له قومي مشرانو څخه وتښتېدی. راولنسن جنرال ناټ ته اطلاع ورکړه او هغه د صفدر جنګ تسلیمېدل ورسره ومنل. راولنسن له فارسیوانو سپرو سره د بابا ولي کوتل ته ورغی او صفدر جنګ یې د جون پر نولسمه کندهار ته راووست او د ښار خلکو یې ډېر تود هرکلی وکړ. (کې، ص: ۵۸۹-۵۹۰)

انګرېزي منابع د شهزاده تېمور د شخصیت په باره کي تقریباً په یوه نظر دي. دوی وایي چې هغه چنداني بد سړی نه وو او پر خلکو یې د فتح جنګ او صفدر جنګ په څېر تېری او ظلم نه کاوه؛ خو دومره بې زړه او بې ارادې سړی وو چې په هیڅ توګه د حکومت کولو له پاره جوړ نه وو.

انګرېزانو غوښتل چې له کندهاره څخه د وتلو په وخت کې تېمور ورسره واخلي او هندوستان ته یې ورسره بوځي. تېمور دا ساعت له خدایه غوښت او په خپله یې له هغوی څخه وغوښتل چې که هغوی له کندهاره څخه وځي نو دی هم له هغوی سره یو ځای له ښاره وځي.

انګرېزانو د اګسټ پر اوومه ښار تخلیه کړ. د ښار د تخلیه کولو او د دوی د وتلو په وخت کې هیڅ ډول پېښه را منځته نه سوه او عسکر په ډېره ارامه توګه ووتل؛ د دوو ورځو له پاره د کلا له دېوال څخه دباندې دمه سول او اګسټ پر نهمه یې د کابل پر لور حرکت پیل کړ. او شهزاده صفدر جنګ او عطا محمد خان بامیزي ته یې د کندهار حکومت پرېښود. د کندهار سردارانو چې د دغې ورځې په انتظار، په ایران کې تیار ناست ول، سره له هغه چې په تېرو درو کالو کې یې د انګرېزانو د ایستلو په جنګونو کې هیڅ ډول برخه نه وه اخیستې، سمدستي د کندهار پر لور حرکت وکړ. که څه هم چې د کندهار خلکو خو د سردار کهندل خان له ادارې څخه هیڅ ډول ښه خاطره نه درلوده؛ خو د صفدر جنګ پلار او ټوله کورنۍ یې د انګرېزانو نوکران بلل او یو ځل مخکې یې د صفدر جنګ د ظالمانه حکومت او تېریو مزه څکلې وه نو د کهندل خان راتګ ته یې ښه راغلی وواېه. عطا محمد خان بامیزي چې د صفدر جنګ د وزیر او ښی لاس حیثیت یې درلود، هم د کهندل خان خوا ته واووښت او صفدر جنګ له ښار څخه د تېښتې پرته بله هیڅ لاره نه درلوده.

تاریخي متونو د صفدر جنګ په باب چنداني څه نه دي لیکلي خو ځینې منابع وایي چې هغه کلات ته ولاړ او باقي ژوند یې د بلوڅو په سیمه کې تېر کړ خو د نوای معارک په شمول ځینې منابع وایي چې هغه کهندل خان ونیوی او نوره پته یې و نه لګېده.

د نوای معارک لیکوال لیکي چې سردارانو کندهار ته له راتللو سره د خپلې ادارې پخوانی شکل بېخي بدل کړی وو. عدالت ته یې مخه کړه. خلک یې له ښه سلوک او ښو اخلاقو څخه بې اندازې خوشحاله ول او د خدای شکرونه یې ادا کول. شراب څښل او خرڅول یې منع کړل او له شریعت سره سم یې د خلکو د اداره کولو او د اعمالو د څارلو له پاره، په ښار کې محتسبان مقرر کړل خو چې یو څو ورځې تېرې سوې او دوی سترېیا واچول نو بیرته هغه آش هغه کاسه سوه. هغه پخوانی کهندل خان او هغه پخواني ظلمونه سول. لومړی یې د ښار له خلکو څخه د کمپنۍ پیسې واخیستلې او په خپل نامه یې سکه جاري کړه او له هرې روپۍ څخه یې دوې روپۍ جوړې کړې او نور یې بیرته هغه پخوانۍ اداره سوه او هغه د کندهار خلک. (عطا محمد، ص: ۱۸۸-۱۸۹)

چې خدای به مو د مسلمانانو په لاس قتل کړي او د دې ناروا عمل سزا به ووینی. (فاریسټ، ص: ۱۳۵-۱۳۴)



غزني د انګرېزي قواي د راتګ پر مهال

چمبرلین وایي دا ثابته وه چې د سلطان محمود د قبر دروازې د سومنات سره هیڅ اړه نه لري او د مسلمانانو له زیارت څخه د دروازو ایستل او هغه د بت پرستانو په معبد کې نصبول ډېر لوی مذهبي توهین وو چې په اخلاقي لحاظ یو جنایت او په سیاسي لحاظ یوه غلطي وه مګر ګورنر جنرال امر کړی وو چې د سلطان له مقبرې څخه به د هغه ګروز او د مقبرې دروازې باسی او موږ د هغه د امر تابع وو. (هغه کتاب، ص: ۱۳۵)

چمبرلین وایي چې د سپټمبر پر لسمه یې له غزني څخه حرکت وکړ او پر پنځلسمه د میدان علاقې ته ورسېدل. دی وایي چې په ټوله لاره کې غازیانو پر کراره نه یو پرې ایښي او حملې او ډزې رواني وې. چمبرلېن وایي میدان په افغانستان کې یوه له تر ټولو ښایستو سیمو څخه ده او خلک یې زموږ له ورتللو څخه مخکې وتلي وه. دی وایي هندوستاني عسکر پر افغانانو باندې دونه په غوسه

وه چي په علاقه کي يې هيڅ آبادي پرې نه ښودله او چي هر څه يې ليدل، نړول او تباه کول يې. (هغه کتاب، ص: ۱۳۶)

يوه منبع خو وايي چي عسکرو او د کمپ نوکرانو يوازي شپږويشت کلاوي وسوځولې او ټوله شپه يې لمبې اسمان ته پورته کېدلې. (کې، ص: ۶۰۹)

جنرال پالک د سپټمبر پر پنځلسمه کابل ته ننووت او له هيڅ ډول مقاومت سره مخامخ نه سو. په سبا يې امر وکړ چي د انګرېزانو بيرغ دي پر بالاحصار پورته سي او د توپونو ډزي دي وسي څو خلکو پوه سي چي موږ بيا هم په کابل کي يو. ضمناً فتح جنګ هم کابل ته ورسېدی او د پاچهۍ د تخت د نيولو له پاره کانديد پيدا سو خو جنرال پالک او ميګريګور دواړه په دې عقيده وه چي انګرېزان د هيوادونو په چارو کي مداخله نه کوي او خلک بايد خپل مشر په خپله وټاکي او انګرېزان غواړي چي په کابل کي يوه اداره موجوده وي چي د دوی د وتلو په وخت کي ضروري مواد ورته برابر کړي. (سړی چي د انګرېزانو د مداخلې نه کولو خبري اوري نو په دې عقيده سي چي د استعماري قوتونو په کلتور کي لکه چي د سره حيا نسته. جنرال پالک او جنرال ناټ له تقريباً دوولسو زرو پوځونو او درنو وسلو سره کابل ته ننوتلي دي. بالاحصار يې اشغال کړی او خپل بيرغ يې ورباندي درولی دی. له ځان سره يې فتح جنګ راوستلی او له خلکو څخه بيعت ورته اخلي؛ مګر بيا هم وايي چي د دوی پاليسي د هيوادونو په چارو کي مداخله نه مني.) جنرال پالک له مشرانو څخه وغوښتل چي هغه ته بيعت وکړي خو فتح جنګ دونه بې زړه وو چي له جنرال پالک څخه يې غوښتنه وکړه چي هغه بايد تر بالاحصار پوري بدرګه کړي. بيرته هغه پخوانۍ صحنه تکرار سوه. فتح جنګ د جنرال پالک او جنرال مک کيسکل په منځ کي روان وو او هغوی پر تخت کښېناوه. مبارکي يې ورته ووېل او توپونو شاهي سلامي وکړه. جنرال پالک له بالاحصار څخه ولاړ او د خپل کمپ سياسي استازی ميګريګور يې هغه ته واستاوه او مستقيماً يې پوه کړ چي خپله پاچهي بايد په خپله سمبال کړي ځکه چي انګرېزان له ده سره نه د سړيو، نه د وسلو او نه د پيسو مرسته کولای سي. (کې، ص: ۶۱۰-۶۱۳)

## بنديان

پر افغانستان باندي د انګرېزانو د مداخلې له لومړي سره، په تېره بيا د پاځون د پيل له وخت څخه موهن لال د هغوی له پاره نه هېرېدونکي او حياتي خدمتونه وکړل. هغوی د ضرورت په وخت کي

ښه مکتوبونه ورته ولیکل مګر کله چې له افغانستانه ووتل او هند ته ورسېدل نو ټولي سختي شپې یې هېري کړې. خپل جنرالان او افسران یې ونازول او موهن لال یې تقریباً هېر کړ. موهن لال که څه هم چې څان د انګرېزانو وفادار تبعه بولي مګر هغوی د هندو په سترګه ورته کتل او دغه سلوک تر پایه دوام وکړ.

موهن لال د انګرېزي بندیانو په خوشي کولو کي دونه مرسته وکړه چې که دی نه وای، ښایي د هغوی خوشي کول به انګرېزانو ته څو چنده ګران تمام سوی وای. اکبر خان کابل ته د جنرال پالک د نیژدې کېدلو سره سم خپل بندیان بامیان ته واستول او د صالح محمد په نوم یو څوک یې، چې په لومړي سر کي د انګرېزانو ملګری او وروسته له ده سره ملګری سوی وو، له ډېري غښتلي قوې سره وربانديي ودراوه. موهن لال د سید مرتضی شاه کشمیري پر لاس له صالح محمد سره تماس ټینګ کړ او هغه ته یې شل زره روپۍ انعام او تر مرګه پوري له کاله زر روپۍ تنخوا ومنله او وعده یې ورسره وکړه چې انګرېزان به د ده ټول پخواني عملونه ورته معافوي. (موهن لال، دوهم جلد، ص: ۴۷۲)



موهن لال

په خپله په بامیان کي هم بندیانو یو څه فعالیت کړی وو. په دوی کي تر ټولو فعال کپتان جانسن وو چي له صالح محمد سره یې دایمي تماس ساتلی وو او د هغه پر ټولو لاپو شاپو او رښتیا او دروغو کیسو به یې غوږ نیولی وو. د سپټمبر پر لسمه صالح محمد کپتان جانسن، لارنس او پوټینجر را غونډ کړل او هغوی ته یې دوه لیکونه ورښکاره کړل. یو د سردار محمد اکبر خان لیک وو چي له صالح محمد څخه یې غوښتي وه چي انګرېزان د شمال لوري ته بوځي او هلته یې اوزبکانو ته تسلیم کړي چي د غلامانو په بازارونو کي یې خرڅ کړي. بل د موهن لال لیک وو چي له ده سره یې د بندیانو د خوشي کولو په بدل کي د ښو ډېرو پیسو او تر مرګه پوري د کلنی تنخوا وعده کړې وه. دریو واړو افسرانو ورته وویل چي د انګرېزانو وعده رښتینې او جدي ده او له هره درکه د ده په ګټه ده؛ نو ځکه باید هغه ومني او عمل پر وکړي.

دا وخت د خان شیرین خان قزلباش هغه شپږ سوه وسله وال ملېشه هم ورته را ورسېدل چي موهن لال یې ترتیب نیولی وو. په دې توګه د اکبر خان له پاره د بندیانو په زور بېول یو څه ګرانه خبره سوه. بندیان بالاخره د سپټمبر پر اووه لسمه کابل ته ورسېدل. په کابل کي انګرېزي عسکرو د توپونو په ډزو سلامي ورته وکړه او د خوښی په چیغو یې هرکلی وکړ.

که له جنګي بندیانو سره د سلوک خبره د کوم بین المللي قانون یوه برخه وي نو اکبر خان پرته له دې چي په دې برخه کي له هیڅ بین المللي قانون څخه خبر وو، د خپلو بندیانو ماتي او له کابل څخه د حرکت کولو څخه لږ وروسته غوښتل چي ټول انګرېزي صاحب منصبان کرار کرار ده ته تسلیم سي خو هغوی په خپله و نه غوښتل چي د اکبر خان کمپ ته ځان وسپاري او په نتیجه کي تقریباً ټول قتل سول.

جورج لارنس چي له اکبر خان سره بندي وو او یو ځل یې جنرال پالک ته د خبرو له پاره هم واستاوه، خپل ورور هنري لارنس ته ولیکل "... موږ ټول روغ جوړ یو او ډېر ښه سلوک راسره کېږي. زما له قوله خلکو ته ووایه چي زموږ سره سردار له لومړۍ ورځي، تر اوسه پوري له مهرباني ډک سلوک کړی دی. هیڅ اروپایي هیواد به د جنګ له بندیانو سره تر دې بهتر سلوک نه وي کړی. زه دا خبره په پوره زړورتوب کوم. په بهر کي داسي احساس موجود دی چي زموږ سره بده رویه کیږي مګر دا خبره بالکل غلطه ده. که د اکبر خبره سي نو هغه د ډېرو نورو کارونو مسؤلیت لري او باید

چي جواب يې ووايي. الفينسټون که په بديع آباد کي پاته واى هم ژوندى نه پاته کېدى. تيزين ته د هغه انتقال د هغه له مړيني سره هيڅ اړه نه لري." (ايډوردز، ص: ٣٩٥)

لوستونکو ته دي معلومه وي چي موهن لال د اليکزانډر برنس منشي د هغه له وژل کېدلو څخه وروسته بيا تر هغه وخته پوري چي د اکبر خان په لاس کښېوت، د انګرېزانو کمپ ته د کابل د حالاتو رپوټونه ورکول. د افغانانو په منځ کي يې د بې اتفاقي اچولو له پاره پيسې شيندلې؛ حتى د ځينو مشرانو د قتلولو له پاره يې قاتلان استخدام کړل. مګر کله چي د اکبر خان لاس ته ولوېدى په خپله موهن لال وايي چي اکبر خان څو ځله ماښامنى ډوډي ته بلنه راکړه او حتى د خپل ژوند د تر ټولو مهم تصميم په باب يې، چي د جنرال پالک په مقابل کي د دريځ غوره کول وه، سلا مشوره ورسره کوله. (موهن لال، دوهم جلد، ص: ٤٥٥)

سر جان کې له انګليسي بنديانو سره د اکبر خان د سلوک په باره کي ليکي "د کابل څخه تقريباً درې ميله ليري د لوګر د سيند پر غاړه، د قزلباشو د يوه مشر علي محمد کلا وه. اکبر خان بنديان دغي کلا ته ولېږل او علي محمد يې مجبور کړ چي خپلې ښځي او ماشومان کوم بل چيري بوځي. په دې کلا کي بنديان په هغو اتاقونو کي چي مخکي د علي محمد د کور مېرمني او ماشومان پکښي اوسېدل، ځاى پر ځاى سول. دا تر ټولو هغو ځايونو پراخ او بهتر وو چي بنديانو ته تر دغه وخته برابر سوي وو. بنديانو د علي محمد په کلا کي نسبي آزادي تر لاسه کړه. دوى يو لوى باغ درلود چي په هغه کي يې خپل بدني تمرينات او سپورټونه کول. دوى هم د قدم وهلو له پاره پراخه ساحه درلوده او هم يې د باغ له مېوو څخه ګټه اخيستله. دوى کولاى سواى چي په رود کي ولامبي او غسلونه وکړي. دوى کولاى سواى چي د خپلو دوستانو د ليدلو له پاره بالاحصار ته ولاړ سي او يا هغوى ورته راسي. ډېرو ته د کابل له خلکو څخه د پيسو پورولو زمينه برابره وه او د ډېرو داسي فيشني شيانو خريداري يې کولاى سواى چي له دغه څخه مخکي يې په بديع آباد کي نه سواى اخيستلاى. دوى له جلال اباد، هندوستان او اينګلينډ څخه خطونه تر لاسه کول او هيڅا يې له خطونو سره غرض نه کاوه. دوى هم د فکر کولو له پاره وخت درلود او هم يې د بحث له پاره زمينه درلوده. هره ورځ له جلال اباد او کابل څخه په يوه ډول نه يوه ډول احوالات ورته راتلل. ژوند چنداني بد نه وو او دوى د مغزي کار له پاره ډېر زيات وخت درلود او د بدن د تمرين له پاره ټوله ورځ ور فارغه وه. که يوازي د ځينو ملګرو د ناروغه کېدلو ستونزه نه واى او دا چي کله کله به دوى ته احوال ورسېدى چي ښايي اکبر خان يې ترکستان ته واستوي، نور نو د هيڅ شي غم نه وو." (کې، ص: ٥٥٠)

جورج لارنس لیکي: "کله چي یې موږ په کلا کي ځای پر ځای کړو نو محمد اکبر خان د مېرمنو لیدلو ته ورغی او ماته یې وویل چي د ده له طرفه د مکناټن مېرمني ته، چي ده خاص درناوی ورته درلود او نورو مېرمنو ته ووایه چي دوی د ده قدرمني مېلمنې دي او چي هر څه له ده څخه غواړي، دی به یې ورته حاضر کړي او چي هر کله لاري محفوظي سوې نو دی به هغوی جلال آباد ته واستوي او ضمناً دوی کولای سي چي په ازادانه توگه خپلو دوستانو ته لیکونه واستوي. کله چي ما د ده له یوه نوکر د لاسه شکایت ورته وکړ چي ما ته یې سپکي خبري وکړې نو ده هغه ښه ډېر وواهه او بیا یې ما ته وویل چي که دغه وهل بس نه وي نو که زما خوښه وي غوږونه به یې ورڅخه پرې کړم. ده خپلو نوکرانو ته مخ ور واړاوه او ټولو ته یې خبرداری ورکړ چي که هر څوک په دوی کي چا ته سپکاوی وکړي، سزا به یې تر دغه بدتره وي. ده وروسته ما ته وویل چي د هغو شیانو یو لیست ورته برابر کړم چي موږ هره ورځ ضرورت ورته لرو او موسی خان ته یې هدایت ورکړ چي دوی ته د اړتیا وړ شیان برابر کړي او د دوی د غوښتنو پوره کولو ته بشپړه توجه وکړي. ما د مکناټن د مېرمني په غوښتنه، هغه ښکلی خړ آس چي په مکناټن یې اړه درلوده او اوس به زه ورباندي سپرېدلم، اکبر خان ته هدیه کړ. موږ ده ته یو طلایي ساعت هم ورکړ او سلطان جان ته مو د الماسو انگشتري ورکړه. (لارنس، ص: ۱۷۳)

لارنس وایي د جنوري پر درویشتمه د یکشنبې په ورځ، چي موږ د عبادت مراسم پای ته ورسول نو محمد اکبر راغی او کله چي ما ورته وویل چي موږ پیسو ته ضرورت لرو نو ده سمدستي زر روپۍ راکړې او کله چي ما رسید ورته ولیکی نو هغه څیري کړ او ویل چي دا شیان د سوداگرو تر منځ وي، نه د شریفو خلکو تر منځ. (هغه کتاب، ص: ۱۷۴)

حتی کله چي یې بندیان له بدیع آباد څخه شېوکی ته، د علي محمد کلا ته نقلول نو لارنس اعتراض وکړ چي تر څو پوري د ښځو له پاره کجاوې او اوښان برابر نه سي، موږ له دې ځایه حرکت نه سو کولای. اکبر خان ورته وخندل او ویل یې، تاسي هم عجیب بندیان یاست.

لارنس بل ځای لیکي کله چي محمد اکبر زه ولیدلم چي پیاده روان یم نو دوه آسونه یې راته را ولېږل خو ما هغه نورو عسکرو ته، چي پښې یې زخمي وې او په ډېر زحمت پر لاري تلل، ورکړل. د مارش په پای کي محمد اکبر ما ته وویل چي لارنس صاحب ما تا ته آسونه در ولېږل او تا نورو کسانو ته ورکړي دي. ستا د درجې او کارنامو سړی باید پیاده ولاړ نه سي. ما ورته وویل چي سرداره

بندي هيڅ درجه نه لري او تا چي زما مشر را مړ کړ نو زما څخه دي ټولي کارنامې واخيستلې. سردار ومسل او ويل يې که دي دغه آس هم بل چا ته ورکړ نو جريمه کوم دي او ما هم آس ورڅخه ومانه. سردار ته به چي ما هر څه ويل هغه به ښه تعبيرول او زما سره يې بېحده ښه سلوک کاوه. زه چي به هر وخت مجلس ته ورغلم، دی به ماته له ځايه پورته کېدی او زه به يې تر ټولو مشرانو پورته خپل ښي لاس ته کښېنولم. (هغه کتاب، ص: ۱۸۹)

ما د نړۍ په هيڅ متمدن هيواد کي له جنګي بنديانو سره دغه راز سلوک نه لوستی او نه مي اورېدلی دی. هغه صاحب منصبان او عسکر چي د اکبر خان په لاس کي بنديان ول، ټول د ده د وطنوالو قاتلان ول او ده له هغوی سره د خپلي کورنۍ د غړو په څېر سلوک غوره کړی وو. همدغو انګرېزانو څو مياشتي وروسته په ننګرهار، کابل، استالف، چاريکار، غزني، مقر او کليو او بانډو کي هغه جنايات وکړل چي د دوی خپل ليکوالان او قوماندانان په شرمېدل. په يوويشتمه پېړۍ کي له جنګي بنديانو سره د امريکا په څېر يوه متمدن هيواد سلوک زموږ د ټولو په مخ کي تېر سوی دی او تکرار ته يې حاجت نسته.

## انتقامي عمليات

وزير محمد اکبر خان تر هندوکش اوښتی او امين الله خان استالف ته پر شا سوی وو. که انګرېزي پوځونو ټول افغانستان، کلي په کلي، اشغال کړی هم وای، د انګرېزانو له پاره د دې دوو کسانو نيول ممکن نه وه. خو ناټ او پالک تر دغه وخته د کليو او ښارونو په سوځولو او د بې ګناه انسانانو په قتلولو زړونه ساړه کړي نه وه او لا يې هم عمليات په مخ کي وه. که څه هم چي د کليو سوځول او د خلکو وژل او بې ځايه کول خو په هر صورت جنايت دی خو که کوم هيواد او يا جنرال يوازي د خپل زور د ښکاره کولو او کسات اخيستلو له پاره کلي او ښارونه سوځوي، دا نو يوازي جنايت نه بلکي وحشت هم دی.

نيويل چمبرلين چي د جنرال ناټ له قوي سره ملګری وو، په شمال کي د انګرېزي پوځونو د عملياتو جريان ليدلی دی او وايي چي موږ د سپټمبر پر شپږويشتمه د استالف پر لور حرکت وکړ. د جنرال ناټ له پوځ څخه څلور ټولي او د جنرال پالک له پوځ څخه يوه لواء، د جنرال مک کيسکل تر قوماندی لاندي روان سوو. چمبرلين د استالف د ښکلو منظرو، شنو غونډيو، له راز راز انګورو

ډکو باغونو او د هغوی په څنګ کې د روانو ویالو بیان کوي او بیا پر هغه ښار او کلیو باندې د حملې خبرو ته راځي.

دی وایي د سپټمبر پر نویشتمه مو عملیات پیل کړل. دښمنان مو له باغونو و ایستل او هغوی غونډیو ته پورته سول. غونډۍ مو یوه په بله پسې ونیولې او دوی مو تر ډېرو لوړو څوکو پورې تعقیب کړل. دی وایي په دغه وخت کې مو سپین شیان ولیدل چې غونډیو ته پورته کېدل. موږ د دښمنانو ګومان پر وکړ او سمدستي مو د توپونو ګولۍ وربانديَ و اورولې او ښه ډېر مو وویشتل. کله چې نیژدې ورغلو نو راته معلومه سوه چې هغه د کلیو ښځې وې چې ځانونه یې له جنګ څخه پناه کول. نور مو غرض ورسره و نه کړ خو زه پوهېږم چې ډېر یې باید د شپې د یخنۍ له لاسه قتل سوي وي ځکه چې زموږ له کمپ څخه څو زره فوټه لوړې تللې وې او ډېرې به د سټړیا له لاسه له منځه تللي وي ځکه چې زه پوهېږم چې ډېرو زیاتو به یې په ژوند کې له خپلو باغونو څخه چې له کورونو سره یې تړلي دي، بهر ته سفر نه وو کړی. له نېکه مرغه چې په دې غونډیو کې بوټي ډېر زیات وه او موږ د شپې ولیدل چې په سوونو اورونه لګېدلي وه او دوی سره شپه ورته سبا کوله.

"د ښار کیسه د بیانولو نه ده. خېمې، سامانونه او هر ډول شیان په لارو کوڅو کې پراته وه. هرې خوا ته د هغو بدبختو نارینه وو مړي لیدل کېدل چې یا یې له ښاره په وتلو کې ځنډ کړی او یا دونه زړور ول چې د خپلو ښځو او ماشومانو څخه د دفاع له پاره په ښار کې پاته سوي ول او ځانونه یې قربانۍ ته ورکړي ول. زه ګومان کوم د دې خبرې کول ضرور نه دي چې ووایم تر څوارلس کلن پورته نارینه مو ژوندي نه دي پرې ایښي او ځینو کسانو چې سړی یې یوازې ځناور بللای سي، د ښځو په وژلو هم صرفه و نه کړه. بې څښتنه آسونه او څاروي هرې خوا ته ګرځېدل او هر یوه ډېر ژر خاوند پیدا کړ او د کمپ عسکرو په خپلو منځونو کې سره ووېشل او کله چې ټول دښمنان قتل سول نو د چور او تالان کار پیل سو. زه باید درته ووایم چې د کابل د مالونو ډېره لویه برخه او د مشرانو د کورونو ډېر زیات مالونه، زموږ له حملې څخه د خوندي کولو له پاره استالف ته انتقال سوي وه... کله چې موږ ښار ته ورنیژدې سوو نو غازیانو د ښار څخه د دفاع پر ځای، چې ورته ممکنه وه، د خپلو ښځو، ماشومانو او مالونو څخه دفاع کولو ته مخه کړه او هغه شیان چې ارزښت یې درلود، له ځانونو سره یې اخیستي وه.

د چور او تالان صحنه وېروونکې وه. هر کور له اروپایي او هندي عسکرو ډک وو. موبل، جامې

او هر ډول مالونه له کرکیو څخه را غورځول کېدل ځکه چي په زينو کي يې را کښته کولو ډېر وخت نيوی. په سلهاوو عسکرو بازار اشغال کړ او داسي ګډوډي يې جوړه کړې وه چي سړی يې بيانولای نه سي. د قېمتي مالونو دوکانونو ته به لس دوولس تنه ننوتل او پر مالونو به يې جګړې کولې او په ارزانه شيانو کي خو چا ری نه واهه. ځينو خو ځانونه په مالونه دونه بار کړي وه چي د کمپ سړکونه يې بند کړي وه. هر عسکر لکه د سړک د غاړي دوکاندار داسي ښکارېدی... کله چي عسکرو خپل کار تمام کړ نو د نوکرانو وار سو او پر ښار باندي يې ور خوشي کړل. د استالف د چور سوو مالونو اندازه دوو ميليونو روپيو ته رسېده... ځينو خوشبخته عسکرو ته خو لا نغدي پيسې هم په لاس ورغلې... ښځي او ماشومان چي په ښار کي پاته سوي وه، کمپ ته مو يووړل.

له دښمنانو څخه مو تقريباً دوه سوه تنه ووژل او زموږ تلفات بېخي سپک وه... کله چي مو ښار نيوی نو يو وړوکی پنځه مخی هلک مو وليدی چي د سړک پر غاړه ناست وو. داسي په زور يې ژړل، تا به ويل چي زړه يې وچاودی. موږ هر يوه کوښښ وکړ چي له ځان سره يې يوسو؛ مګر هلک له هيچا سره په هيڅ ډول تللو ته نه راضي کېدی. کله چي له ښار څخه را وتلو نو هلک مي وليدی. پر هغه ځای ناست وو او په هغه زور يې چيغي وهلې.



افغان جنګيالي

**د سپټمبر دېرشمه:**

سهار وختي يو ځل بيا د ښار ننداري ته ورغلم او څه غمگين حالت مي وليدی. راز راز د کور سامانونه او موبلونه چي ښايسته پوښونه ورته جوړ سوي وه، کتابونه، وسلې او څه شيان چي د انسان کمال جوړ کړي وه، گډوډ پراته وه، خلک پکښي ختلي وه او دلته هلته مات او په ختو کي پراته وه. دلته هلته د اور اخيستو تيرانو د ماتېدلو او را لوېدلو ږغونه اورېدل کېدل. له کړکيو څخه دودونه پورته کېدل او د هغه حالت بيان يې کاوه چي د چور د ختمېدلو څخه وروسته وربانديي تېر سوی وو. يوې صحنې ټکان راکړ. يوه غريبه ښځه مي وليده چي مړه پرته وه. څنگ ته يې د درو څلورو مياشتو ماشوم پروت وو چي په دواړو ورنونو کي په مرمی لگېدلی وو. هغه مو سمدستي روغتون ته ورساوه خو څو دقيقې وروسته يې ساه ورکړه. يو څه ها خوا ته مي يوه بله ښځه وليده چي هم زخمي وه او هم يې د ځان پټولو له پاره بړستنه نه درلوده او کری شپه يخ وربانديي تېر سوی وو. يو ماشوم يې هم په غېږ کي نيولی وو. هغه مو په کجاوه کي روغتون ته واستوله. د يوه دوکان مخي ته د دريو يا څلورو کالو يوه نجلی ناسته وه. عسکرو د ځان تودولو له پاره يوه پوستينچه ورکړې وه. دواړو خواوو ته يې مېوه کوټه وه. دا اصلاً په ځان خبره نه وه چي څه ور پېښه سوې ده او دغه گړی څه روان دي. په لارو کوڅو کي د زړو، ځوانانو، ښځمنو او غريبانو مړي پراته وه چي د خپل ښار څخه د دفاع په لاره کي وژل سوي ول. ډېري زړه دردوونکي صحنې مي وليدې او که مي کورونو ته د ننوتلو زړه کولای سوای نو يقين لرم چي د وحشت او د جنگ د دهشت له لاسه به مي تر دې هم بدي صحنې ليدلي وای. يوه د کور مينځه چي وايي ډېره ښکلې وه، عسکرو غوښتل چي په ډله يې په زور بې عزته کړي. هغې ورته ويلي وه چي مه را نيژدې کېږئ. دوی د هغې پر چيغو غوږ نه وو نيولی. هغې ځان په خنجر وهلی او ځای پر ځای مړه سوې وه. دا صحنه ما په سترگو نه ده ليدلې مگر يوه بل صاحب منصب کيسه راته وکړه. زه د سبا ناري له پاره خپل ځای ته ولاړم. له خپله ځانه، له نړۍ او تر هر څه مي د خپل ظالم مسلک څخه نفرت کېدی. موږ په حقيقت کي هغه قاتلان يو چي د قتل جوازونه راسره دي. کری ورځ عسکر د ښار په سوځولو لگيا ول او عسکرو او د کمپ نوکرانو هغه شيان چورول چي لا هم په وړلو ارزېده. زموږ کمپ فقط لکه بازار داسي ښکارېدی او ټول اوسېدونکي يې د شيانو په راټيولو او د جنس په جنس تبادله کولو لگيا ول.

په ښار کي يوه لوی کور ته په زور ور ننوتلو. په دې کور کي تر ټولو نورو کورونو ډېر قيمتي شيان پراته وه. زموږ عسکرو چي وليدل، په چور يې بناء وکړه. په دې کي نو برتانويان، هندوان،

مسلمانان او گورکه ټول شامل ول...

د کور په لوړ پوړ کې مې ولیدل چې په یوه خونه کې ښځې پټې وې. د ټولو مخونه لوڅ وه او ځینې یې ښې ښایستې هم وې. زموږ نور عسکر په دغه وخت کې د کور په هر کونج کې گرځېدل او چور یې جوړ کړی وو. په دې وخت کې مې د توپک ډېرې ډزې هم واورېدلې چې پر نارینه وو باندې کېدلې. څو تنه زما په مخ کې ووژل سول. زاریو او ژړاو هیڅ گټه نه کوله. توپکونه پورته کېدل او ماشې کشېدلې او هغه خوشبخته وو چې ژر به مړ سو. ځینې خو به ټپیان سول او بل عسکر به یې په بله گولۍ کار ور تمام کړ. دا وېرونکې قتلونه فقط گناه وه، زه یقین لرم چې خدای به هم په دغه سترگه ورته گوري. د دوی د قتلولو له پاره یوازینی دلیل دا ویل کېدلای سي چې دا افغانان وه او هغوی زموږ هیوادوال او هندوستانیان وژلي ول...

**د اکتوبر لومړۍ نېټه:**

د سهار پر نهه بجې چې مو حرکت کاوه نو یو ځل بیا ښار ته ورغلم. په دې اته څلوېښتو ساعتونو کې په دې ښار څه تغییرات راغلي وه. یوازې لس کورونه لا ولاړ وه او هیڅ رڼغ نه اورېدل کېدی. یوازې د اور د لمبو رڼغ وو او د تختو د لرگیو د ستنو د رالوېدلو رږغونه اورېدل کېدل او سړې ته یې ویل چې د تباهۍ نښې لا پاته دي او تباهي لا اوس هم روانه ده. کله چې مې د دې تباه سوي ښار لاندې ښکلې وادې او کښتونو ته وکتل نو د بنده او خالق په فکر کې سوم. خالق ټول سوله، نظم او نېکي راوړي. بنده ټول پستي، بدبختي او تباهي راوړي... کله چې له ښاره څخه کمپ ته را ستنېدلم نو یوه غریبه، ډنگره، زړه ښځه مې ولیده چې فکر یې کاوه موږ تللي یو نو دې له خپل پناه ځای څخه د راوتلو جرأت کړی وو او کوښښ یې کاوه چې له ویالې څخه اوبه واخلي او خپله تنده چې ښایي څو ورځې به یې دوام کړی وو، په ماته کړي. ما یې لوښی له اوبو ورته ډک کړ. دې پورته راته وکتل او ویل یې لعنت دې وي پر پرنگیانو! موږ له دوی سره ډېر ښه کړي وه! زه پر ښه وخت خپل کمپ ته را ورسېدلم او له خپلې ټولۍ سره مې حرکت وکړ او استالف ته مې چې تل به مې په یاد وي، شا سوه....

د چاریکار له ښاره څخه خلک وتلي ول او خپله زیاتره منقوله شتمني یې ورسره وړې وه. زموږ عسکرو د ښار د تباه کولو کار پیل کړ. کورونو ته یې اور واچاوه او ټوله شپه یې لمبې پورته کېدلې.

**د اکتوبر درېیمه:**

موږ د چاریکار د ښار د تباه کولو له پاره تم سولو. زه له څو تنو سره ښار ته ورغلم او له کورونو څخه مي ځاروي را وایستل او ټول مو پر عسکرو ووېشل... کورونو او کلاوو ته مو اورونه واچول او د شپې له څو میله فاصلې څخه کلاوي او کلي ښکارېدل چي لمبې یې اسمان ته پورته کېږي. (فاریسټ، ص: ۱۴۲-۱۵۱)

"پالک او ناټ افغانانو ته وښودل چي اینګلېنډ هم د چا د ساتلو او هم له چا څخه د کسات اخیستلو توان لري. اوس د برتانیې د پوځ له پاره هغه وخت راغلی وو چي باید د کابل ښار ته یې سزا ورکړې وای. څرنګه چي امر ورته سوی وو هغسي عمل یې کړی وای او بیا نو هند ته ستانه سوي وای. داسي فیصله سوې وه چي د لوی پوښلی بازار، چي د مکناټن جسد پکښي ځړول سوی وو، تباه سي. د تباه کولو کار د اکتوبر پر اوومه پیل سو. نیویل چمبرلین لیکي چي ورپسې ورځ د دواړو کمپونو عسکرو او نوکرانو د ښار په چورولو تېره کړه. دلته او هلته تور لوګي پورته کېدل او داسي ښکارېدله چي د قومي مشرانو کورونه په ډینامیټو الوزل سوي دي. سره له هغه چي محافظین درول سوي ول خو د کمپونو نوکرانو او عسکرو ښار ته لاره وکړه او چور د پرون په څېر دوام وکړ. انجنیرانو د ښار پوښلی بازار په ډینامیټو والوزاوه. په دې کي د ښار یوې برخي هم اور واخیست. هر هغه کور چي انګرېزان پکښي اوسېدلي ول، ونړول سو. د الیکزانډر برنس غریب کور چي ما هلته د خوښۍ وختونه تېر کړي وه، په خرابه بدل سوی وو... کله چي پالک او ناټ له کابل څخه روان سول نو وئې لیدل چي د هغه تباه سوي ښار لمبو د ټول اسمان مخ سور کړی وو. دا د انتقام عدالت وو." (فاریسټ، ص: ۱۵۱-۱۵۲)

زموږ مؤرخینو زیاترو یوازي د چارچته د ورانولو او سوځولو خبره کړې او د ټول ښار سوځولو او چورولو ته یې ډېره لږ اشاره کړې ده. که څه هم چارچته بازار، چي د مغول شاه جهان په زمانه کي جوړ سوی وو، او یوازي د مغولو د معماریو د سترو عجایبو نښه نه بلکي په ټوله مرکزي اسیا کي یو له تر ټولو سترو ودانیو څخه وو (ډال ریمپل، ص: ۴۰۹) دا یوه تاریخي آبده وه او د هغې ورانول په خپله یو جنایت وو او د افغانستان، په تېره بیا کابل اقتصاد او تجارت ته یو نه جبرانېدونکی ګوزار وو خو انګرېزان کشکي یوازي په دا یوه انتقام بسیا سوي وای. هغوی ټول کابل ته د سزا ورکولو فیصله کړې وه. جنرال سېل لیکي چي په ډینامیټو د بازارونو الوزولو، د قومي مشرانو د کورونو سوځولو، د

ښار د دروازو تباه کولو او تر ټولو وروسته د اورونو اچولو، چي له هري خوا د کابل سیند تر څنډو ورسېدل، د اکتوبر پر اوومه پیل سول، هغه ورځ، سبا ورځ او دواړي شپې یې دوام وکړ او تر څو چي زموږ څخه د بتخاک غرونو ښار پټ کړی نه وو، زموږ عسکرو لیدل چي په کابل کي د اور لمبو د اسمان مخ سور کړی وو. (گلېگ، ص: ۱۸۱)

لیفټینېنټ گرین ووډ په خپلو خاطراتو کي لیکي "موږ ته یو ماښام امر وسو چي سبا د مارش له پاره تیاری ونیسی. که څه هم چي موږ ته چا و نه ویل چي د څه له پاره؛ مگر موږ پوهېدلو چي مارش په څه مطلب کیږي او سبا زموږ اټکل رښتیا سو. موږ په سبا روان سولو او ټول مهم چوکونه او بازارونه مو په ډینامیټو والوزول او په څو ځایونو کي مو ښار ته اور واچاوه. کورونه په لږ وخت کي سره لمبه سوه او ډېر زیات مالونه را و ایستل سول او تباه سول..."

د تباهی دغه کار تر ماښام پوري روان وو او نور نو هر سړی ستړی سو.

"زموږ ډېر کسان په لوگیو تک تور سوي ول. په وروسته ورځو کي نور کسان هم ښار ته واستول سول او د کابل ښار له بالاحصار او د شیعه گانو له سیمي پرته ټول تباه سو او وسوځول سو... کورونه ټول له وچو نازکو لرگیو څخه جوړ سوي وه او چي په دغه راز کورونو کي یو ځل اور ولگېږي بیا یې نو کنټرولول چنداني د چا په وس پوره نه وي. ټول هغه وخت چي موږ په کابل کي وو، دغه اورونه اچول کېدل... یو لوی جومات چي د الفینسټون پر پوځ باندي د افغانانو د بري په افتخار جوړ سوی او د پرنگي جومات بلل کېدی، هم تباه کړل سو."

ډال ریمپل وایي څه چي گرین ووډ په خپلو خاطراتو کي اشاره نه ورته کوي دا خبره ده چي لوټمارو برتانوي پوځیانو له قزلباشو او هندو متحدینو سره هغه کار وکړ چي نن ورځ هغه ته جنگي جنایتونه ویل کیږي. په وروسته کي د یوه رسمي تحقیق په نتیجه کي معلومه سوه چي د هندوانو ټولنه چي په سوونو کلونو یې په کابل کي ژوند کړی وو او دا ټول عمر یې د کابل د واکمنانو ظلمونه گاللي وه، په اته څلوېښت ساعتونو کي له ښاره څخه جارو سول. اگوسټوس ابېټ وروسته د گورنر جنرال ایلینبرا په مخ کي پر دې حقیقت اعتراف وکړ.

"افغانان کابل ته زموږ له ورتللو څخه مخکي له ښاره څخه وتلي وه او یوازي هندوان او شیعه گان پاته وه. هندوانو هغو په سلهاوو بدبختو عسکرو ته ډوډۍ او سرپناه ورکړې وه چي د برتانیې د پوځ له تباه کېدلو څخه ژوندي پاته سوي ول. دوی طبعاً دا انتظار درلود چي موږ به د هغوی ساتنه وکړو. قزلباشو زموږ سره زموږ د بندیانو په ژغورلو کي ډېره مرسته کړې وه او تل زموږ ملگري پاته

سوي ول. د اکتوبر پر نهمه انجینران د کابل د بازار د ورانولو له پاره روان سول او په کمپ کي داسي آوازه گډه سوه چي د کابل د چورولو امر ورکړل سوی دی. هغه پوځیان چي د کابل په دوو دروازو کي د انجینرانو د ساتلو له پاره موظف سوي وه هیڅ خبر نه سول چي د هندوانو په محله کي څه روان دي. په هغه محله کي کورونه په زور پرانیستل سول، پر ښځو او شتمنیو تېری وسو. شتمنی یې لوټ کړې او د کورونو خاوندان یې لکه سپي داسي ویشتل. " (ډال ریمپل، ص: ۴۱۰-۴۱۱)

د انگرېزي عسکرو وحشت او تباهي داسي اندازې ته ورسېده چي خپل مشران یې په شرمېدل او راولنسن چي په کندهار کي یې ټول درې کاله له پښتنو سره په جنگونو تېر کړي او د انگرېز د پوځ پر قوت او انصاف یې اعتماد درلود، د کابل د تباهی او چور او تالان په ماښام ولیکل چي د کابل هندوان ټول تباه سول. د هغوی دوکانونه چور سول او د دوی ټوله شتمني لوټ سول او پنځو سوو کورنیو هر څه له لاسه ورکړي او مجبور دي چي زموږ د لښکر تر شا حرکت کړي او تر هنده پوري په گدایي گوزاره وکړي. ده ولیکل چي که قزلباشو له خپلو کورونو څخه د خپلو ساتونکو زلمیو او وسلو په زور دفاع کړې نه وای، د هغوی حال به هم تر هندوانو ښه نه وای.

جنرال ناټ هم په وروستیو عملیاتو شرمېدی او د اکتوبر پر نهمه ماښام یې ولیکل چي موږ لا په کابل کي د څه له پاره اوسېږو. موږ لکه چي غواړو افغانان او نړۍ په ځانونو پوري وخندوو. (ډال ریمپل، ص: ۴۱۲)

جنرال رابرټ سېل د انگرېزانو د درې کلن اشغال نتیجه ډېره ښه بیانوي او لیکي: "په دې کي هیڅ شک نسته چي د خورد کابل په دره کي د انگرېزي پوځ د قتل عام کېدلو انتقام واخیستل سو. د ښارونو د مشرانو کورونه خراب سول، کلي او باغونه تباه سول او په دې توگه افغانانو ته دا وښودل سول چي انگرېزان هم د ساتلو او هم د سزا ورکولو قدرت لري. مگر اینگلینډ په دې جنگ کي نه سیاسي او نه پوځي گټه تر لاسه کړه. دی وایي دا باید ومنو چي له افغانستان څخه زموږ د پوځونو راوتل د یوه ماته خوړلي پوځ عقب نشیني وه، نه د یوه فاتح پوځ مارش. ځکه چي له افغانستان څخه د وتلو تر وروستۍ شېبې پوري زموږ پر څنگونو او د پوځ پر شاتنۍ برخه حملې رواني وې او که مو څه سامانونه ژغورلي وي، هغه مو د ډېرو سختو جنگونو په وسیله وژغورل. (گلیگ، ص: ۱۸۲)

د اکتوبر پر لسمه د کابل پر شاوخوا غرونو باندي د واوري لومړنۍ نښي ښکاره سوې او جنرال پالک له کابل څخه د وتلو فیصله وکړه. له هغو کسانو سره چي تقریباً درې کاله یې د انگرېزانو

خدمتونه کړي او په دوهم ځل راتلو یې خوشحالی کولې او فکر یې کاوه چې دا ځل به ګوندي د انګرېزانو قوه په ارامه شپې سبا کوي او دوی به یې په بېغمه زړه خدمتونه کوي، سخته اندېښنه پیدا سوه. هغوی یوازي له موهن لال سره پېژندل او د هغه ګرېوان ته یې لاس اچاوه ځکه چې هر یو د وطن پالونکو افغانانو له انتقام څخه بېرېدی. موهن لال حیران وو او د هیچا جواب یې نه درلود. "په داسي ناځاپي وتلو سره موږ باعزته مړانه و نه ښودله بلکي خپل ملګري قومي مشران مو په ډېري بې عزتۍ سره د خطر خولې ته ورکړل. دا هغه مشران دي چې موږ له اکبر خان څخه را بېل کړل. په خپل عزت مو ژمنه ورسره وکړه چې هم به یې د خدمت بدله ورکوو او هم به یې ساتنه کوو. اوس چې موږ وځو، زه دوی ته مخ نه سم ورښکاره کولای. دوی اوښکي تویوي او راته وایي چې تاسي خپل دوستان وغولول او سزا مو ورکړه. دوی وایي تاسي موږ د خپلو وطنوالو سره دښمنان کړو او اوس مو د زمریو په خولو کي ورکوی. محمد اکبر خان چې کابل ونیوی، ټولو هغو کسانو ته یې چې زموږ طرفداري یې کړې وه، شکنجې ورکړې. بندیان یې کړل، بې آبه یې کړل او پیسې یې ورڅخه واخیستلې. زه وایم دا به یوه معجزه وي چې که له دې وروسته بیا هم په افغانستان او ترکستان کي داسي څوک پیدا سي چې د برتانیې د حکومت د مقاماتو په قول او سوګند دي باور وکړي. " (موهن لال، دوهم جلد، ص: ۴۹۰-۴۹۱)

موهن لال یوازي د افغانستان او ترکستان نومونه یادوي؛ په داسي حال کي چې استعماري قوتونو هیڅ وخت په هیڅ ځای کي له خپلو دوستانو او خدمتګارانو سره وفا نه ده کړې. د هغوی دوستي هر وخت تر مطلبه پوري وي خو دا چې دی اکبر خان ته په غوسه دی چې ولې یې د انګرېزانو طرفدارانو او خپلو افغانانو مخالفینو ته شکنجې ورکړي او یا یې بندیان کړي دي نو د انګرېزانو د یوه خدمتګار په حیث یې دا هېره کړې ده چې انګرېزانو هغه په لسهاوو زره هندیان چې د خپل هیواد د آزادی له پاره یې پر حقه مبارزه کوله، د انډیمان په ټاپوګانو کي، د تورو اوبو په نوم زندانونو کي، په شاقه کارونو کي مړه کړل او بیا یې چا نوم وا نهورېدی. اکبر خان ته د خپل وطن له دښمنانو سره، چې حتی د جنګ په وخت کي یې د پردیو غلامي کوله، د هر ډول سلوک کولو حق حاصل وو. د دنیا په هره ګوښه کي له خاوري سره د خیانت کولو سزا مرګ دی. که اکبر خان له خپلي خاوري سره د خاینانو په بندي کولو او شکنجه کولو بسیا سوی وي نو دا خو یې له زغم څخه کار اخیستی دی.

## له افغانستان څخه د پېښور پر لور

لکه څرنګه چي جنرال سېل په خپلو خاطراتو کي اشاره ورته کړې ده، د انګرېزانو پوځ له کابل څخه تر پېښور پوري چنداني آرامه ورځ و نه لیده. که څه هم چي د انګرېزانو د منظمو پوځونو شمېر تر دوولسو زرو پوري رسېدی، هر ډول درنې او سپکي وسلې ورسره وې او د ډېرو لایقو او آزمایل سوو جنرالانو او ښو افسرانو تر رهبرۍ لاندي یې حرکت کاوه؛ مګر افغانانو ورته وښودله چي د دوی په خاوره کي تېرېدل اسانه څه چي ډېر ګران کار دی. په خپله چمبرلېن هم د تیزین په شاوخوا کي زخمي سو خو د خیبر په دره کي، د علي مسجد په شاوخوا کي، داسي و ویشتل سو چي تر پنجاب پوري یې په کجاوه کي ورسره واخیست. دی وایي چي د اکتوبر پر پنځلسمه افغانانو زموږ دېرش تنه عسکر ووژل او په دغه شمېر یې ټپیان کړل او ډېر زیات نوکران چي دوی یې د کمپ تعقیبوونکي بولي، ووژل سول او دغه راز مو ډېر زیات سامانونه او غله دانه له لاسه ورکړه. دی وایي د اکتوبر پر شپاړسمه هم له هري خوا ګولۍ اورېدلې. زه په خپله هم وویشتل سوم. خو مرمۍ ډېره تر پوست لاندي نه وه تللې او چي ډاکټر لږ غوندي فشار ورکړ، راووتله او څو ورځي کړوپ کړوپ تللم. (فاریسټ، ص: ۱۵۳-۱۵۴)

چمبرلېن وایي موږ د اکتوبر پر پنځه ویشتمه د سهار پر نهه بجې جلال آباد ته ورسېدلو. د جنرال پالک پوځ دلته خېمې ووهلې او انجینرانو ته یې د کلا د خرابولو او په ماینونو د الوزولو وظیفه ورکړه. دی وایي زه باید په خواشینۍ سره ووایم چي له کابل څخه د حرکت کولو له ورځي تر دغه ځایه پوري مو هره ورځ د کمپ هغه ناروغ نوکران، چي د آس سورلي یې نه سوای کولای، په لاره کي پرېښودل او د افغانانو تېغونو ته مو ورکول. کله چي به مخ ته ولاړو نو موږ به ولیدل چي زموږ څخه مخکي تلونکو پوځیانو هم دغه کار کړی وو. ناروغ نوکران یې شا ته پرې ایښي او هغه به ټول قتل سوي ول. دغه راز مو په لاره کي بېحده زیات اوښان له لاسه ورکړل. څه دښمن ژوندي بوتلل او څه چي زخمي کېدل هغه مو په خپله ویشتل. (هغه کتاب، ص: ۱۵۵)

په جلال آباد کي جنرال پالک، براډفوټ ته د کلا او ښار د تباه کولو وظیفه ورکړه. د کلا لویو برجونه ته یې ډېر زورور ماینونه او دېوالونو ته یې واړه ماینونه ښخ کړل. کله چي دوی د اکتوبر پر

اووه ویشتمه له ښار څخه حرکت وکړ نو په کلا کي چاودني پیل سوې او په لړ ګړي کي جلال آباد هم د کابل په څېر د اور په لمبو کي پرېښودل سو. (ډال ریمپل، ص: ۴۱۶)

نیویل چمبرلین چي د علی مسجد سره ډېر سخت ټپي سوی او په کټوله یا کجاوه کي یې اخیستی وو، په خپلو یاداښتونو کي لیکي چي په پنجاب کي یې زه ټوله لار په کجاوه کي اخیستی وم او چنداني مي له لاري او مزل څخه خوند وا نه خیست. دی وایي په سلهاوو ملګري مو په لاره کي د سټرېا او ټپونو له لاسه مړه سول. پر هغو ټپي سوو بې بختانو مي ډېر زړه سوځل کېدی چي پر اوښانو به یې اخیستي وه او کله به دوولس او لا څوارلس ساعته یخني وراندي تېرېدله او په همدغه ډول به د ورځي له ګرمۍ څخه هم په زحمت ول. او د زخمونو پټۍ به یې کله کله په دوو ورځو کي نه بدلېدلې، چي خبره نسبي وکړو نو زما وضعیت تر نورو ښه وو او په شواروز کي مي د زخم پټۍ درې ځله بدلېدله. خو زه هیله لرم چي بل ځل داسي کړاو راباندي تېر نه سي. (فاریسټ، ص: ۱۵۸)

ګورنر جنرال د اکټوبر پر اتلسمه، چي جنرال پالک لا جلال آباد ته نه وو رسېدلی، هغه ته یو مکتوب واستاوه او په هغه کي یې ورته لیکلي وه چي جلال آباد سیکانو ته وسپاري. جنرال پالک جلال آباد ته له رسېدلو څخه دوې ورځي مخکي، د اکتوبر پر درویشتمه د ګورنر جنرال د یوه بل مکتوب جواب ورکړی او د هغه وروستي مکتوب ته یې بېخي اشاره نه ده کړې بلکي په استالف او کوهستان کي یې د خپلو وروستیو جنایاتو په ارتباط یو څه تفصیل ورکړی او ورته لیکلي یې دي چي په هغه علاقه کي د دوی وروستیو عملیاتو، چي ده لازم بلل، ښه اغېزه ښندلې ده. (پېپرز مکتوب، ۵۴۰)

د ګورنر جنرال د اکټوبر د اتلسمي مکتوب څکه په ترجمه ارزي چي د افغانستان، په تېره بیا جلال آباد په باره کي د انګرېزانو نظر یا بهتره ده ووایو، بدنیتي څرګندوي.

ښاغلي جنرال فقیر عزیزالدین، د مهاراجا شیرسینګ له خوا شخصاً اطمینان راکړ چي مهاراجا به هیڅ وخت په کابل کي داسي حکومت و نه پېژني چي مخکي د هند حکومت پېژندلی نه وي. ما فقیر ته اطلاع ورکړه چي هر کله د برتانیې پوځونه له جلال آباد څخه را ووځي نو هغه ښار به په همدغه اوسني شکل د سیکانو پوځ ته وسپارل سي. مطلب مي دا دی چي د جلال آباد کلا ته به هیڅ ډول زیان نه رسول کیږي او ته به هم هغه ښار هغه وخت د سیکانو پوځ ته وسپارې چي نور نو د هغه ښار د اشغال ضرورت نه وینې.

ګورنر جنرال فقیر ته اطمینان ورکړی دی چي د برتانیې حکومت به په اینده کي په هیڅ توګه د

جلال آباد د حکومت په چارو کې مداخله نه کوي او نه به په هغه ښار پوري د مربوطې علاقې له اداري سره کار لري. فقیر د مهاراجا له طرفه ژمنه کړې ده چې د جلال آباد په حکومت او د هغې سیمې په اداره کې به هیڅ داسې څوک مقرر نه کړي چې د برتانیې د حکومت ګټل کیږي او یا برتانیې خپل دښمن بللی وي.

ما فقیر ته اطلاع ورکړې ده چې که ته له جلال آباد څخه را وتلې او هلته داسې مواد وه چې تا د خپل پوځ له پاره اړتیا نه ورته درلوده نو ته به هغه شیان په یوه مناسبه بیه د سیکانو پوځ ته تسلیم کړې او په دې کې ته بشپړ صلاحیت لرې. ته اجازه لرې چې د افغانانو توپونه یا نور پوځي وسایل او مهمات، د موادو او غلې دانې په توګه سیکانو ته وسپارې. ته باید د دې مکتوب په هدایتونو تر هغه وخته پورې عمل و نه کړې تر څو چې د مهاراجا مکتوب در رسېدلی نه وي او دغه متن یې تایید کړی نه وي او دغه راز یې تا ته اطلاع نه وي درکړې چې د ذخیرو د رانیولو پر سر د موافقې کولو له پاره د مهاراجا استازی څوک دی. (مکتوب، ۸۳۵)

دا چې مهاراجا شېر سینګ، د ګورنر جنرال د مکتوب په تایید، جنرال پالک ته مکتوب نه دی لېږلی نو د دې معنی دا ده چې هغه په ځان کې د جلال آباد د ساتلو زور نه لیدی او یا به یې د انګرېزانو په قول باور نه سوای کولای ځکه چې که د جلال آباد ساتل دومره اسانه وای نو انګرېزان به هیڅکله ورڅخه وتلي نه وای.

انګرېزانو هیڅ ضرورت نه درلود چې خپلي قواوي له جلال آباد څخه وباسي او سیکانو ته یې وسپاري. هغوی له سیکانو سره کومه خاصه علاقه نه درلوده. انګرېزانو اصلاً له هیچا سره علاقه نه درلوده بلکې هر وخت خپلې ګټې ورته مطرح وې او د خپل ګټو له پاره یې هر ناروا کار کاوه. هغوی غوښتل چې سیکانو ته د جلال آباد د سپارلو په وسیله د خیبر د اپرېدیو له پاره یو دایمي دښمن پیدا کړي او دواړه قوي قومونه په یوه بل وځپي او دواړه په جنګونو او تلفاتو دومره ستړي کړي چې په آینده کې په خیبر کې د تېرېدلو له پاره لاره ورته پرانیستل سي.

سر جان کې پر سیکانو باندې د انګرېزانو بې باورۍ ته ډېره ښه اشاره کوي: "د سیکانو وفاداری ته له ډېره وخته د شک په نظر کتل کېدل. دا په هیڅ توګه غیر ممکنه وه چې زموږ پر پوځ دې، چې هم ستړي، هم ټپیان او هم له بارونو درانه دي، حمله و نه سي. دا یو داسې فرصت وو چې د سیک عسکرو له پاره یو ډول غنیمت ښکارېدی او دا هغه سیکان ول چې تېر کال یې په پېښور کې زموږ د

پوځونو په مقابل کي خپل نیت او احساس ځرګند کړی وو. که ګورنر جنرال رښتیا هم د سیکانو په دوستی باور لرلای نو ده به له افغانستان څخه د راوتونکي پوځ د احتیاط قوه له اټک څخه تر تېرېدلو وروسته منحل کړې وای. په دې باندي هر څوک پوهېدل چي د یو لوی هیواد پر پوځ باندي، په شاتنیو حملو کي ډېر غنیمتونه ترلاسه کیږي؛ څکه نو ګورنر جنرال د پوځ د احتیاط قوه د ستلیج تر سیند له پوري وتلو یعني د پنجاب تر سرحد، له تېرېدلو تر وخته پوري وساتله. " (کې، دوهم جلد، ص: ٦٥٧)

په هر صورت، د جنرال پالک په نوم، د ګورنر جنرال له دې وروستي لیک څخه د افغانستان په اړه د انګرېزانو بد نیت له ورایه ښکاري او سړی پوهېږي چي د هغوی زړونه لا ساړه سوي نه وه، لا یې له دسیسو څخه لاس نه وو اخیستی او دا ځل یې غوښتل چي خپلي شومي نقشې د سیکانو په وسیله عملي کړي. خو له نېکه مرغه چي رنجیت سینګ مړ وو او شیر سینګ په دومره داخلي ستونزو اخته وو چي د نورو مځکو لاندي کولو او پراخیتا غوښتني ته یې نه فرصت درلود او نه د رنجیت سینګ قوت ورسره وو.

## د تباهیو په باره کي تحقیقات او وروستی قضاوت

له افغانستان څخه د انګرېزانو فاتح پوځ په ډېر شان او شوکت را ستون سو. په هند کي شانداره جشنونه ورته ونیول سول او په هر ښار کي د احترام په عنوان توپونه وغړومبېدل. ښارونه ځراغان سول، موزیکونه وږغېدل او نڅاوي وسوې. ګورنر جنرال ایلین برا، چي د دې فتحي په افتخار کي یې ځان شریک باله، د هند د واکمنانو، مشرانو او خلکو په عنوان یوه اعلامیه صادره کړه. هغسي چي په (۱۸۳۸م.) کال کي د افغانستان پر ضد د جنګ د اعلان په وخت کي د سیملې په اعلامیه کي هیڅ ډول قانع کوونکی منطق نه وو موجود؛ د (۱۸۴۳م.) د مارچ د میاشتي په اعلامیه کي هم هیڅ ډول حقیقت نه وو پروت. سړی نه پوهېږي چي دا اعلامیه به چا څرنګه لیکله او ګورنر جنرال څرنګه لوستله.

"زما ورونو او زما دوستانو!

زموږ فاتح پوځ په ډېر بریالیتوب له افغانستان څخه د سومنات د معبد دروازې راوړې دي او د

سلطان محمود لوټ سوی قبر د غزني تباهیو ته ګوري.

د اتو سوو کالو مخکي سپکاوي کسات بالاخره واخیستل سو. د سومنات د معبد دروازې چي دا دونه وخت ستاسي د سپکاوي یادګار وو، بیرته ستاسي د ملي عظمت، له غروره ډک تاریخ یوه برخه سوه. دا د اباسین پر پوري غاړه پرتو ملتونو باندي ستاسي د وسلو د قوت ثبوت دی.

زه باید تاسي د سند، راجواره، مالوه او ګجرات واکمنانو او مشرانو ته دغه د بریالي جنګ له عظمته ډک غنیمت در وسپارم.

تاسو به په خپله په ټول عزت او احترام دغه د صندلو له لرګیو څخه جوړې سوي دروازې مربوطي سیمي ته ورسوی او د سومنات په معبد کي به یې ودروی.

د سرهند مشرانو ته باید اطلاع ورکړل سي چي څه وخت به زموږ بریالی پوځ د معبد دغه دروازې، د سوتلیج له پله سره د دوی لاس ته وسپاري.

زما ورونو او دوستانو، ما هر وخت د برتانیې له حکومت سره ستاسي پر پیوستون باندي اعتماد درلود. تاسي ګوری چي پوځ ستاسي د دې پیوستون څونه درناوی وکړ او څرنګه یې د خپلو وسلو په زور تاسي ته د سومنات دروازې را ورسولې. دا هغه دروازې دي چي تر دغه وخته پوري افغانانو ته ستاسي د تابعیت یادګار وو.

زه چي ستاسي سره په ګډو او احساساتو کي ځان یو شان بولم نو په خپلو ټولو احساساتو او خوښی د پوځ دغه د قهرماني فوق العاده لاس ته راوړنه ستایم. دا زما د پلرني او دوهم خپل کړې وطن له پاره یو شان، د نه پناه کېدونکي افتخار انعکاس دی.

د دواړو هیوادونو تر منځ د اتحاد ساتل او بهترول، چي د دواړو هیوادونو په ګټه دي، زما د زړه مراد دی. پر دغه اتحاد باندي د برتانیې د حکومت د هر متحد او ټولو اتباعو امنیت ولاړ دی. تاسي ولیدل چي هغو کسانو چي تاسي ته بدمرغي راوړې وه، زموږ پوځ په څومره بریالتوب د هغوی د غزني پر خرابو باندي خپل بیرغ ورپاوه او د کابل د بالاحصار پر سر باندي یې بیرغونه ودرول.

زه دعا کوم چي هغه خدای چي تر دغه وخته یې زه ساتلی یم، ما ته توان او طاقت راکړي چي زه له دغه قدرت څخه، چي ما ته راسپارل سوی دی، ستاسي د نېکمرغی له پاره ګټه واخلم؛ زموږ دواړه هیوادونه متحد وساتم او داسي اساس ورته کښېږدم چي بیا هیڅکله خراب نه سي." (ایلینبرا کې، ٦٥١)

سر جان کې لیکي چې د ګورنر جنرال له دفتر څخه به هیڅ وخت په دغه اندازه له مسخره کلماتو ډک سند نه وي خپور سوی. هغه کسان چې په هغه وخت کې هلته حاضر ول او لا اوس هم په هند کې اوسېږي، په دې پوهېږي چې دا سند څومره جعلي او بې اساسه وو. بالاخره، لکه څرنګه چې په لومړي سر کې یې فکر کېدی، ټولو ته معلومه سوه چې دا د خارجه وزارت د افکارو څخه راوتلی سند وو. دی وایي د هند په اسنادو کې هیڅ وخت دومره له دروغو ډک سند نه وو خپور سوی. په دې سند کې ځکه د جهل او خطا سرحدونه مات سوي وه چې هیڅوک یې خوشحاله نه کړل او ډېر یې خپه کړل. (هغه کتاب، هغه مخ)

د انګرېزانو په اصطلاح، فاتح پوځونه لا د هند خاوري ته نه وه داخل سوي چې په افغانستان کې د هغوی د جنایاتو په باب رپوټونه خپاره سول. د هند له مطبوعاتو څخه یې خبره د برتانیې خپلو مطبوعاتو ته ورسېدله او په غربي نړۍ کې یې یوه هنګامه جوړه کړه. د هند حکومت د دې رپوټونو د کرارولو له پاره په نمایشي تحقیقاتو لاس پوري کړ او د انتقامي عملیاتو د لوی قوماندان جنرال پالک څخه یې پوښتني وکړې. جنرال پالک پر هغو جنایاتو او تباهیو باندي چې تر پرونه یې افتخار په کاوه او ګورنر جنرال ته یې په جګه غاړه رپوټونه ورکول، په سپینو سترګو منکر سو. ده ګورنر جنرال الینبرا ته ولیکل چې ډېر هغه مفصل رپوټونه چې په ورځپاڼو کې راغلي دي هسي د هنګامې د جوړولو په منظور لیکل سوي دي. مګر زه اعتراف کوم چې که انفرادي پېښې سوي وي او یا دلته هلته کوم تېری او افراط سوی وي نو هغه به محدود وي. ده ولیکل چې دا به ځکه ډېره عجبه ورته معلومه نه سي چې زموږ د پوځ درېیمه برخه ایله جاري کسان ول، چې یوازې د خپلو ګټو او یا په پوځ کې د کوم کسب او کار له پاره زموږ سره ملګري سوي ول.

پالک لیکي چې د جنرال مونټیت د مارش له پیل کېدلو څخه یو څو ورځې مخکې، افغانانو په جلال آباد کې یو اروپایي وژلی وو نو د جنرال مونټیت سره ملګري عسکر د دې صحنې په لیدلو سره په غوسه سوي او د علي بوغان کلی یې سوځولی دی او دا یوه غیر منتظره پېښه وه او کیسه داسي وه چې د کمپ ځیني خدمتګاران دغه کلي ته ننوتلي ول او د هغو عسکرو جامې یې لیدلې وې چې له کابل څخه زموږ د عسکرو د مارش په وخت کې قتل عام سوي ول. عسکرو هم کلي ته اور واچاوه. دا یوه ځانګړې پېښه وه او جنرال مونټیت هغه وخت ورته متوجه سو چې کار له کاره تېر سوی او کلي اور اخیستی وو.

جنرال پالک وروسته لیکي چې له دې وروسته د ماما خېل، جګدلک او تیزین په کلیو کې، له

دښمن سره په نښتو کي، ما نه کوم تېری ليدلی او نه مي اورېدلي دي.!!!

وروسته ليکي چي په استالف کي هيڅ ډول ظلم او تېری نه دی سوی؛ بلکي زموږ پوځيانو څه باندي پنځو سوو ښځو ته په خپل کمپ کي پناه ورکړې وه. که چيري کوم تېری سوی وي نو زه په خبر سوی نه يم.

پالک وايي د کابل د بازار او جومات د تباهی سره چي د سر ويليم مکناټن مړي ته د سپکاوي په خاطر اور ور واچول سو، ښايي خلکو د نورو شتمنيو د تباه کېدلو کيسه تړلې وي مګر دا پېښي نه دي سوي.

بالاخره پالک خپله بې شرمي انتها ته رسوي او وايي چي د بازار او جومات د تباه کولو په باره کي مو له قومي مشرانو سره خبري وکړې. هغوی نه يوازي دا کار مناسب وباله بلکي د بازار او جومات د تباه کولو په کار کي يې زموږ له پوځيانو سره همکاری کولو ته هم تياری وښود. هغو کسانو ته چي د بازار او جومات سره نيژدې اوسېدل، دوې ورځي مخکي خبرداری ورکړل سو چي خپلي شتمنی له دغي ساحې څخه ليري کړي او زه په دغو پيښو کي د هيڅ ډول تېري او تشدد په باب اطلاع نه لرم. (هغه کتاب، ص: ٦٨٣-٦٨٦)

جنرال پالک وروسته ګورنر جنرال ته يو بل ليک واستاوه او د هغه په تعقيب يې د هغه مرستيال ته هم يو ليک واستاوه او په دواړو ليکونو کي پر هر ډول تېري، قتل، پر ښځو باندي د تجاوز کېدلو او شتمنيو پر بېځايه ضايع کېدلو باندي رټ پښېمانه سو.

په دې توګه دا نمايشي تحقيقات پای ته ورسېدل. جنرال پالک له خپل ځان او خپلو جنرالانو او افسرانو څخه سپين چرګان جوړ کړل. په ټولو انتقامي عملياتو کي ګواکي هيڅ تباهي، هيڅ قتل او هيڅ تجاوز نه وو سوی. ګواکي ټولو انګرېز افسرانو، اګوستوس ابېټ، ګرين ووډ، جنرال سېل، چمبرلين او حتی جنرال ناټ دروغ ويلي او مطبوعاتو خپله پروپاګنډه کړې وه. طبيعي خبره ده چي ګورنر جنرال او د برتانوي هند حکومتي مقاماتو بايد د جنرال پالک ادعاوي منلي او نوري يې ټولي رد کړي وای.

په لندن کي د حکومت د سياسي څانګي مديره هيئت د ګورنر جنرال ايلين برا په عنوان مکتوب صادر کړ او هغه ته يې وليکل چي دوی هغه مکتوبونه ولوستل چي په دې وروستيو شپو ورځو کي د هغو آوازو په اساس ليکل سوي دي چي پر برتانوي پوځيانو باندي، په افغانستان کي په وروستيو

عملیاتو کي، له بشري حقوقو څخه د تېري کولو تورونه لګوي او دوی دغه راز د تورن جنرال سر جورج پالک، سر ویلیم ناټ او سر جان مک کاسکیل جوابونه هم لوستي دي.

په مکتوب کي راغلي دي چي کله په لومړي سر کي موږ ته دا آوازې را ورسېدلې نو موږ پوه سولو چي په هغو کي ډېره زیاته مبالغه سوې ده او که ټول دروغ نه وي نو زیاتره برخه یې دروغ دي او موږ هیڅ شک نه درلود چي موږ ته به د دغو پېښو په باب سم او کره معلومات را رسېږي.

په مکتوب کي له جنرال ناټ څخه له دې امله خواشیني ښکاره سوې ده چي تر خپلو احساساتو لاندي راغلی او د خپل حکومت په باب یې څه نامناسبي خبري لیکلي دي؛ په داسي حال کي چي ده د خپل ځان او خپلو ورسره صاحب منصبانو د برائت حاصلولو له پاره هیڅ دلیل ته ضرورت نه درلود.

په مکتوب کي دغه راز له هغه څخه له دې امله خواشیني ښکاره سوې ده چي ولي یې له اجازې پرته، په یوه انګلیسي ورځپاڼه کي مکتوب خپور کړی دی. دوی لیکي چي د یوه جنرال له خوا پر هره موضوع باندي له اجازې پرته لیکنه کول نا مناسبه کار دی او ښایي د ډېري سختي نارضایتي سبب سي. (هغه کتاب، ص: ٦٨٩-٦٩٠)

## کابل د انګرېزانو له وتلو وروسته

انګرېزانو پر شمالي سیمو د حملو په وخت کي، د شاه زمان زوی شهزاده حیدر د بامیان د ګورنر په حیث ورسره اخیستی وو او له دوو زرو افغاني پوځیانو سره یې هلته پرېښود. انګرېزان ایله کابل ته رسېدلي ول چي محمد اکبر خان بیرته مخ را واړاوه. د شهزاده حیدر پوځیان، له مقاومت پرته تسلیم سول او شهزاده حیدر کابل ته وتښتېدی. شاه پور چي لا یې د سلطنت مزه نه وه څکلې، د کابل پر لور د اکبر خان له حرکت څخه خبر سو او له خپلو مېرمنو او شهزاده حیدر سره یو ځای د جلال آباد خوا ونیوله. افغانانو شاهپور ته په ښه سترګه نه کتل او دا چي لا مالونه او نغدي پیسې او جواهرات به لا هم ورسره وه، دا خو لوی غنیمت وو. غلجیو په لاره کي حملې ورباندي وکړې. شاهپور ته ایله خپلې جامې ورپاته وې او د غلجیو په لاس کښېوت. محمد عظیم ګل خان چي د شاه شجاع او فتح جنګ عرض بیګي او په خپله غلجی وو، له غلجي قبایلو سره خبري وکړې او شاهپور یې ایله د هغوی له بنده وژغوری. شاهپور جلال آباد ته حرکت وکړ. محمد عثمان خان

چي دا وخت په جلال آباد کي ګورنر وو او لږ تر لږه دوه زره عسکر ورسره، له شاهپور سره هیڅ مرسته و نه کړه او له هغه سره یو ځای پېښور ته ولاړ؛ انګرېزانو ته یې ځانونه تسلیم کړل او له فتح جنګ سره یو ځای سول. (هراتي، ص: ١٦٠)

د انګرېزانو له ماتي، انتقامي عملیاتو او د هغوی له وتلو وروسته د هغوی په لاس کښېنول سوی تش په نامه حکومت هم پاته نه سو او د دوی شکست بشپړ سو. سر ویلیم کي د افغان او انګلیس د لومړي جنګ د منطق او نتیجې په باب ډېر ښه قضاوت کړی دی: "لارډ اکلېنډ دا خبره په خپله منلې ده چي کله له افغانستان سره زموږ دوستانه اړیکي، یو ناڅاپه په جګړه او فاجعه پای ته ورسېدل نو د هند خلکو ته یې چي موږ یې نمایندګي کوله، څه باندي اته میلیونه سټرلینګ پونډه تاوان ورساوه. له دې سره چي هغه ستره فاجعه هم یو ځای سي او د انتقامي عملیاتو لګښتونه هم ورباندي اضافه سي نو خبره تر دې ډېره لوېږي. دا ټول تاوانونه د هند له عایداتو څخه پوره سول او هند لا اوس هم تر هغه بار لاندي ربړه ګالي.



د افغان انګلیس لومړی جګړه

او موږ څښي تر لاسه کړل؟ اوس نو د حساب او ترازو په هغه بله پله کي خپلي ګټې څرنګه شمېرلای سو. د هند پوځونه د دې له پاره تر اباسین واوښتل چي په افغانستان کي د انګرېزانو داسي

دوست حکومت کېښنوي چې د لوېدیځ له لوري د خطر په مخ کې سپر سي. د برتانیې د پوځ هدف دا وو چې د افغانستان پر خاوره باندې د ایران د یرغل مخه ونیسي او د اباسین پر هغه بله غاړه د یوه مخالف حکومت پر ځای باندې د دوستو حکومتونو په درولو سره د روسیې دسیسې شنډې کړي او اوس تر دونه وینو توېېدلو او خزانو تر ضایع کېدلو وروسته د ایران یو پوځ په هرات کې دی او د افغانستان هر ښار او کلی زموږ له دښمنانو ډک دی. پر افغانستان باندې د انګرېزانو له یرغل څخه مخکې په هغه هیواد کې د برتانیې نوم په عزت او قدر یادېدی. افغانانو ته یوازې د الفینستون د هیئت او ماموریت له لارې یو لړه اندازه مفکوره پیدا سوې وه او اوس د ټولو په ذهنونو کې زموږ د مات سوي پوځ ترخې خاطرې پاته دي. افغانان داسې قوم دی چې دښمني نه هېروي او موږ له کندهاره تر کابله او له کابله تر پېښور پوري هر ځای هغوی زخمیان کړي دي. داسې کورنۍ به نادره پیدا سي چې له لعنتي پرنګیانو څخه د وینو د انتقام اخیستلو احساس و نه لري. زموږ پر مخ د روغې جوړې دروازې تړلې دي او که د افغانانو دښمني زموږ د کمزورۍ یو علت وي نو زه ویلای سم چې موږ دا دښمني په لوی لاس واخیستله. " (کې، ص: ٦٦٨-٦٦٩)

له افغانانو سره د انګرېزانو بې دلیله او بې موجبه پیل سوی جنګ پای ته رسېدلی وو. ګورنر جنرال لارډ ایلینبرا په هند کې د امیر دوست محمد خان د بندي ساتلو له پاره هیڅ دلیل نه درلود. انګرېزانو خپل زور آزمایلی وو. له افغانانو سره یې په جنګ کې ماته خوړلې وه. انتقامي عملیات یې کړي او بې ګناه خلک یې وژلي او تباه کړي وه. بندیان یې خوشي سوي، هند ته رسېدلي او جنرال ناټ لا د ګورنر جنرال له هدایت او امر سره سم، د سومنات دروازې راوړې وې او نور یې باید د دې جنګ وروستی فصل هم ختم کړی وای.

دوست محمد خان یې رخصت کړ او هغه د خدای په امانی په وخت کې داسې سوال وکړ چې جواب یې نه په خپله امیر دوست محمد خان ته معلوم وو او نه ګورنر جنرال ته. امیر په ډېره حیرانۍ له ګورنر جنرال څخه پوښتنه وکړه چې زه ستاسې د منابعو او ثروت پرېمانۍ ته حیران سوم. ستاسې کښتۍ او ستاسې جبه خانې مې ولیدې خو زه په دې خبره پوه نه سوم چې د داسې یوې لویې او سمسورې امپراطورۍ واکمنان څرنګه د دې له پاره تر اباسین اوړي چې ما له خپل نېسمتن او وچ هیواد څخه محروم کړي. (والر، ص: ۲۷۹)

انګرېزانو د افغانستان له پاره نه نوی پلان درلود او نه یې د درلودلو په صورت کې د هغه د عملي کولو توان درلود. د هغوی له پاره دا مهمه نه وه چې په افغانستان کې څوک قدرت ته رسېږي او

څوک را پرزېږي. له امیر دوست محمد خان سره یې کپتان نیکلسن تر شکارپور پوري بدرګه واستاوه. نیکلسن په شکارپور کي څو ورځي وروسته، هغه ته رسماً آزادي ورکړه. امیر هم هیڅ وخت ضایع نه کړ او سیده یې د لاهور خوا ونیوله. په لاهور کي یې د پنجاب مهاراجا شیر سنګ دومره تود او شانداره هرکلی وکړ چي د هر چا تر انتظار لوړ وو. انګرېزانو داسي اټکل وکړ چي دې دواړو واکمنانو یو پټ تړون سره لاسلیک کړی دی. انګرېزانو په حقیقت کي له پنجاب سره د جنګ کولو او بالاخره د هغه غني قلمرو د لاندي کولو خیال درلود او دا اټکل یې د راتلونکو حرکاتو له پاره یوه پلمه سوه. په دغو شپو ورځو کي چي امیر دوست محمد خان په لاهور کي د مهاراجا شیر سنګ مېلمه وو، په کابل کي د سردار محمد اکبر خان او د نواب زمان خان تر منځ، د کابل د تخت د نیولو پر سر، توده جګړه روانه وه. نواب زمان خان او د هغه زوی شجاع الدوله، اکبر خان مجبور کړی وو چي په بالاحصار کي ځان کلا بند کړي او له هغه ځایه څخه یې د را وتلو توان نه درلود. دوست محمد خان ته په لاهور کي د کابل د وضع احوال ورسېدې. څرنګه چي هغه په لازم سرعت ځان کابل ته رسولای نه سو نو خپل زامن، محمد افضل خان، محمد اکرم خان، محمد اعظم خان او غلام حیدر خان یې د هغه مرستي ته ولېږل. کابل ته د دوی له رسېدلو سره نواب زمان خان له بالاحصار څخه پر شا کېدلو ته مجبور سو او بالاحصار د وروڼو لاس ته ورغی.

اکبر خان ډېر ژر د خپل پلار د هرکلي کولو له پاره د پېښور پر لور حرکت وکړ. له امیر سره یې په جمرود کي ولیدل او له هغه ځایه کابل ته روان سول. په کابل کي د امیر دوست محمد خان داسي تود هرکلی وسو چي داسي مراسم د ډېرو خلکو په یاد نه وه. امیر دوست محمد خان پرته له هیڅ مخالفته، د کابل پر تخت کښېناست.

په دې توګه په کابل کي د شاه پور تقریباً دوه نیمي میاشتي تش په نامه پاچهي د هغه په تېښته او رسوایي پای ته ورسېده او په کندهار کي د هغه بل ورور صفدر جنګ هم، له څلورو میاشتو واکمنۍ څخه وروسته، د بلوچستان له لاري شکارپور او وروسته لودیانې ته ځان ورساوه او دا یې یو ځل بیا ثابته کړه چي پر افغانستان باندي د پردیو په زور او لښکرو پاچهي، که هر څونه اوږده هم سي، دوام نه لري او عاقبت به نسکورېږي.

## یوه ضروري تبصره

د نوای معارک لیکوال عطا محمد، چي موږ یې له کتاب څخه په متن کي استفاده کړې ده، په کابل او شمالي کي د انګرېزانو انتقامي علمیات د سردار محمد اکبر خان او انګرېزانو تر منځ د روغي جوړي محصول بولي او د دې مضمون عنوان داسي لیکي: در بیان آنکه راویان میگویند که دفعه ثاني آمدن فوج انگرېز صاحب بهادر در کابل و سوختن عمارات و چهار سطح کابل و گرفتن قلعه غزنین و بردن دروازه غزنین از سومنات هندوستان جانب هدوستان و رهانیدن قیدیان محض بسازګاري سردار محمد اکبر خان بود. (ص: ۱۷۷)

که څه هم چي دا عنوان او په هغه پسي لیکلي عبارات څکه په تبصره نه ارزي چي لیکوال په وزیر اکبر خان پوري د دونه لوی تور لګولو له پاره، چي د ملي خیانت په معنی دی، یوازي د روایت کوونکو په قول، چي درک یې معلوم نه دی، بسیا سوی دی او نورو مؤرخینو هم د عطا محمد دا قول بابېزه ګڼلی او هیڅ اهمیت یې نه دی ورکړی؛ خو مرحوم غبار په خپل کتاب افغانستان در مسیر تاریخ کي دا ادعا، د پېښو د یوه معاصر لیکوال له قوله بللې او په هغه یې استناد کړی دی. خو څرنګه چي د مرحوم غبار تاریخ ډېر مشهور دی نو د تاریخ د شاګردانو د تېروتلو سبب کیږي. مرحوم غبار، د عطا محمد د کتاب په حواله لیکي:

"وروسته له هغه چي په جلال آباد کي محاصره سوو انګلیسیانو اکبر خان ته مراجعه وکړه او هغه ته د امیر دوست محمد خان لیک هم ورسېدی نو محمد اکبر خان له انګرېزانو سره روغه جوړه وکړه او په خپله کابل ته روان سو او په جلال آباد کي یې اوسېدونکو انګرېزانو ته وفهمول چي که زه له انګرېزانو سره په ښکاره روغه جوړه وکړم او د هغوی بندیان خوشي کړم او کابل او غزنی هغوی ته وسپارم نو په هر ځای کي به فتنه او فساد پیل سي او د هغه رفع کول به ډېر مشکل وي. لومړی خو به دا غازیان او د کابل سرداران زما د سر دښمنان سي او ما به مړ کړي او بیا به ستاسي بندیان هم ټول قتل کړي او دریم دا چي ستاسي څخه به هم یو تن ژوندی پاته نه سي. (غبار، ص: ۵۶۷)

مرحوم غبار د دې له پاره چي دا متن یو څه معتبر وښیي، د نوای معارک له عنوان څخه یې د "راویان" کلمه، چي د متن اهمیت کموي، قصداً لیري کړې ده او وروسته یې نو دا غیر مستند او

غلط متن ټکي په ټکي را نقل کړی دی.

مرحوم غبار دا پوښتنه نه کوي چې د عطا محمد راویان څوک دي چې له دونه لوی راز څخه خبر دي چې په نړۍ کي یې د ده له کتابه پرته، بل هیڅ متن ته لاره نه ده کړې. دی دا نه ګوري چې د جلال آباد د قواوو قوماندان جنرال سېل، په جلال آباد کي د محاصره کېدلو له پیل څخه بیا د همدغي محاصره سوي قوې سره په جنګ کي د اکبر خان تر ماتي او پر شا تللو او تر آخره پوري، حتی یو ځل هم جنرال سېل او اکبر خان تماس نه دی سره ټینګ کړی او که یې ټینګ کړی وي نو په نړۍ کي به یوازي عطا محمد خان ته معلومات وي. دی دا نه ګوري چې اکبر خان ته د امیر دوست محمد خان هیڅ لیک نه دی رسېدلی او نه رسېدلای سوای. ځکه چې د انګرېزانو ټول اسناد ښیي چې امیر د پېښو له میدان څخه دونه لیري او بې خبره ساتل سوی وو چې په لودهیانه کي د خپلي کورنۍ له احواله خبر نه وو او که دغه لیک موجود وي نو هم به یې احوال یوازي عطا محمد ته معلوم وو.

مرحوم غبار وروسته لیکي: "سردار محمد اکبر خان د مارچ په میاشت کي، د خپل پلار د لیک له اخیستلو څخه بیا د اپرېل تر میاشتي پوري له محمد شاه خان او سلطان احمد خان او د ملي پوځ له ټولو رهبرانو سره، چې په ننګرهار، لغمان او خیبر کي ول، په خبرو مشغول وو او په دغه وخت کي جنرال سېل په محاصره کي وو او جنرال پالک له خیبر څخه پر مخ راتللای نه سوای او کله چې سردار موافقه وکړه او په خپله د یوه جنګ او ګرېز په مانوره کي، د اپرېل په لومړۍ لسیزه کي، د جلال آباد له لوېدیځ سنګر څخه لغمان ته ولاړ؛ سردار سلطان احمد خان په همدغه ډول د خیبر د درې له خولې څخه لغمان ته عقب نشیني وکړه؛ دغه وخت نو ایلینبرا، جنرال پالک او د هغه نهه زرو عسکرو ته د جلال آباد پر لور د پرمختګ امر وکړ او جنرال سېل تازه د جلال آباد له کلا څخه سر دباندي را ایستلی وو. سره له هغه هم جنرال پالک له اپرېل څخه د اګسټ تر میاشتي پوري څلور میاشتي نور له جلال آباد څخه ښور و نه خوړ او د کابل پېښو ته منتظر سو او په دې موده کي د تېرو جنګونو ویري، انګرېزان داسي میخکوب کړي وه چې یو ګړی یې د خپلو قواوو د محافظه کولو څخه پرته بل کار و نه کړ." (غبار، ص: ٥٦٨)

که څه هم چې میرزا عطا محمد خو لیکي چې اکبر خان، جنرال پالک ته وویل چې ستاسي انګرېزانو ټولي وعدې درواغ دي او چې تر څو مو د انګرېزانو له ولسونو څخه موافقتنامه راوړې نه

وي او یا ما ته خپل پلار هدایت نه وي کړی، زه موافقه نه سم درسره کولای. خو پرته له دې چي یا دي د ولسونو موافقتنامه ښکاره سي او یا دي د امیر لیک اکبر خان ته ورسېږي، هغه انګرېزانو ته لاره ورکړه. خو مرحوم غبار د مارچ په میاشت کي د اکبر خان په عنوان، د امیر دوست محمد خان د لیک یادونه کوي. دا لیک له مخکي چي مو وویل یوازي مرحوم غبار ته معلوم دی او په بل هیڅ تاریخي متن کي یې درک نسته. مرحوم غبار د دې لوی خیانت په ارتکاب کي، چي د کابل، غزني، استالف، چاریکار او جلال آباد د سوځېدلو او لوټ کېدلو او د سلهاوو بې ګناه انسانانو د قتلېدلو سبب سو، سلطان احمد خان، محمد شاه خان او په ننګرهار، لغمان او خیبر کي د ملي پوځونو ټول اوسېدونکي رهبران شریکوي او د جنګ له میدانه یې باسي. البته د انګرېزانو او اکبر خان تر منځ د دې په اصطلاح موافقتنامې متن یوازي مرحوم غبار ته معلوم دی. مرحوم غبار لا وروسته لیکي چي انګرېزان د افغانانو له پخوانیو حملو څخه دونه بېرېدلي ول چي له اپرېل څخه د اګست تر میاشتي پوري یې له جلال آباد څخه هیڅ ښور و نه خوړ. که مرحوم غبار په دغه موده کي، د شینوارو د کلاوو او کلیو په تباه کېدلو، باغونو او پټیو په سوځولو او له حاصلاتو اچولو او سلګونو انسانانو په قتل عام کېدلو خبر نه وو نو د یوه مؤرخ په حیث یې باید ځان خبر کړی وای او که نه نو دا عبارات یې باید له سره لیکلي نه وای چي انګرېزانو په څلورو میاشتو کي له جلال آباد څخه هیڅ ښور و نه خوړ.

بل ځای لیکي چي وزیر اکبر خان د جولای په میاشت کي د بختیار خان نومي استازي له لاري له جنرال پالک سره تماس ونیوی او د بندیانو د خوشي کولو په مسئله کي یې له هغه څخه د لیکلي سند غوښتنه وکړه مګر جنرال پالک یو نظامي سړی وو او متوجه نه سو. وزیر اکبر خان لارډ ایلینبرا ته ولیکل چي له داسي لېوني او جاهل سره مفاهمه نه سي کېدلای او باید چي له ده سره په خپله مفاهمه وکړي. سردار سلطان احمد خان یې د آګست په میاشت کي غزني ته واستاوه چي مجاهدینو او د غزني د حاکم شمس الدین خان سره ورغېږي او د امیر دوست محمد خان له نوي قرارداد او له افغانستان څخه د انګرېزانو د وتلو له تعهد څخه یې خبر کړي او ورته ووایي چي د غزني ښار تخلیه کړي او د انګرېزانو بندیان کابل ته انتقال کړي. دا کار عملي سو. له کابل څخه هم (۳۵) زره پوځیان ووتل. وزیر اکبر خان انګرېزي بندیان چي ټول درې سوه تنه کېدل، له پټ هدایت سره بامیان ته واستول او صالح محمد خان د سپټمبر تر دریمي پوري هغوی هلته ځای پر ځای کړل. (هغه کتاب، ص: ۶۶۹-۶۷۰)

جنرال پالک البته نظامي سړی وو مګر دونه بې عقل نه وو چي د بندیانو د خوشي کېدلو په باب

يې د خبرو کولو صلاحيت نه درلود. که دومره بې عقل نه وي نو د انتقامي عملياتو په څېر مهم ماموريت مشرتوب نه ورسپارل کېدی. دوهم دا چي گورنر جنرال لارډ ايلينرا له اکبر خان سره هيڅ وخت نه مکاتبه کړې او نه يې د اکبر خان ليک تر لاسه کړی دی. دريم دا چي اکبر خان سره له هغه چي تنکی ځوان وو، دومره ساده نه وو چي گورنر جنرال ته په لېږلي ليک کي د هغوی خپل لوی جنرال بې عقل او لېونی وبولي. څلورم دا چي اکبر خان خپل د کاکا زوی سلطان احمد خان ته وظيفه ورکوي چي د غزني مجاهدين او شمس الدين خان د انگرېزانو او دوست محمد خان تر منځ له قرارداد څخه خبر کړي. کوم قرارداد؟ تر دغه وخته پوري د افغانستان په باب، له دوست محمد خان سره هيڅ ډول رسمي تماس نيول سوی نه وو او هيڅ ډول سند نسته. په زړه پوري خو لا داده چي اکبر خان لارډ ايلينبرا ته ليکي چي زه غواړم ستا سره مسقيمه مکاتبه وکړم، که نه وي دا موضوع نه حلېږي او وروسته موږ گورو چي مکاتبه نه ده سوې او کار روان دی. او که د جنرال پالک او اکبر خان تر منځ پر هر څه باندي توافق تر لاسه سوی وي نو بيا سړی نه پوهېږي چي اکبر خان لا ولي بنديان باميان ته لېږي او په خپله ترکستان ته تښتي؟

مرحوم غبار ته لازمه وه چي د يوه ملي تاريخ ليکونکي په حيث يې په کابل، غزني، مقر، استالف، چاريکار او جلال آباد کي د انگرېزانو د تهاجمي پوځ د جناياتو په باب لږ تر لږه دوه درې مخه معلومات ورکړي وای او په نيم پراگراف بسيا سوی نه وای؛ البته زيات معلومات به يې نه درلودل؛ مگر دا چي وروسته ليکي چي جنرال پالک او ناټ او سېل له خپلو پوځونو سره د (۱۸۴۲م.) کال د نومبر په مياشت کي د کابل، جلال آباد، خيبر له لاري، پېښور ته ورسېدل او په لاره کي يې يوه مرمۍ فير نه کړه او د افغانستان جنگياليو او په عين وخت کي سوله غوښتونکو خلکو توري ته لاس نه کړ او د دښمن د تېرېدلو ټولي لاري يې پرېښودلې (ص: ۵۷۱) دا يې مطلقه بې خبري او يا پر واقعيتونو باندي سترگي پټول ښيي.

موږ په تېرو پاڼو کي په خپله د انگرېزي ليکوالانو له خولې ولوستل چي سرکښو ولسونو د خورد کابل له درې څخه د پېښور تر دروازو پوري انگرېزي عسکر پر کراره پرې نه ښودل. چمبرلين ټوله لار د سلهاوو تلفاتو او په لاره کي د زخميانو، ناروغانو او کمزورو او ضعيفو ملگرو د پرېښودلو خبري کوي. ټوله لار جگړې کوي. يو ځل له کابل څخه تر جلال آباد پوري په لاره کي زخمي کېږي او بل ځل په خيبر کي داسي سخت زخمي کېږي چي تر فيروز پور پوري يې په کټوله کي وړي او تقريباً يو کال په روغتون کي تېروي. موږ به څرنگه دا ادعا وکړو چي نه انگرېزانو مرمۍ فير کړې او نه جنگياليو، او ضمناً سوله خوښوونکو افغانانو يو ځل هم توري ته لاس نه کړ.

## مأخذونه

۱: هراتي، محمد حسین. واقعات شاه شجاع. از نشرات اجمن تاریخ افغانستان. کابل (۱۳۳۳)

۲: عطا محمد، میرزا. نوای معارک. انجمن تاریخ افغانستان. (۱۳۳۱)

۳: کاتب، فیض محمد. سراج التواریخ. مطبعه حروفی دارالسلطنته کابل. (۱۳۳۱)

۴: رښتیا، سید قاسم. افغانستان در قرن نوزده. دولتي مطبعه. (۱۳۴۶)

۵: غبار، میر غلام محمد. افغانستان در مسیر تاریخ. دولتي مطبعه کابل (۱۹۶۷)

٦: Expeditions. Frontier and Overseas Expeditions from India Vol ۳. Pakistan (۱۹۸۲)

۷: Mohan Lal. Life of Amir Dost Mohammed Khan Vol ۲. New York (۱۹۷۸)

۸: Ferrier, J.P. History of the Afghans. London (۱۸۵۸)

۹: Kaye, John William. History of the War in Afghanistan Vol ۲. First India Reprint (۱۹۹۹)

۱۰: Forrest, George W. Life of Field Marshal Sir Neville Chamberlain. London (۱۹۰۹)

۱۱: Waller, John. Beyond the Khyber Pass. New York (۱۹۹۰)

۱۲: Durand, Sir Henry Marion. The First Afghan War and its Causes. New Delhi (۱۹۹۸)

۱۳: Eyre, Lieut Vincent. The Military Operations at Cabul. London (۱۸۴۳)

١٤: Dalrymple, William. Return of a King. New York (۲۰۱۳)

۱۵: Malleson, G.B. History of Afghanistan. U.K (۱۸۷۸)

۱٦: Papers Related to Military Operations in Afghanistan. London (۱۸۴۳)

۱۷: Lawrence, Sir George. Reminiscences of Forty Years in India. London (۱۸۷٤)

۱۸: Gleig, G.R. Sale's Brigade in Afghanistan. London (۱۹۷۸)

## امیر دوست محمد خان د کابل پر تخت

امیر دوست محمد خان دوه ځله په افغانستان کي قدرت ونیوی او دواړه ځله په داسي حالاتو کي قدرت ته ورسېدی چي سړی یې تر ټولو مشکل شرایط بللای سي. په داسي حالاتو کي د وطن اداره کول او پر مخ بېول، د ټینګ عزم او ارادې تر څنګ ډېر قوي، هوښیار او فعال شخصیت ته ضرورت لري. امیر دوست محمد خان دوهم ځل په داسي حال کي قدرت ته ورسېدی چي کابل له خاورو سره برابر سوی، جلال آباد، غزني، استالف او چاریکار سوځول سوي، خزانه له پیسو تشه او وطن له دښمنانو ډک وو. دا وخت هرات د یار محمد خان، کندهار د کهندل خان او د هغه د دوو ورونو په کنټرول کي وو. مشرقي او جنوبي سیمي یاغي وې او د هندوکش په شمال کي هیڅا د کابل حکومت او اداره په رسمیت نه پېژندل.

امیر دوست محمد خان ته په لومړي ځل پاچهي کي لږ تر لږه د خپل مشر ورور محمد عظیم خان د خزانې یوه برخه ور پاته وه؛ خو دا ځل نه یوازي خزانه په مطلق ډول تشه وه بلکي شتمن هندوان هم، چي د پیسو د پورولو حساب ورباندي کېدلای سوای، د کابل د تباه کېدلو او چور او تالان په وخت کي نېستمن سوي او له هیواده وتلي ول.

امیر باید ټول مهم کارونه په لومړي کال کړي وای. د هر یوه ځنډېدلو ستونزي څو چنده کولې او بیا به یې چاره نه سوای کېدلای. هغه باید ولایتونه لاندي کړي او د کابل تابع کړي وای. دا که یې هر څومره ځنډولای، په هغو ولایتونو کي مرکزیتونه جوړېدل او قوي کېدل او بیا به یې وروسته د امیر له پاره اېلول ګران وای. هغه باید د دښمنانو او مخالفینو د ځپلو کار ژر تر ژره پیل کړی وای او د هري ورځي ځنډ سبا ته خطر زیاتاوه. امیر باید خپله خزانه ډېر ژر ډکه کړې وای که نه نو بیا یې پوځ او مامورینو ته تنخواوي نه سوای ورکولای او په دې توګه یې د پوځیانو اعتماد له لاسه ورکاوه او هغوی به د هغو کسانو له پاره وسله اخیستله چي تر ده یې زیاته تنخوا ورته پیشنهاد کړې وای.

د امیر دوست محمد خان دښمنان په حقیقت کي د وطن دښمنان ول. ده سیاسي مخالفین نه درلودل. د ده مخالفینو هر یوه قدرت د ځان له پاره غوښت. د ده مخالفینو هر یوه لږ تر لږه په خپله سیمه کي ازادي او خودمختاري غوښتله. د ده مخالفین د مالیاتو د ورکولو مخالف وه او د مرکزي

اداري تابعیت ته نه تسلیمېدل. د ده مخالفین د هغه وخت او زمان له شرایطو سره سم، د قبیلوي ګټو له پاره چې په حقیقت کې شخصي ګټې وې جنګېدل. امیر باید دا ټول مخالفین کرار کړي وای او د دې کار له پاره یې یوه غښتلې پوځ او د پوځ د جوړولو او وسلو اخیستلو له پاره یوې خزانې ته، تر هر څه مخکې اړتیا درلوده.

عطا محمد وایي چې امیر د ټولو هغو مشرانو څخه چې د انګرېزانو مالونه یې غنیمت کړي وه او د هغوی څخه اخیستي پیسې یې په کورونو کې ذخیره کړي وې، په زور او رضا پیسې واخیستلې. له امین الله خان لوګري، طره باز خان، خلعت خان میمندي، برکت الله خان غلزي او نورو خانانو څخه یې پیسې واخیستلې او په بازارونو کې یې جار وواهه چې که له هر چا سره د کمپنۍ سکه موجوده وي او حکومت ته یې و نه سپاري، سخته سزا به ورکړل سي. امیر په لږ وخت کې ډېرې پیسې جمع کړې او د خپل پوځ په سمبالولو لګیا سو. (عطا محمد، ص: ۱۸۶-۱۸۷)

د امیر دوست محمد خان تر ټولو سخت دښمنان د هغه خپل ورونه ول. د پېښور سردارانو له لومړي ورځي د سیکانو سره د هغه پر ضد دسیسې کولې او له دې دښمني څخه یې تر پایه لاس وا نه خیست. د کندهار سردارانو چې د انګرېزانو د اشغال په وخت کې یې د ایران د پاچا سیوري او دسترخوان ته پناه وړې وه او د انګرېزانو پر ضد پاڅون کې یې یوه ورځ برخه نه وه اخیستې، د انګرېزانو له وتلو سره سم، بیا هم د ایران په مستقیمه مرسته کندهار ته راغلل او قدرت یې ونیوی. له لومړي ورځي یې د اېران له دربار سره تماسونه ټینګ کړل او د امیر پر ضد یې دسیسې ورسره پیل کړې. سردار کهندل خان تر مرګه د اېران دربار ته وفادار پاته سو.

وزیر یار محمد خان الکوزي د ایران له دربار څخه د ظهیرالدوله لقب درلود. هغه د خپل سر پاچا وو. د قدرت سیمه یې یو ځل تر بادغیس، بلخ او میمنې پورې ورسېده. امیر د هغه پر دوستۍ باندې هیڅ ډول حساب نه سوای کولای بلکې د هغه له دښمنۍ څخه د ځان ژغورلو له پاره یې، د دوستۍ لاس ور اوږد کړ او د هغه یوازینۍ لور ببو جانه یې د خپل ولیعهد اکبر خان له پاره وغوښتله. کله چې وزیر اکبر خان په (۱۸۴۶م.) کال کې وفات سو نو د اکبر خان کونډه یې د هغه کشر ورور سردار غلام حیدر خان ته په نکاح کړه او په دې توګه یې د یار محمد خان له دښمنۍ څخه ځان وژغوری.

په کابل کې د انګرېزانو پر ضد د پاڅون مشران غازي عبدالله خان اڅکزی او میر مسجدي خان

د پاڅون په سر کې له منځه یووړل سول. وروسته د پاڅون تر ټولو مشهور مشران سردار محمد اکبر خان، سردار سلطان احمد خان، محمد شاه خان غلجی، د هغه ورور دوست محمد خان، نواب زمان خان، امین الله خان لوګری او... ول. دې مشرانو د انګرېزانو له وتلو څخه وروسته وښودل چې ټول د قدرت د نیولو او د بالاحصار د خزانې تر لاسه کولو له پاره جنګېدل او د انګرېزانو له دوهم ځل انتقامي عملیاتو څخه وروسته یې هم له جنګونو څخه لاس وا نه خیست او د کابل پر تباه سوي او سوځېدلي ښار یې د توپونو ګولۍ اورولې. محمد شاه خان غلجي په لغمان کې بیرغ پورته کړ او پر خپل سر یې پاچهي اعلان کړې وه او امیر یې د انګلیس د دولت طرفدار وباله او ویل یې چې په هغه اعتماد نه سي کېدلای. له ده سره د کابل او ننګرهار تر منځ غلجي قبایل ولاړ وه. (غبار، ص: ٥٧٧)

محمد شاه خان به د انګرېزانو په مقابل کې د افغانستان د ولسونو په پاڅون کې برخه درلودلې وي مګر د افغانستان له پاره یې نور هیڅ پلان نه درلود او یوازې شخصي جاه طلبي وه چې د بیرغ پورته کولو ته یې مجبور کړی وو. امیر دوست محمد خان د هغه له څېلو پرته بله هیڅ لاره نه درلوده. په یوه اقلیم کې دوه پاچاهان نه ځایېږي.

د امیر دوست محمد خان وراره سردار سلطان احمد خان چې ځان یې د قدرت شریک باله، لومړی کندهار ته ولاړ او سردار کهندل خان یې له امیر سره جنګ کولو او د کابل نیولو ته وهڅاوه او کله چې یې د امیر دوست محمد خان په مقابل کې ماته وکړه نو د ایران د پاچا لمني ته یې لاس واچاوه. د هغه په سیوري کې یې اوسېدل غوره کړل. د ایران د پاچا د مالي او پوځي ملاتړ په زور یې کلونه وروسته هرات ونیوی. سکه او خطبه یې د ایران د پاچا په نامه جاري کړه او د ایران له دربار څخه یې د سرکار لقب درلود او تر مرګه ایران ته وفادار پاته سو.

دې ټولو مشرانو وښودل چې د افغانستان له پاره یې هیڅ ډول پلان نه درلود او که یې درلود نو نه یې د ټول قدرت د نیولو او نه یې د خپل احتمالي پلان د عملي کولو زور درلود. له امیر دوست محمد خان سره دا زور موجود وو چې د خپلو زامنو په مرسته یې کابل ونیوی. د قدرت په لومړی ورځ یې داخلي جنګ ته خاتمه ورکړه او چې تر څو پوري ژوندی وو، په کابل کې بیا چا ډز وا نه ورېدی. له بدخشان څخه تر هرات پوري یې ټول افغانستان تر یوه بیرغ لاندي کړ. دا هغه کار وو چې هیڅ مشر یې تصور نه سو کولای. د کابل خلکو د هغه د بیرته ستنېدلو په خاطر اووه شپې څراغونه ولګول او تر سهاره یې جشنونه وکړل.

امیر دوست محمد خان هم د افغانستان له پاره نور اداري، عمراني او فرهنګي پروګرامونه نه درلودل. د کابل په ښار او شاوخوا کي امنیت او عدالت ټینګ وو. مالیات یا په زور او یا په خوښه د دولت خزانې ته تحویلېدل. د امنیت د ټینګولو او داخلي شورشونو د خپلو له پاره یوه پوځي قوه موجوده وه خو موږ د نورو ولایاتو د اداري د طرز په باب چنداني معلومات نه لرو. لږ تر لږه د کندهار د وضع په باره کي دونه ویلای سو چي د سردار کهندل خان د قدرت په زمانه کي له خلکو سره ډېر سخت ظلم کېدی او کله چي کندهار د امیر دوست محمد خان لاس ته ورغی او د هغه زوی او ولیعهد سردار غلام حیدر خان د کندهار والي سو نو له خلکو سره ظالمانه وضع تر پخوا هم سخته سوه. ښایي په نورو ولایاتو کي به هم وضع تر دې بهتره نه وه. امیر د خپل قدرت په اوږده شل کلنه دوره کي داسي کسان نه وروزل او نه یې په اداره کي قدرت ورکړ چي د هیواد له پاره یې، د یو موټی کولو او غښتلي کولو تر څنګ، فرهنګي او عمراني پروګرامونه چي د هر هیواد او قام د راتلونکي له پاره حیاتی اهمیت لري، طرح او عملي کړي وای.

## د امیر دوست محمد خان او وزیر محمد اکبر خان د اختلاف افسانه

لکه څرنګه چي د هوتکو پر تاریخ باندي د جوناس هانوې افسانو سایه اچولې او زموږ اکثریت مؤرخین یې تر اغېزې لاندي کړي او ګمراه کړي دي؛ دغه راز د فرانسوي سیاح او مؤرخ فیریه افسانو هم زموږ د تاریخ یوه برخه په لوی لاس مغشوشه کړې او اکثریت مؤرخین یې تر اغېزې لاندي تللي او ګمراه سوي دي.

که څه هم چي جوناس هانوې خو د میرویس خان او د هوتکو د دورې په باره کي تقریباً هیڅ ډول سم معلومات نه دي ورکړي خو د فیریه تاریخ د سترګو لیدلي حالات او په تېره بیا د هرات د اداري او یار محمد خان په باب ګټور اطلاعات او معلومات لري. مګر د کابل د وضع په باره کي یې تقریباً ټول معلومات د خپل خیال محصول دي او یا یې ښایي پر آوازو باندي چي د ده په نظر به سمي وې، تکیه کړې وي. خو له بده مرغه چي زموږ ډېرو مشهورو مؤرخینو د هغه د غلطو معلوماتو تر اغېزې لاندي لیکني کړي دي.

فیریه ښایي د کابل د حالاتو په باره کي هیڅ معلومات نه درلودل نو بالاخره یې له ځانه کیسې

چې زموږ تاریخونو ته یې هم لاره کړې ده.

شیرین خان په څندا ول کې په یوه کور کې ژوند کاوه. هغه په داسې کلا کې ژوند نه کاوه چې د بالاحصار د قوې په مقابل کې یې مقاومت کړی وای. که څیرې د فیریه دا ټول دروغ او افسانه ومنو نو بیا خو اکبر خان د خپل پلار یوازینی زوی نه وو؛ چې پلار یې بندي کړی او یا وژلی وای. په اصطلاح درباري کودتا یې کړې وای. د هغه وروڼه سردار محمد افضل خان، سردار محمد اکرم خان، سردار غلام حیدر خان او ورپسې نور سرداران ټول د اکبر خان په څېر د تورو د میدان آزمایل سوي جنرالان ول. ده به له هغوی سره څه کولای؟

فیریه د اکبر خان په ناڅاپي مړینه خبر سوی دی او باید چې د خپل تاریخ له پاره یې یوه کیسه جوړه کړې وای. په داسې حال کې چې د اکبر خان یو بل توریالی ورور سردار محمد اکرم خان دوه کاله وروسته په درو دېرش کلنی کې وفات سو. ولیعهد سردار غلام حیدر خان د مرګ په وخت کې څه کم څلوېښت کلن وو. په هغه زمانه کې ناڅاپي مړینه او ځوانیمرګي کومه غیر عادي خبره نه وه.

دې افسانې ځکه نورو کتابونو ته لاره وکړه چې افغانانو له بده مرغه په نونسمه پېړۍ کې، په تېره بیا د دوست محمد خان د دوهم ځل پاچهۍ په باره کې چنداني څه نه دي لیکلي او چې هر چا د فیریه متن لیدلی دی، باور یې په کړی دی. سر پر سي سایکس خو دا افسانه تقریباً ټکي په ټکي اخیستې او خپل مأخذ یې نه دی ښودلی. (سایکس، دوهم جلد، ص: ۶۳)

مرحوم فرهنګ د فیریه همدغه افسانه په خپلو کلماتو اړولې او د فیریه د کتاب حواله یې ورکړې ده. (فرهنګ، لومړی جلد، ص: ۲۹۸) مګر د یوه افغان مؤرخ په حیث یې لږ تر لږه دا نه دي ویلي چې اکبر خان په جلال آباد کې وفات سو او له پلار سره یې جګړه په کابل کې پېښه وه. هغه څرنګه زهر خوړلي او څان یې جلال آباد ته رسولی وو.

مرحوم غبار دې افسانې ته د خپل سبک سره سم خاص احساساتي رنګ ورکوی او لیکي چې وزیر اکبر خان د ننګرهار او لغمان ولایاتو ته سفر وکړ او هلته یې د محمد شاه خان غلجي په تائید یو داوطلب لښکر جوړ کړ او غوښتل یې چې د اباسین پر لوېدیځه غاړه د افغانستان ټول شرقي ولایات بیرته له افغانستان سره یو ځای کړي. مګر دوست محمد خان په خبر سو او هغه ټولو قبایلو ته احوال ورکړ چې د وزیر اکبر خان پیروي و نه کړي. اکبر خان بیرته کابل ته په راتللو مجبور سو

او وروسته يې د وزير يار محمد خان سره يو ځای د ايران له پاچا سره تماسونه ټينګ کړل او دواړه وزيران د ايران له پاچا سره، د انګرېزانو پر ضد د يوه دفاعي تړون په تر لاسه کولو برياليي سول.

وروسته يې يار محمد خان ته پر کندهار باندي د حملې بلنه ورکړه. هغه پر ګرشک باندي حمله وکړه خو دوست محمد خان وزير اکبر خان ته پر کندهار باندي د يرغل کولو اجازه ور نه کړه ځکه چي دا کار د انګليسيانو سره د امير د هغه تعهد مخالف وو چي امير به د هغه په اساس د کندهار استقلال په رسميت پېژني.

مرحوم غبار ليکي چي په همدغه کال د ماماخېل او اشپان خلکو د امير په مقابل کي قيام وکړ او امير د هغوی د ځپلو له پاره وزير اکبر خان ور واستاوه. اکبر خان هغه خلک پخلا کړل او ښورښ کرار سو، وروسته وزير اکبر خان د اباسين پر غاړه د افغانستان د لاسه تللو ولاياتو د بيرته تر لاسه کولو په منظور د لښکرو په تېولولو لګيا سو. البته امير دا کار نه غوښت او د وزير د فعاليتونو د مخ نيوي هڅي يې پيل کړې. په همدغو شپو ورځو کي اکبر خان د ملاريا په تبه اخته سو او يوه طبيب د زهرو ګولۍ ورکړې او هغه په څو ساعتونو کي د انګليسيانو په ګټه وفات سو. (غبار، ص: ۵۷۶)

مرحوم غبار د تل په څېر دا نه وايي چي دا مفصل معلومات يې له کومه کړي دي. دا هم نه وايي چي دا په کوم ځای کي راغلي دي چي وزير اکبر خان غوښتل د اباسين پر لوېديځه غاړه ولايتونه د وسلو او لښکرو په زور ونيسي.

لومړی خو چي دوست محمد خان له هند څخه د افغانستان پر لور حرکت کاوه، له انګرېزانو سره يې هيڅ تعهد نه دی کړی او کله چي يې له هغوی سره معاهدې لاسليک کړي دي، په هيڅ معاهده کي دا نه دي راغلي چي امير به د کندهار استقلال په رسميت پيژني او د هغه ښار نيول کېدل له انګرېزانو سره له تعهد څخه سرغړونه وګڼل سي. د مېجر راولنسن په شمول د انګرېزانو ځينو سياستمدارانو او مشرانو غوښتل چي افغانستان د قدرت پر دريو مرکزونو کابل، هرات او کندهار باندي ووېشل سي خو دا د هغوی شخصي نظر وو او په دې برخه کي هيڅ ډول تعهد موجود نه وو.

دوست محمد خان په کابل کي پاچا دی او اکبر خان د ايران له پاچا سره د انګرېزانو پر ضد دفاعي تړون لاسليکوي! د دې معنا خو دا ده چي دوست محمد خان پاچا نه دی، ځکه دا خو دونه لوی اقدام دی چي افغانستان مخامخ له انګرېزانو سره جګړې ته دروي. که داسي تړون لاسليک کيږي نو دا خو له پاچا پرته د بل هر چا تر صلاحيت لوړ دی او دا په کوم ځای کي راغلي دي چي اکبر خان د ايران له پاچا سره په تماس کي سوی دی.

بالاخره د اکبر خان د مسموم کېدلو خبره ده چې سرچینه یې د فیریه هغه له ځانه جوړه کړې افسانه ده چې هیڅ ډول تاریخي اساس نه لري. که څه هم چې د اکبر خان د ناڅاپي مړینې په باب چا مستند څه نه دي لیکلي خو څرنګه چې اکبر خان په پخوا کې هم محرقه تبه درلودلې وه نو شایي بیا هم محرقې تبې نیولی او د هغې په اثر به وفات سوی وي. ځکه فیض محمد وایي چې اکبر خان د هغې سابقه تبې په اثر چې د ننګرهار پر لور د حرکت په وخت کې ورپېښه سوې وه، وفات سو. (کاتب، ص: ۲۰۱)

اکبر خان د بل هر افغان په څېر خپل پلار ته درناوی او اخلاص درلود. له پلار سره د هغه د اختلاف خبره د فیریه د افسانې نتیجه ده. وزیر اکبر خان له مکناټن سره له لومړي تماس څخه نیولې بیا له جنرال پالک سره تر مذاکراتو پوري یوه شبېه هم د خپل پلار د خوشې کېدلو غوښتنه نه ده هېره کړې. دا هغه څه دي چې موږ یې د لیکلو اسنادو په اساس ادعا کولای سو او د فیریه، فرهنګ او مرحوم غبار لیکنې په دغه برخه کې له بده مرغه هیڅ ډول لیکلی استناد نه لري. فیریه د اکبر خان د وفات په وخت کې نه په کابل او نه په افغانستان کې موجود وو چې د ده په قول، د اکبر خان او دوست محمد خان په اختلاف او د اکبر خان په مسموم کېدلو خبر سوی وای. په دې صورت کې مؤرخینو ته لازمه وه چې د افسانې او سند توپیر یې کړی او بیا یې نو لیکنه کړې وای.

## محمد شاه خان غلجی

امیر دوست محمد خان د اکبر خان د فاتحې د اخیستلو څخه وروسته، د اکبر خان پیاده او سپاره پوځیان غلام حیدر خان ته وسپارل او هغه یې خپل ولیعهد وټاکی. شېر علي خان یې د سردار غلام حیدر خان پر ځای د غزني والي مقرر کړ او په خپله یې د محمد شاه خان غلجي سره د حساب د تصفیه کولو لاره واخیستله. امیر دوست محمد خان تر دغه وخته پوري ځکه محمد شاه خان ته څه نه ویل چې هغه د وزیر اکبر خان خسر وو او دوست محمد خان د خپل زوی په خاطر چې هسې نه خوا یې بده نه سي، د محمد شاه خان سره خبره جګړې ته نه رسوله؛ خو کله چې محمد شاه خان پښې تر کمبلي اوږدې کړې او د ټولو غلجیو پارولو ته یې ملا وتړله او د امیر د سلطنت د نسکورولو او پاچهی د نیولو ډنډوره یې پیل کړه نو امیر دوست محمد خان ته چې د یوه واحد او یو موټي

افغانستان جوړولو او د ټولو قومونو او سیمو تر مرکزي اداري لاندې راوستلو ته یې ملا تړلې وه، د هغه له خپلو پرته بله لاره پاته نه سوه. غلام حیدر خان ته یې د بدیع آباد د کلا، چې د محمد شاه خان غلجي ورور دوست محمد خان مورچل پکښې نیولی وو، د محاصره کولو وظیفه وسپارله او په خپله یې محمد شاه خان تر هغه وخته پورې تعقیب کړ چې د نورستان غرونو ته پورته سو او د ټولو غلجیو له ملاتړ څخه محروم سو. د هغه ورور دوست محمد خان د بدیع آباد کلا غلام حیدر خان ته وسپارله او په خپله د محمد شاه خان سره یو ځای سو. په دې توګه د محمد شاه خان شورش چې څه باندې یو کال یې ونیوی، پای ته ورسېدی او غلجي قبایلو د مالیاتو ورکولو او لارو د پرانیستلو او ساتلو ذمه ووهله.

## له سیکانو سره د مرستي په بدل کي پېښور

د سیکانو او د انګرېزانو اړیکي د رنجیت سینګ له وفات څخه وروسته، لکه څرنګه چې انتظار یې ایستل کېدی، ډېر وخت دوستانه پاته نه سول او په (۱۸۴۵م.) کال کي خو یې په ښکاره، د یوه بل په مقابل کي سنګرونه ونیول. اکبر خان د (۱۸۴۵م.) کال په ژمي کي پنځه سوه آسونه د سیکانو مرستي ته ولېږل خو انګرېزانو سیکانو ته ماته ورکړه او لاهور ته ننوتل.

سیکان کرار نه سول او یا انګرېزانو کراري ته پرې نه ښودل او په (۱۸۴۸م.) کال کي یې د یوې قاطع جګړې فیصله وکړه. سیکانو له دوست محمد خان څخه د مرستي غوښتنه وکړه او په عوض کي یې د پېښور د ورسپارلو ژمنه ورسره وکړه. امیر دوست محمد خان له خپل زوی سردار محمد اکرم خان او وراره سردار شمس الدین خان سره پېښور ته ور روان سو. پېښور یې ونیوی او د اټک کلا ته یې پرمختګ وکړ. د اټک د کلا قوماندان کرنل هربرټ کلا تسلیم کړه او دوست محمد خان غوښتل چې د خپلو پنځلسو زرو سپرو سره په همدغه سیمه کي پاته سي او د پېښور په نیولو قناعت وکړي خو څرنګه چې له سیکانو سره یې په جنګ کي د مرستي ژمنه کړې وه نو زړه نا زړه یې خپل پنځه زره پوځیان له سردار اکرم خان او سردار شمس الدین خان سره ګجرات ته، چې د سیکانو او انګرېزانو د جنګ میدان وو، واستول.

د (۱۸۴۹م.) کال د فبروري پر یوویشتمه افغانانو د انګرېزانو د پوځ پر مرکز باندي یوه سخته حمله وکړه خو د انګرېزانو د منظمو سپرو د داسي مقاومت او متقابلي حملې سره مخامخ سول چې

د مقاومت کولو توان یې له لاسه ورکړ. د افغانانو قوې نه یوازې ماته وکړه بلکې د انګرېزانو سپرو قواوو هغوی تر پېښور پورې تعقیب کړل. دا قوه دونه زیاته او قوې وه چې دوست محمد خان هم مقاومت و نه سو کړای او ایله د خپل غښتلي او چټک آس په مرسته یې ځان له مرګه خلاص کړ. انګرېزانو په دې جنګ کې سیکانو ته هم وروستی ماته ورکړه. سیکانو بیا د لوی جنګ جوړولو ته زړه ښه نه کړ او انګرېزانو ټول پنجاب او د سیکانو تر لاس لاندې سیمې ونیولې. څرنګه چې پېښور هم رسماً د انګرېزانو د خاورې یوه برخه سوه نو دوست محمد خان د تل له پاره پېښور له لاسه ورکړ. (سایکس، دوهم جلد، ص: ۶۴)

د مرحوم سید قاسم رښتیا دا خبره د تأمل وړ ده چې وایې دوست محمد خان د دې پر ځای چې په پېښور کې معطل سوی او هغه ښار یې ساتلی وای او لا یې دېره جات هم بیرته نیولې وای، هیڅ ځنډ و نه کړ او د کابل پر خوا یې مخه ونیوله. (رښتیا، ص: ۱۴۰)

سړی نه پوهېږي چې رښتیا به دا معلومات له کومه کړې وي چې وایې امیر په پېښور کې ناست وو. د انګرېزانو ټول منابع وایې چې د هغوی پوځ، په تېره بیا سپرو منظمو عسکرو سردار محمد اکرم خان او شمس الدین خان ته له ماتې ورکولو سره سم هغوی تعقیب کړل او پر پېښور باندې یې هجوم ورووړ. امیر دوست محمد خان مقاومت نه سوای کولای که نه نو هغه په خپل ټول تاریخ کې ثابته کړې وه چې د تېښتې سړی نه دی او چې هر میدان ته ورغلی وو، هغه یې ګټلی وو. د انګرېزانو له منظمو پوځونو او وسلو سره د افغانانو مخامخ جګړه او په هغې کې بری تر لاسه کول او د انګرېزانو پر شا کول یوازې په احساساتو کې ښه افاده کېدلای سي. له بلې خوا تاریخي پېښې په حدسیاتو، فرضیاتو او اټکلونو لیکل کېدلای نه سي. تاریخي پېښې استناد او باورې استناد ته ضرورت لرې خو له بده مرغه چې زموږ له مؤرخینو سره باورې څه چې، کمزورې اسناد هم موجود نه وه.

## د شمال پر لور

امیر دوست محمد خان د پېښور له ماتې څخه وروسته ډېر ژر د هیواد شمالي سیمو ته متوجه سو. ده باید هغه سیمې مخکې له هغه چې دومره قوې سي چې د ده له پاره به یې ابلول او په یوه واحد

قلمرو کي شاملول ګران وي. هغه ولایتونه چي په خپله هم د خودمختارو مشرانو له خوا اداره کېدل، باید تر یوه واحد بیرغ لاندي راغلي وای او که نه نو په شمال کي د قوي ګاونډي روسیې له خوا هم د لاندي کولو تهدید ورته متوجه وو.

امیر دوست محمد خان خپل زوی سردار محمد اکرم خان ته د سردار غلام حیدر خان تر قوماندې لاندي پوځیان ورکړل او د افغاني ترکستان د فتح کولو وظیفه یې ور وسپارله. د شمالي سیمو میرانو او مشرانو د سیغان په شاوخوا کي مورچې ونیولې. په هغه جنګ کي د شمالي پوځیانو د توپچي قواوو په مقابل کي مقاومت و نه سو کړای او ډېره سخته ماته یې وکړه. د همدغه بري په تعقیب، تقریباً ټول ترکستان د سردار محمد اکرم خان پوځونو ته په لاس ورغی. سردار اکرم خان ته بلخ، آقچه، شبرغان، اندخوی، خلم، سرپل او قطغن لاس ته ورغلل او له میمنې سره یې څکه غرض و نه کړ چي هغه د یار محمد خان د سړیو په لاس کي وه او امیر نه غوښتل چي د هغه له قواوو سره ځان مخامخ کړي. امیر دوست محمد خان د هغو سیمو حکومت هم سردار اکرم خان ته وسپاره او هغه د ترکستان او شاوخوا علاقو د ادارې په سمبالولو لګیا سو. ډېر لږ وخت وروسته د قطغن خلکو د مالیاتو له ورکولو څخه انکار وکړ او سردار محمد اکرم خان له مزار شریف څخه، د خلکو د ایلولو له پاره حرکت ور وکړ. سردار په لاره کي هم ناروغ وو خو تاشقرغان ته له رسېدلو سره لږ وروسته د سِل د ناروغی په اثر، چي له ډېره وخته ورسره وه، وفات سو او د ده له خپل وصیت سره سم په مزار شریف کي خاورو ته وسپارل سو. سردار اکرم خان په (۱۸۴۹م.) کال کي د (۳۳) کالو په عمر وفات سو.

## د یار محمد خان له وفات څخه وروسته د هرات پېښي

سردار کهندل خان د هرات د نیولو له نقشو څخه لاس وا نه خیست. که څه هم چي یار محمد خان نه غوښتل چي د کندهار له سردارانو سره د جنګ سرحد ته ورسېږي خو سردار کهندل خان په (۱۸۵۰م.) کال کي د سردار مهردل خان زوی سردار شېر علي خان او احمد خان اسحق زی چي په حقیقت کي د یار محمد خان په قلمرو باندي د یرغل کولو له پاره د سردار کهندل خان محرک وو، د لاش او جوین خوا ته واستول او دغه راز یې خپل زوی سردار محمد صدیق خان د چخانسور علاقې ته واستاوه. یار محمد خان له هراته حرکت وکړ او مستقیماً د لاش خوا ته ولاړ؛ څکه چي

دی خبر وو چي د دې حملو اصلي لمسونکي احمد خان اسحق زي په لاش کي سنګر نیولی دی. یار محمد خان په ډېره اسانی سره لاش ونیوی او احمد خان اسحق زی یې وواژه. څرنګه چي د کندهار له سردارانو سره یې دښمني نه غوښته نو سردار شېر علي خان یې له لاش څخه وایست او کندهار ته یې رخصت کړ. خو د لاش څخه د حرکت په وخت کي سخته تبه وربانديي راغله. پوځ یې د خپل زوی سعید محمد خان سره پرېښود او په خپله یې د هرات پر لور حرکت وکړ. هرات ته نیژدې په لاره کي وفات سو او د مولانا عبدالرحمن جامي په مزار کي یې خاورو ته وسپاره.

په دغه لښکرکښۍ کي وزیر یار محمد خان د لاش و جوین له فتح کولو څخه وروسته د سیستان د بلوڅو له سردارانو سره هم جنګونه وکړل. د هغوی ډېري کلاوي او کلي یې ونیول. له سیستان څخه یې تقریباً زر تنه نارینه او ښځي بندیان کړل. د بندیانو دا قافله د یار محمد خان له لښکر سره هرات ته ورسېده او د هرات د خواصو نوکران سول. (هروي، ص: ٥١)

سعید محمد خان له لاش څخه حرکت وکړ او د هرات خلکو ډېر تود هرکلی ورته ووایه. د هرات خلکو د ایران پاچا ناصرالین شاه قاجار ته یوه عریضه ولیکله او له هغه څخه یې وغوښتل چي سعید محمد خان د هرات د حاکم په حیث ومني. ناصرالدین شاه د هرات د خلکو عریضه منظوره کړه او د سعید محمد خان د سوغاتونو په بدل کي یې هغه ته آس، فاخره جامې او مرصع خنجر واستاوه.

سعید محمد خان چي له لوم‌ړي سره یې هم د عقل چنداني مزه نه وه، د قدرت په وخت کي یې په لږو ورځو کي ثابته کړه چي هغه چور لېونی دی. د ښار پر خلکو یې راز راز ظلمونه وکړل؛ بې ګناه خلک یې بندیانول او قتلول او چا یې ځکه په مخ کي د خبرو کولو جرأت نه سوای کولای چي هر آن د هغه د لېونتوب څخه بېرېدل. ویل کیږي چي یوه ورځ په دربار کي ناست وو او یو ناڅاپه یې په زور زور وخندل. کله چي درباریانو د خندا د علت پوښتنه وکړه ده ورته وویل چي پر مخامخ دېوال باندي پیشو روانه وه، ما ویل که دا پیشو غوا سي، څرنګه به پر دېوال باندي ځي.

د هرات خلک یې له ظلمونو څخه دونه په تکلیف سول چي کهندل خان ته یې پر هرات باندي د حملې کولو بلنه ورکړه. کهندل خان هم سمدستي له تقریباً پنځلسو زرو عسکرو او څلورو توپونو سره د هرات پر لور حرکت وکړ. سعید محمد خان ته د کهندل خان د حرکت کولو اطلاع ورسېده. سعید محمد خان په ځان کي د دفاع قدرت نه لیدی او د ایران له پاچا څخه یې د مرستي غوښتنه

وکړه. کله چې کهندل خان ولیدل چې د ایران پاچا د سعید محمد خان شا ته ولاړ دی نو بیرته کندهار ته پر شا سو او له کندهار څخه یې د ایران پاچا ته د عفوي غوښتني له پاره لیک واستاوه.

د انګرېزانو حکومت دا ټول انکشافات له نیژدې څارل او بالاخره یې د ایران حکومت د هرات په برخه کې، د خپلو پراختیا غوښتنو د سیاست او آرزو ګانو په خلاف، د (۱۸۵۳م.) کال د جنوري پر پنځه ویشتمه د یوه تړون لاسلیکولو ته مجبور کړ. څرنګه چې دا مهم تړون ما په نورو افغاني اسنادو کې نه دی لیدلی نو بشپړه ترجمه یې لازمه بولم:

## د هرات په برخه کې د ایران د حکومت تعهد نامه

"د ایران حکومت قول کوي چې د هرات سیمي ته په هیڅ صورت پوځونه وا نه ستوي او یوازې په هغه صورت کې هغې سیمي ته پوځونه لیږلای سي چې پر هغه خاوره باندې له بهر څخه حمله وسي؛ د مثال په توګه د کابل، کندهار او یا بل کوم بهرني طاقت له لوري هغه ښار ته پوځیان واستول سي خو د ایران حکومت تعهد کوي چې له هرات څخه د بهرنیو پوځونو د پر شا کېدلو سره سم خپل پوځیان بیرته د هغه ولایت څخه پر شا کړي او پرته له ځنډه یې خپلې خاورې ته ستانه کړي.

د ایران حکومت دغه راز ژمنه کوي چې د هرات په داخلي چارو کې له هر ډول مداخلې کولو څخه ځان وژغوري، لکه د هرات د خاورې اشغالول او یا د ځان کول او یا د هغه ولایت د حکومت کنټرول اخیستل او یوازې هغه ډول اړیکې ورسره ساتلای سي لکه د فقید ظهیرالدوله یار محمد خان په وخت کې چې ټینګې وې. د ایران حکومت ژمنه کوي چې سعید محمد خان ته یو لیک واستوي او له دغه تړون څخه اطلاع ورکړي. دا لیک باید د یوه سړي په لاس ولیږي او له هغه سره باید د انګرېزانو د سفارت یو څوک ملګری وي چې ښایي په مشهد کې به اوسیږي.

د ایران حکومت دغه راز ژمنه کوي چې په هرات کې به نه د ایران د پاچا په نامه د خطبې ویلو او نه به د هغه په نوم د سکې وهلو او یا داسې کوم کار انتظار لري چې له هغه څخه د ایران حکومت ته د هرات تابعیت څرګندیږي. مګر که د فقید کامران او یار محمد خان د وخت په ډول د هرات حکومت وغواړي چې د ایران شاه ته پیسې په سوغات کې ولیږي او هغه سکې د شاه په نامه ووهي نو د ایران حکومت اعتراض نه لري. دغه تعهدنامه باید سمدستي سعید محمد خان ته ولیږله سي. د ایران حکومت دغه راز ژمنه کوي چې خپل استازی عباس قلي خان پسیان، هرات ته له رسېدلو

ځخه ځلور میاشتي وروسته بیرته را وغواړي او هغه په دایمي توګه په هرات کي پاته نه سي او له دې وروسته به هیڅ دایمي استازی په هرات کي نه اوسېږي بلکي د یار محمد خان د وخت په څېر به د دواړو ملکونو تر منځ اړیکي رواني وي. هرات به هم تهران ته دایمي استازی نه لیږي. هماغه اړیکي او امتیازات چي د کامران او یار محمد خان په وختونو کي موجود ول، هغه به اوس هم په هغه شکل دوام کوي. د مثال په ډول، که چیري ترکمنانو ته د سزا ورکولو خبره سي او یا د شاه په قلمرو کي د ناکراریو مسئله وي نو د ایران حکومت به د هرات ځخه د یار محمد خان د زمانې په څېر د مرستي غوښتنه کوي. هغوی به د پخوا په څېر په خپله خوښه او اراده له ایران سره د پوځونو مرسته کوي او دا مرسته به هم دایمي شکل نه لري.

د ایران حکومت دغه راز ژمنه کوي چي د هرات ټول هغه مشران به چي په مشهد یا تهران او یا د ایران په کوم بل ځای کي بندیان وي بې له قید او شرطه خوشي کوي او له سعید محمد خان ځخه به هیڅ ډول ګناهکاران، بندیان او شکمن کسان نه قبولوي او یوازي به هغه کسان قبولوي چي سعید محمد خان یې له هراته شړي نو دوی ایران ته راتلای سي او که یې خوښه وي، دلته پاتېدلای سي او د حکومت خدمت ته داخلېدلای سي. له دې کسانو سره به د پخوا په څېر په مهرباني سلوک کیږي. د خراسان شهزاده ګورنر ته باید په دغه ارتباط ټاکلی امر وسي چي له دغو ژمنو سره سم کار وکړي."

د ایران صدراعظم، د همدغي تعهدنامې په سبا، د جنوري پر شپږویشتمه، د هرات واکمن سعید محمد خان ته ولیکل:

"زما زویه، د ایران وزیرانو چي له لومړۍ ورځي ستا سره کومي مرستي کړي دي نو مطلب یې نه د هرات نیول او نه پر هغه ولایت باندي حکومت کول وه. دوی غواړي چي هرات مستقل پاته سي او د بهرنیانو له مداخلو او حملو ځخه په امان وي. دوی هیڅ وخت نه غوښتل چي د هرات په خاوره دعوه وکړي او یا د هرات له حکومت او یا خلکو ځخه په زور مالي مرسته واخلي او هغه وضع، د شاه په دربار کي د هرات وروستي سیاسي استازي، مفتي ته معلومه وه. اوس چي د خدای په فضل، د هغوی مطلب پوره سو نو زما زویه، دا لازمه ده چي زه تا له هغو موادو او تعهداتو ځخه خبر کړم چي د ایران وزیرانو پر ځانونو باندي تحمیل کړي دي:

د ایران حکومت نه پخوا او نه نن دا ارزو لري چي د هرات او یا د هرات شاوخوا سیمي یا لاندي

کړي او يا حکومت وربانديې وکړي او د هرات په داخلي چارو کي به په هيڅ صورت مداخله و نه کړي څو دوی په خپله خاوره او خپلو چارو کي مستقل و اوسي او نه د ايران حکومت او نه د کابل او کندهار د افغانانو او نه د کوم بل خارجي هيواد حکومت د هغه په چارو کي مداخله وکړي. دوی به په هيڅ صورت موافقه و نه کړي چي خطبه دي د ايران د شاه په نامه وويله سي. پاته سوه د سکې خبره، زما زويه، هرات هيڅ وخت ضرورت نه لري چي د ايران د شاه په نامه سکه جاري کړي خو که چيري ته يوه اندازه پيسې د سوغات په توګه را لېږې او هغه سکې د شاه په نامه ووهې نو د ايران حکومت اعتراض نه لري. د ايران حکومت به، لکه د فقيد ظهيرالدوله د وخت په څېر، پر هرات باندي د کوم خارجي هيواد د يرغل په صورت کي له هغه ولايت سره پوځي مرسته کوي او هر کله چي خارجي پوځيان د هرات له خاوري څخه ووتل د ايران پوځونه به سمدستي پر شا کيږي. زه يقين لرم چي هر کله ته د ايران د حکومت له نظر څخه خبر سې، له هغه سره سم به سلوک وکړې."
(ايچيسن، ص: ۷۷-۷۹)

د ايران صدراعظم په دې ليک کي سعيد محمد خان ته، درې ځله د زوی خطاب کړی دی او دا هغه کلمه ده چي په پخوانۍ ډيپلوماسي کي لويو پاچاهانو تر لاس لاندي واکمنانو او باج ورکوونکو خودمختارو پاچاهانو ته کاروله. سړی تعجب کوي چي انګرېزانو له ايرانيانو څخه د تعهداتو د اخيستلو سره سره، دې کلمې ته څرنګه توجه نه ده کړې.

له دې څخه درې ورځي وروسته د ايران پاچا ناصرالدين شاه قاجار د سعيد محمد خان په نامه يو فرمان صادر کړ او په هغه کي يې د خپل صدراعظم د ليکني په تائيد ورته وليکل چي په تعهدنامه کي به ټول راغلي مواد رعايت کيږي او دوه ځله يې هغه ته اطمينان ورکړی وو چي د ايران شاه پر هغه باندي مهربانه دی. هر ډول مرستي ته حاضر دی او د ايران شاه به له خپلي دعا نه هېروي. خو سعيد محمد خان د هرات په څېر يوه لوی ولايت څه چي، د يوې کوچنۍ ولسوالۍ د اداره کولو له پاره جوړ نه وو. هغه يو مخ لېونی وو او دا لېونتوب او له هغه سره ملګري ظلمونه يې ورځ په ورځ زياتېدل.

بالاخره د هرات خلکو د حاجي فيروزالدين لمسيانو شهزاده محمد رضا او شهزاده محمد يوسف ته، چي په مشهد کي اوسېدل، هرات ته د ورتللو بلنه ورکړه. شهزاده محمد رضا د هرات د خلکو او پوځيانو په مرسته د هرات ښار ته ننوت. د هرات پوځيانو ارګ محاصره کړ. سعيد محمد خان يې وواژه. د ايران پاچا د خراسان والي حسام السلطنه سلطان مراد ميرزا ته امر وکړ چي شهزاده محمد

رضا په سزا ورسوي. په دغه وخت کي شهزاده محمد یوسف هم ځان هرات ته رسولی او له خپل ورور سره یو ځای سوی وو. حسام السلطنه د هرات پر لور حرکت وکړ. کله چي د هرات ښار ته نیژدې سو نو د هرات خلکو ورته وویل چي تر څو پوري شهزاده محمد یوسف اجازه ورکړې نه وي، دوی د ښار دروازې نه سي پرانیستلای. حسام السلطنه له پنځه ویشت زرو پوځیانو سره پر ښار باندي حمله وکړه او خلکو ته یې وویل چي تر څو پوري شهزاده محمد یوسف او شهزاده محمد رضا ور تسلیم نه کړي، دوی محاصره نه خوشي کوي او ښار به خراب کړي. د هرات خلکو چي دوست محمد خان د مرستي وعده ورسره کړې وه، شهزاده محمد یوسف او د هغه ورور ایرانیانو ته تسلیم کړل. حسام السلطنه شهزاده ګان خپل پوځ ته بوتلل خو محاصرې ته یې دوام ورکړ.

په دې وخت کي، په هرات کي داخلي جنګ هم پیل سو. جنرال عیسی خان بردراني په خپله محله کي د پاچهي اعلان وکړ. غلام خان پوپلزي په برج خاکستر کي پاچهي اعلان کړه. پیر محمد خان د قطب چاق په محله کي پاچهي اعلان کړه او عباس خان ریحان د نورو قزلباشو په مرسته خپل ریاست اعلان کړ. په ښار کي د توپونو او توپکو جنګ پیل سو. جنګ څو ورځي دوام وکړ خو بالاخره عیسی خان بردراني پر ټولو رقیبانو بریالی سو او د هرات قدرت یې په لاس کي واخیست. د محاصرې کار دوام وکړ. د ایران توپچي قواوو ډېري تباهی ورسولې خو ښار یې فتح نه کړ.

بالاخره عیسی خان بردراني له حسام السلطنه څخه امان وغوښت او تسلیم سو؛ خو مخکي له هغه چي ځان حسام السلطنه ته ورسوي په کمپ کي یوه بل عسکر، چي له عیسی خان سره یې شخصي دښمني درلوده، هغه وویشت او مړ یې کړ. (هروي، ص: ٥٩-٦٢)

د ایران پوځ د (١٨٥٦م.) کال په پسرلي کي هرات فتح کړ. حسام السلطنه فکر کاوه چي انګلیسیان به د هرات په مسئله کي مداخله و نه کړي او د (١٨٥٧م.) کال تر پیل پوري یې تقریباً په بېغمه زړه د هرات اشغال ته دوام ورکړی وو. البته د انګرېزانو او د ایران د شاه تر منځ مذاکرات روان وه او انګرېزانو د ایران شاه ته وویل چي په هرات کي د هغوی مداخله د (١٧٥٣م.) کال له تړون څخه ښکاره سرغړونه ده. د ایران شاه له هرات څخه د وتلو په برخه کي، د انګرېزانو غوښتنه و نه منله او ګورنر جنرال لارډ کېنینګ د (١٧٥٦م.) کال د نومبر په میاشت کي ایران ته د جنګ اعلان ورکړ. له بمبیي څخه یې شپږ زره کسیزه قوه د سر جیمز اوټرام تر قوماندې لاندي د فارس خلیج ته

روانه کړه. (فاریسټ، ص: ۳۱۶)

د (۱۸۵۷م.) کال په پیل کې د انګلیسیانو سمندري قواوو د خارک ټاپو اشغال کړ او د بوشهر ښار یې هم لاندې کړ. د سر جېمز اوټرام تر قوماندې لاندې پوځیانو د ایران په خاوره کې پرمختګ ته دوام ورکړ او د بورازجون ښار ته نیژدې یې د ایران یوه قوه دړې وړې کړه. د ایران پاچا د سولې غوښتنه وکړه او د پاریس د تړون لاسلیکولو ته مجبور سو. د ایران قواوې له هرات څخه ووتلې او د ایران شاه د هرات له پاره سلطان احمد خان چې د څو کالو راهیسې په تهران کې اوسېدی، د هرات د والي په حیث مقرر کړ. ضمناً یې شهزاده یوسف د ټولو ژمنو په خلاف، د سعید محمد خان کورنۍ ته وسپاره او هغوی اعدام کړ.

په دې توګه، له هرات څخه د ایران د قواوو د وتلو وروسته هم، ګواکې هرات د ایران د شاه لاس ته ولوېدی؛ ځکه چې هغه ښار د ایران د حکومت د یوه تنخوا خور له لارې اداره کېدی چې د ایران له پاره هر څه کولو ته حاضر وو. بیلګرامي وایي دا عجیبه ده چې انګرېزانو پر دې مقررۍ باندې هیڅ اعتراض و نه کړ. امیر دوست محمد خان ډېر سخت اعتراض وکړ خو ګورنر جنرال وویل چې د هند حکومت د سلطان احمد خان په ټاکل کېدلو کې هیڅ برخه نه لرې.

بیلګرامي وایي د برتانیې له پاره د ایران خطر له منځه تللی وو او انګرېزانو هم دغه غوښتل، نور نو په دې غم کې نه وه چې د هرات واکمني له چا سره ده. تر هغه وخته چې هرات د دوی د هند امپراطورۍ ته خطر پېښ کړی نه وای، دوی په هغه کې ری نه واهه. انګرېزان تیار وه چې له امیر سره دونه مرسته وکړې چې د هند په ساتلو کې د یوه مورچل کار ورڅخه واخلې او هغه یې د خپلې پراختیا غوښتنې د نقشو عملي کولو او هرات او یا نورو ځایونو نیولو ته نه تشویقاوه. (بیلګرامي، ص: ۱۲۱-۱۲۲)

## د پاریس تړون

د (۱۸۵۷م.) کال د مارچ پر څلرمه د برتانیې او ایران استازو په پاریس کې د سولې تړون لاسلیک کړ. څرنګه چې د دې تړون د رامنځته کېدلو اساسي علت د ایران د قواوو له خوا د هرات اشغال وو نو لازمه ده چې د دې تړون څلور هغه مادې چې مستقیماً له افغانستان سره اړه لرې، را واخلو.

**پنځمه ماده**

اعلیحضرت د ایران پاچا ژمنه کوي چې د هرات له شاوخوا او له هغه ښاره او د افغانستان له نورو هغو برخو ځخه چې د ایران پوځیان او مقامات پکښې دېره دي، خپلې قواوې سمدستي وباسي. ایران باید د دې تړون د لاسلیک کولو ځخه وروسته په درو میاشتو کې له دغو سیمو ځخه خپل پوځونه را وباسي.

**شپږمه ماده**

د ایران شاه موافقه لري چې د هرات په شاوخوا او د هرات په ښار او د افغانستان په هیڅ ښار او خاوره به دعوه نه کوي او هیڅ وخت به د هرات له مشرانو او د افغانستان د هیڅ سیمې له مشرانو ځخه د تابعیت غوښتنه نه کوي او نه به له هغوی ځخه د شاه په نوم د سکې د جاري کولو او خطبې ویلو غوښتنه کوي.

اعلیحضرت دغه راز ژمنه کوي چې له دې وروسته به هیڅ وخت د افغانستان په داخلي چارو کې مداخله نه کوي. اعلیحضرت وعده کوي چې د هرات او د ټول افغانستان خپلواکي به پېژني او هیڅ وخت به د افغانستان د ښارونو له استقلال سره غرض نه کوي.

که چیرې د ایران د حکومت او هرات او افغانستان د حکومتونو تر منځ اختلافات را منځته کیږي نو د ایران حکومت ژمنه کوي چې د برتانیې حکومت ته به رجوع کوي او چې تر څو پورې د سولې کوښښونه په بشپړه توګه ناکام سوي نه وي، وسلې ته به لاس نه اچوي.

د برتانیې حکومت له خپلې خوا ژمنه کوي چې هر وخت به په افغانستان کې له خپل نفوذ ځخه په ګټې اخیستلو سره د داسې حرکاتو مخه نیسي چې هغه د ایران مقامات او یا حکومت په غوسه کړي او کله چې د ایران حکومت د ستونزو د پیدا کېدلو په وخت کې، برتانیې ته رجوع کوي نو برتانیه به کوښښ کوي چې دا ستونزې په داسې توګه حل کړي چې د ایران عزت او وقار ته تاوان و نه رسیږي.

**اوومه ماده**

که له پورته ذکر سوو سیمو ځخه د ایران پر سرحدونو باندې تېری کیږي نو د ایران حکومت دا حق لري چې که سم قناعت ور نه کړل سي نو تېري کوونکو ته د سزا ورکولو له پاره له وسلو ځخه کار واخلي. مګر دا خبره دې روښانه وي چې هر کله د ایران پوځې قواوو خپل هدف تر لاسه کړ او

تېري کوونکو ته يې سزا ورکړه نو بايد چې سمدستي د افغانستان له خاورو څخه را ووځي او دايمي اشغال او پاته کېدلو ته پلمې جوړې نه کړي او هيڅ وخت بايد د ايران په قلمرو پوري، د يادو سوو مځکو د تړلو کوښښ و نه کړي.

**اتمه ماده**

د ايران حکومت تعهد کوي چې د دغه تړون له منظورېدلو او تبادله کېدلو څخه وروسته، په بې قيد او شرطه ډول، ټول هغه بنديان خوشي کړي چې په افغانستان کي يې د پوځي عملياتو په وخت کي نيولي دي او ټول هغه سياسي بنديان خوشي کړي چې د ايران په هره سيمه کي بنديان وي. په دې شرط چې افغانستان به هم ټول هغه ايراني بنديان پرته له قيد او شرطه خوشي کوي چې د افغانانو په لاس کي وي.

د ضرورت په وخت کي به د دې مادې د عملي کولو له پاره د دواړو هيوادونو له خوا يو کميسون ټاکل کيږي. (ايچيسن، ص: ۸۲-۸۳)

د ايران مشهور مؤرخ او ليکوال محمود محمود چې هر وخت يې افغانستان، په تېره بيا هرات او بادغيس، د ايران خاوره بللې ده، د دې موافقې له امله سخت خواشينی دی او وايي هغسي چې روسيې په (۱۸۲۸م.) کال کي د ترکمانچای د موافقې له لاري له ايران څخه د قفقاز سيمه بېله کړه؛ دغسي برتانيې د (۱۸۵۷م.) کال د پاريس د موافقې په واسطه افغانستان له ايران څخه بېل کړ او که لا په دغه وخت کي په هند کي عمومي ښورښ پيل سوی نه وای، ښايي نوري ادعاوي به يې هم لرلې. بلې! دنيا چې پيدا سوې ده، همدا کار روان دی. هر ملت چې د خپلي خاوري د ساتلو قدرت نه لري نو زورور ګاونډيان يې خاوره ورڅخه لاندي کوي. (محمود، ص: ۷۰۰-۷۰۱)

د هرات د حکومت او اداري د طرز په باب چندانې چا څه نه دي ليکلي نو سړی د سلطان احمد خان د حکومت په باره کي سم قضاوت نه سي کولای. مشهور روسی جغرافيه پوه او عالم خانيکوف چې د سلطان احمد خان د حکومت په وروستيو کلونو کي هرات ته تللی او د هغه ولايت شاوخوا يې ليدلې ده نو د هرات په دننه کي د حکومت د ټينګي اداري په باب ډېر غږېږي او وايي چې د هرات اوسنی حاکم سردار سلطان احمد خان د دغه ښار په اداري چارو کي ډېر ښه استعداد او زيات قدرت ښودلی دی. دی وايي چې هغه د خپل حکومت له پيل څخه له ډېرو زياتو ستونزو سره مخامخ وو خو بيا يې هم د خپل حکومت سلطه ټينګه کړې ده. له لمر لوېدلو څخه وروسته هيڅوک د ښار په لارو کوڅو کي نه سي ګرځېدلای او که يې د شپې نوم زده نه وي نو

گزمه یې د مجرم په نوم راګرځوي او بندي کوي یې. دی وايي په اروپا کې د داسې شرايطو تحمل ګران وي خو په افغانستان کې دا ډوله سختګيري د خلکو د ژوند او مالونو د ساتلو له پاره کيږي.
(خانيکوف، ص: ۱۴۰)

که د خانيکوف دا خبره ومنو نو ګواکې په ښار کې امنيت يوازې د برچې په زور ټينګ سوی وو او دا په خپله د بې امنيتی معنا ورکوي.

د خانيکوف له ياداښتونو څخه ښکاري چې سلطان احمد خان د ځينو اقوامو، په تيره بيا الکوزيو په مقابل کې، چې له ده څخه مخکې يې ډېر کلونه د هرات قدرت په لاس کې وو، له سختی او ظلم څخه کار اخيستی دی. خانيکوف د دغې قبيلې د خلکو په باره کې وايي چې هغوی د باغ روضه پر شاوخوا باندې، په يوه کلي کې چې په همدغه نامه يادېدی، ژوند کاوه. د دې کلي اکثريت اوسېدونکي افغانان دي او هغوی له سلطان احمد خان څخه له دې امله سخت ګيله من وه چې دوی يې يوازې د قومي اختلاف له امله له کارونو څخه بېکاره کړي او د دوی مځکې يې د خپل قوم خلکو ته بخښلي دي. (هغه کتاب، ص: ۱۴۳)

د خانيکوف له ياداښتونو څخه ښکاري چې د هرات څخه دباندې چنداني امنيت وجود نه لري څکه دی وايي کله چې مې د (۱۸۶۰م.) کال د فبروري په مياشت کې په هرات کې د مسافرت دوره ختمه سوه او له سلطان احمد خان څخه مې رخصت اخيست نو هغه د محمد عظيم خان قلعه ګاهي په نوم يو ډېر په ځان غټ سړی چې هرکوليس ته پاتېدی، له څلوېښتو تنو سپرو سره، را سره ملګری کړ. سلطان احمد خان دا سړی زما سره معرفي کړ او کله چې يې هغه رخصت کړ نو ما ته يې وويل چې ما کولای سوای ستا سره ډېر زيات سپاره ملګري کړم؛ مګر د سيستان په لاره کې د عسکرو او سپرو شمېر چنداني اغيزه نه لري. ده راته وويل چې دا سړی يو ډېر لوی ډاکو دی او له نامه څخه يې خلک بېرېږي. کله چې دی ستا سره ملګری وي نو هيڅوک ستاسې مخې ته نه درېږي. خانيکوف وايي سلطان احمد خان زما د اطمينان له پاره وويل چې ما د دغه ډاکو اولادونه او کورنی د يرغمل په توګه راسره ساتلي دي او ته بايد د هغه له ناحيې څخه بېغمه اوسې.

خانيکوف وايي زه وروسته پوه سوم چې سلطان احمد خان حق په جانب وو. دې سړي رښتيا هم په منطقه کې دونه نفوذ درلود چې د سيستان تر سرحد پوري مو هيڅ مخې ته د درېدلو جرأت ونه کړ او د لاري په باره کې يې دونه ژور معلومات درلودل چې تصور يې نه کېدی. دی وايي دې

سړي په لاره کي ټولي ودانی پېژندلې. ده په خپله ویل چي په دغه سیمه کي مي یو کاروان لوټ کړ. په هغه بله سیمه کي دوې شپې د یوه کاروان په انتظار کښېنستلم او... (هغه کتاب، ص: ۱۵۶-۱۵۷)

خانیکوف د هرات د ښار او شاوخوا کانالونو په توصیف کي وايي چي ما په بخارا، سمرقند او اصفهان کي چي د مشرق په ټولو هیوادونو کي مشهور دي، په دغه ظرافت او ښکلا کانالونه نه دي لیدلي. دی وايي د هرات حاصلخېزي دونه مشهوره ده چي په سیمه کي متل سوی دی او ټول وايي چي که دغه سیمه پنځه ویشت کاله ارامه وساتل سي نو د هغه ټول کلي به، چي له لسو برخو څخه یې نهه برخي ویجاړي سوي دي، بیرته خپل پخواني حال ته راسي او حاصلات به یې دونه زیات سي چي د دې سیمي د خلکو تر ضرورت به اضافه سي. خانیکوف د هرات د ښار څنګ پر څنګ آبادیو حیران کړی دی او وايي فکر نه کوي چي د مغولو د وخت هغه خبره به بېځایه وي چي ویل یې یو سپی کولای سي چي د هرات د ښار له مرکز څخه تر ګازرګاه پوري درې کیلو متره فاصله د بامونو پر سرونو ولاړ سي. (هغه کتاب، ص: ۱۳۸-۱۳۹)

خانیکوف په دې سیمه کي ډېر ژور تحقیقات کړي دي او کله چي سړی د هرات په باره کي د ده لیکنه لولي نو پوهېږي چي انګرېزانو ولي د دې ښار پر سر ایران ته دوه ځله د جنګ اعلان ورکړ او ایرانیان ولي د هغه د ملکیت دعوه کوي. خانیکوف وايي هرات د تجارت له نظره د ایران په مقابل کي هغه حیثیت لري لکه بخارا چي یې د روسیې په مقابل کي لري. په دې معنا چي دغه ښار د ټولو هغو کاروانونو له پاره چي له ختیځ او جنوب ختیځ څخه ایران ته ځي، یو اجباري تم ځای دی او د مرکزي اسیا د ټولو هغو لارو مرکز دی چي له لوېدیځ او ختیځ څخه دغه ښار ته غځېدلي دي. (هغه کتاب، ص: ۱۴۱)

## کندهار

د کندهار سردارانو د هرات د نیولو له پاره وروستی لښکرکښي په داسي وخت کي وکړه چي د ایران شاه د هرات د واکمن سعید محمد خان د ملاتړ له پاره پوځونه لېږلي وه. د کندهار واکمن کهندل خان کندهار ته پر شا سو او بیا یې د هرات د لاندي کولو کوښښ و نه کړ.

په (۱۸۵۱م.) کال کي امیر دوست محمد خان د غزني والي سردار شېر علي خان ته امر وکړ چي د کلات او د شاوخوا سیمي توخي او هوتک چي د لارو امنیت یې خراب کړی او له تجارتي قافلو څخه پر خپل سر مالیات اخلي، لاري ته راولي. سردار شېر علي خان له خپل پوځ او څلورو توپونو سره کلات ته روان سو. د دواړو خواوو تر منځ څو ورځي پرله پسې جنګ روان وو او په پای کي یاغیان روغي جوړي ته حاضر سول او د مالیې ورکول یې ومنل.

سردار کهندل خان خپل کشر ورور سردار مهردل خان له څلورو زرو عسکرو سره کلات ته واستاوه او د ښار کلا یې ونیوله. امیر دوست محمد خان سردار شېر علي خان ته د دوهم ځل له پاره د کلات د نیولو وظیفه ورکړه او دا ځل یې سردار غلام حیدر خان هم ورپسي واستاوه. بالاخره په خپله امیر دوست محمد خان له خپلو ورونو سلطان محمد خان، پیر محمد خان، سعید محمد خان او نواب عبدالجبار خان سره د کلات خوا ته روان سول. نیژدې وو چي د دواړو خواو تر منځ یوه خونړی جګړه ونښلي خو نواب عبدالجبار خان د تل په څېر د سولي له پاره منځګړتوب وکړ او بالاخره جوړه پر دې وسوه چي یوه خوا به هم د کلات کلا نه نیسي او کلا یې په توپونو ورانه کړه. د کلات حکومت سردار شیر علي خان او وروسته د سردار محمد اکبر خان زوی سردار فتح محمد خان ته وسپارل سو.

## د انګریزانو او سردار غلام حیدر خان تر منځ تړون

امیر دوست محمد خان د (۱۸۵۴م.) کال د اکتوبر پر درویشتمه خپل یو استازی د یوه لیک سره د پنجاب عالي کمېشنر سر جان لارنس ته واستاوه او په هغه کي یې لیکلي وه چي د استازي او لیک د استولو څخه مي یوازیني مطلب د ښه نیت څرګندول او د دوستانه اړیکو ټینګول دي. ګورنر جنرال لارډ ډال هوزي له امیر څخه د دې پېشنهاد د اورېدلو له امله خوښي ښکاره کړه او په ډېر درناوي یې جواب ورکړ. امیر ته یې په کریمیا کي د برتانیې او فرانسې د بري څخه اطلاع ورکړه او پېشنهاد یې ورته وکړ چي د برتانیې او افغانستان تر منځ دوستي باید په یوه تړون کي راسي. امیر ته بلنه ورکړل سوه چي یو عالي رتبه سردار چي د عقل څښتن هم وي، پېښور ته ولېږي. ګورنر جنرال به خپل یو استازی چي بشپړ صلاحیت او واک به ولري، د خبرو له پاره واستوي.

امیر دوست محمد خان په (۱۸۵۵م.) کال کې خپل ولیعهد شهزاده غلام حیدر خان له انګریزانو سره د دوستۍ د تړون د لاسلیکولو له پاره پېښور ته واستاوه. امیر دوست محمد خان د ګورنر جنرال لارډ ډالهوزي څخه غوښتنه کړې وه چې دا تړون باید د برتانوي هند د یوه عالي رتبه او باصلاحیته مقام له خوا لاسلیک سي. ګورنر جنرال هم د پنجاب اعلی کمېشنر جان لارنس ته د دې تړون د لاسلیکولو وظیفه وسپارله.

په پېښور کې د سردار غلام حیدر خان ډېر تود او د هغه له شانه سره سم هرکلی وسو. د پېښور کمېشنر هربرټ ایډوردز او کرافورډ چمبرلین د مارچ پر شپاړسمه هر کلی ورته ووایه. پر شلمه یې په عمومي دربار کې برخه واخیستله او پر یوویشتمه جان لارنس او د پوځ یو جنرال د سردار غلام حیدر خان خېمې ته ورغلل او سردار غلام حیدر خان د ختیځو هیوادونو د معمول سره سم د روسیې او بخارا څخه وارد سوي پوستونه او دمشقي توري په سوغات کې تقدیم کړې. چمبرلین وایي تر ټولو عجایب سوغاتونه هغه ښکلي نصواري رنګه قزاقي اوښان وه چې داسي ښکلي اوږدې سترګي یې درلودلې چې سړی وایي بلقیسي به سلیمان پیغمبر ته دغسي اوښان په سوغات کې ور وړي وي. دومره ښایسته وه چې یوازي یې سلواټور روزا نقاشي کولای سي. اعلی کمېشنر تېره ورځ سردار غلام حیدر خان ته یوه توره او توپنچه ورکړې وه او هغه په بدل کې خپل د سورلۍ آس چې چمبرلین وایي تر دې بهتر آس یې په ژوند کې نه وو لیدلی، کمېشنر ته په سوغات کې تقدیم کړی وو. کمېشنر هیله وکړه چې اجازه ورکړي دا آس بیرته سردار ته ورکړي. هغه په جواب کې ورته وویل چې که یې مسترد کړې نو زه به یې وولم.

خبري د مارچ پر درویشتمه پیل سوې او هربرټ جونز ګورنر جنرال ته ولیکل چې تر سختو چنو وهلو وروسته خبري سمي رواني سوې. سردار غلام حیدر خان د هغه پلار ته د کابل د والي د لقب د استعمالولو له امله دومره سخت په غوسه سو چې په ډېر لوړ آواز یې چلم را وغوښت او تقریباً پنځلس دقیقې یې په مطلقه خاموشي کې دودونه کشول. د مارچ پر دېرشمه تړون لاسلیک سو او دوست محمد خان ته په لومړی ماده کې د امیر دوست محمد خان، د کابل او په افغانستان کې د هغه تر کنټرول لاندي سیمو والي ولیکل سو. نیویل چمبرلین خپلي خور ته ولیکل: "د سردار او جان لارنس تر منځ خبري وسوې. ټول کار په خیر سو او لکه څرنګه چې تېري کیسې پر خپله لار تللي دي نو زه فکر کوم چې ډېر ژر به د کابل د واکمني ډلې سره زموږ اړیکي ښه سي خو زه فکر کوم چې د افغان ملت سره به زموږ اړیکي د ډېر وخت له پاره داسي وي چې هغوی به موږ ته د دوستانو

په سترګه و نه ګوري. هر کله چي دوست محمد خان وفات سي نو په افغانستان کي به داخلي جنګونه پيل سي. زه بايد ووايم چي تر ډېره وخته به د هري ډلي دريځ چي زموږ پر دوستي تکيه کوي، د غښتلي کېدلو پر ځای لا هم کمزوري سي. ما فکر کاوه چي دا به ممکنه نه وي چي تر ډېره وخته به د برتانيې عسکر په خيبر کي د تېرېدلو توان پيدا کړي؛ مګر اوس فکر کوم چي که زه تر شپېته کلنۍ پوري ژوند وکړم، زه ښايي يو ځل بيا کابل ووينم او دغه تړون چي موږ يې اوس لاسليکوو، ښايي د دغسي وضع د رامنځته کېدلو سبب سي. سردار تر اندازې زيات چاغ سوی دی مګر دوی وايي چي هغه ښايي تر دوست محمد خان وروسته د افغانستان واکمن سي. ده زه او کرافورډ ډېر ژر او ښه وپېژندلو او زموږ په ليدلو خوشحاله سو. سردار د هغو نورو کسانو په باب پوښتني وکړې چي هغوی په ابدي سفر تللي ول." (فاريسټ، ص: ۲۹۸-۳۰۰)

دې تړون تر ډېره ځايه تشريفاتي بڼه درلوده. د تړون د لومړۍ مادې په اساس د افغانستان امير د خپل ځان او خپلو وارثانو له لوري ذمه وهله چي دوی به د تل له پاره د انګرېزانو سره په سوله کي ژوند کوي او دوستان به يې وي.

په دوهمه ماده کي راغلي وه چي د شرق الهند کمپنۍ به د امير تر کنټرول لاندي سيمو کي هيڅ وخت مداخله نه کوي او په دريمه ماده کي د امير وليعهد د خپل پلار په وکالت ژمنه کړې وه چي امير او د هغه وارثان به د شرق الهند کمپنۍ تر کنټرول لاندي سيمو کي مداخله نه کوي او د شرق الهند کمپنۍ د دوستانو دوست او د دښمنانو دښمن به وي. (ايچيسن، ص: ۲۳۷)

داسي ښکاري چي د دوستۍ دې وروستي تړون ډېره نتيجه نه وي ورکړې؛ يا لږ تر لږه په سرحد کي ناکراری ختمي سوي نه وي ځکه چي نيويل چمبرلين د (۱۸۵۶م.) کال په سپټمبر کي لا خپلې مور ته په يوه ليک کي وايي چي موږ، امکان لري د افغانستان تر سرحد ور تېر سو او د دوست محمد خان قبايلو ته چي زموږ پر خاوره باندي تېری کوي، سزا ورکړو. دی وايي که دوست محمد خان دغو قبايلو ته چي داسي ښکاري هغه کنټرول نه ورباندي لري، سزا ورکولای سي او زموږ مالونه بيرته ورڅخه اخيستلای سي خو بهتره به وي او که نه وي نو موږ مجبور يو چي د دوی کلي وسوځو. دی وايي دا د جنګ ډېره وحشيانه طريقه ده مګر څه وکړو چي بله هيڅ لاره نسته. دې قبايلو زموږ خلک را وژلي دي او د هغوی توی سويويني زموږ څخه د عدالت غوښتنه کوي... (فاريسټ، ص: ۳۱۳)

## د سردار مهردل خان او سردار کهندل خان وفات

د (۱۸۵۵م.) کال په لومړیو میاشتو کې سردار مهردل خان وفات سو او لږه موده وروسته د اگسټ په میاشت کې کهندل خان هم وفات سو. د هغه د ښخولو له مراسمو څخه وروسته د سردار کهندل خان د زامنو او د هغه د کشر ورور سردار رحمدل خان تر منځ د قدرت د نیولو پر سر اختلاف او جگړه پیل سوه. د سردار کهندل خان شپږ زامن یوې خوا ته او د سردار رحمدل خان، سردار پردل خان او سردار مهردل خان زامن بلې خوا ته هم په ارگ کې دننه او هم له ارگ څخه دباندې په ښار کې بلې خوا ته سول او پر یوه بل یې ډزې پیل کړې. دې ډزو څو ورځې دوام وکړ او بالاخره د ښار سپین ږیري، سیدان او ملایان تر منځ سول او له دواړو خواوو څخه یې د جگړې د بندولو غوښتنه وکړه.

جنگ بند سو او سردارانو له امیر دوست محمد خان څخه د منځگړتوب غوښتنه وکړه. امیر دوست محمد خان له خپلې قوې سره کندهار ته داخل سو او د ښار کنټرول یې واخیست. امیر د کندهار ټولو سردارانو ته کلنۍ تنخوا مقرره کړه؛ مگر له لومړۍ ورځې د سردارانو مخالفت څرگند سو او ډېر زیات شمېر یې ښوراوک ته ولاړل. امیر دوست محمد خان خپل زوی سردار غلام حیدر خان او وراره سردار سلطان احمد خان ورپسې ولېږل. سردارانو د مقاومت کولو توان نه درلود او په گرمسیر کې د ملخان خوا ته ولاړل. امیر دوست محمد خان خپل زوی سردار محمد شریف خان او سردار سلطان احمد خان ورپسې ولېږل او هغوی یې په کلا کې محاصره کړل. په کلا کې محاصره سوي سرداران هم یا تسلیم سول او یا ایران ته ولاړل.

مرحوم سید قاسم رښتیا د امیر دوست محمد خان له خوا د کندهار د اشغال او له کابل سره د الحاق په برخه کې بیا هم عیني قضاوت کوي او لیکي چې امیر، سردار شیر علي خان ته وظیفه ورکړه چې د خپلو پوځیانو سره کندهار ته ولاړ سي او د دواړو طرفو رایه ځانته معلومه کړي او له بلې خوا یې شهزاده غلام حیدر خان د انگلیسیانو د نظر د معلومولو له پاره پېښور ته واستاوه. هغه د کندهار د الحاق په برخه کې د انگلیسیانو د موافقې د ترلاسه کولو څخه وروسته د (۱۸۵۵م.) کال د مارچ پر دېرشمه په جمرود کې له سر جان لارنس سره په درو مادو کې دا موافقه لاسلیک کړه.

(رښتیا، ص: ۱۴۵)

لومړی خو رښتیا په خپله لیکي چي دا موافقه د (۱۸۵۵م.) کال په مارچ کي لاسلیک سوې ده. په داسي حال کي چي کهندل خان د دې موافقې څخه شپږ میاشتي وروسته وفات سو او دا وخت له امیر سره د کندهار د اشغال موضوع ببخي مطرح نه وه او بیا نو هغه موافقه راوړي چي په درو مادو کي د کندهار نوم له سره نسته. سړی نه پوهېږي چي رښتیا د کوم سند په حواله وایي چي غلام حیدر خان د امیر له خوا د کندهار د الحاق په برخه کي د انګلیسیانو موافقه تر لاسه کړه او بیا خو غلام حیدر خان د کندهار د اشغال په وخت کي له پلار سره ملګری دی. پېښور ته د لېږل کېدلو سوال نه پیدا کیږي.

مرحوم سید قاسم رښتیا وروسته تر دې هم عجایبي کوي او لیکي چي سردار سلطان محمد خان په دغه وخت کي د هندي عسکرو له ښورښ څخه خبر سوی وو او دوست محمد خان ته یې وویل چي له موقع څخه استفاده وکړي او پېښور ونیسي. مګر امیر و نه منله او سلطان محمد خان د سلطان احمد خان سره یو ځای چي له ایران سره یې له پخوا څخه اړیکي درلودې، د دوست محمد خان د تهدیدولو په منظور د ایران د پاچا ناصرالدین شاه په عنوان یو مکتوب واستاوه... (هغه کتاب، ص: ۱۴۶)

اوس نو د کندهار دا پېښي د (۱۸۵۵م.) کال د سپتمبر یا اکتوبر د میاشتو دي او د انګرېزانو په مقابل کي د عسکرو ښورښ د (۱۸۵۷م.) کال د مې په میاشت کي منځته راغلی دی. ګواکي سلطان محمد خان امیر ته د هند د پېښو په باب یو نیم کال مخکي اطلاع ورکوي. بده خو لا دا چي مرحوم رښتیا د سراج التواریخ د لومړي جلد (۱۳۵) مخ حواله ورکوي او هلته خبري د (۱۸۳۸م.) کال د پېښو په باره کي دي. د سلطان محمد خان او امیر دوست محمد خان اختلاف او د سلطان محمد خان له خوا د ایران پاچا ته د لیک لېږلو کیسه د دوهم جلد په (۲۲۱) مخ کي راغلې ده او هلته د هند د ښورښ نوم له سره نه دی اخیستل سوی؛ ځکه چي په هغه وخت کي ښورښ موجود نه وو.

چي بیرته خپلي موضوع ته را وګرځو، داسي ښکاري چي سردار سلطان احمد خان د خپل انتظار په خلاف، هغه څه چي په نظر کي درلودل، تر لاسه نه کړل. ځکه ده په لومړي سر کي لا ځان په سلطنت کي شریک باله او دا ځل یې هم لږ تر لږه د کندهار واکمني تر نیت ایستلې وه. امیر دوست محمد خان په هغه ځکه اعتماد نه سو کولای چي ټول عمر یې له امیر سره مخالفت کړی

وو او داسي یوه سړي ته د کندهار په څېر مهم ولایت سپارل په هیڅ توگه له خطره خالي نه وه. سردار سلطان احمد خان له کندهار څخه بیرته ایران ته ولاړ او له نورو سردارانو سره چي له ده څخه مخکي یې د ایران دربار ته پناه وړې وه، یو ځای سو.

سردارانو د خپلو طرفدارو ملایانو په مرسته د امیر په مقابل کي له وروستۍ وسیلې څخه هم کار واخیست. ملایانو په ښار او شاوخوا کي د امیر پر ضد تبلیغ وکړ چي هغه د انگرېزانو دوست او د اسلام دښمن دی. د امیر پر ضد جهاد روا دی او له هغه سره جنگ او مخالفت کول له پرنگیانو سره د جهاد کولو معنی لري.

امیر دوست محمد خان د کندهار حکومت خپل زوی سردار غلام حیدر خان ته وسپاری او د کابل پر لور روان سو. که څه هم چي امیر پر دې مخالفتونو غښتلی سو خو له هغه سره بیا هم اندېښنه ورسره وه او د پېښور کمېشنر هربرټ ایډوروډز ته یې د یوه افغان په لاس چي د انگرېزانو په پوځ کي افسر وو او تازه یې وظیفه په کابل کي پای ته رسېدلې وه، شفاهي پیغام واستاوه. امیر ایډوروډز ته ویلي وه چي که انگرېزان د ده د پوځ لگښت ورکړي نو دی حاضر دی چي په هرات کي د ایراني عسکرو پر ضد عملیاتو کي برخه واخلي. ده ضمناً هغه ته احوال ورکړ چي تر عملي گام اخیستلو مخکي باید د برتانوي مقاماتو سره خبري وکړي. (لمسډن، ص: ۱۳۴-۱۳۵)

گورنر جنرال د پنجاب عالي کمېشنر جان لارنس ته امر وکړ چي له امیر دوست محمد خان سره د یوې غونډې ترتیب ونیسي او که هغه چیري دې ته حاضر وو چي د هرات له شاوخوا څخه د ایرانیانو د لیري کولو له پاره عملیات وکړي نو د پیسو ورکولو صلاحیت هم لرې. امیر له کابل څخه د دسمبر پر اوومه روان سو او د (۱۹۵۷م.) کال د جنوري پر لومړۍ نېټه یې د خیبر د درې په خوله کي له جان لارنس سره وکتل.

جنرال سیډني کاټن چي په دغو خبرو کي یې برخه درلوده، له دې امله خوښ وو چي له دوست محمد خان سره یې له نیژدې لیدلي او پېژندلي وه او ضمناً یې د هغه په نیت ځان خبر کړی وو. دی وایي دوست محمد خان غوښتل چي له برتانوي متحدینو څخه د ایران پر ضد جگړه کي یا د پیسو یا د پوځ او یا د دواړو مرسته تر لاسه کړي او دغه راز یې غوښتل چي د افغانانو هغه خاوره بیرته وغواړي چي د ده متحدینو اشغال کړې وه او هغه د اباسین پر لوېدیځه غاړه د پېښور وادي وه.

ده د دې غوښتني له پاره دلیل هم درلود او هغه دا چي ویل یې موږ اوس دښمنان نه یو نو د ده د قلمرو تر ټولو حاصلخېزه خاوره مو لا ولي باید نیولې وي. (کاټن، ص: ۱۳۱)

جنرال سيډني کاټن وايي د خيبر په دره کي تر څو ميله تګ وروسته مو د دوست محمد خان کمپ وليدی. رښتيا هم ډېر ښکلی جوړ سوی وو. په دغه سيمه کي کمپونه معمولاً ډېر ښايسته وي؛ په تېره بيا د درې په لوړو څوکو ولاړ بيرغونه چي هر رنګ پکښي ښکارېدی ډېر ښکلي معلومېدل. د امير د کمپ مخي ته د توپونو يو کتار درول سوی وو. د ده سپاهيانو زموږ د عسکرو په څېر سرې جامې اغوستي وې. ټول وسله وال او د درې لوړې ژوري يې نيولي وې. د قبايلو خلکو چي شمېر يې ډېر زيات وو، لوړې څوکي نيولي وې. حقيقتاً يوه عالي منظره وه او دلته ما سمه نه ده ترسيم کړې. کمپ ته د عالي کمېشنر د رسېدلو سره سم، د ده په احترام د توپونو ډزي وسوې او له دې سره د درې په لوړو او ټيټو برخو کي د توپکو ډزي پيل سوې. ډزي بې شماره وي او دونه زياتي وې چي تا به ويل د درې لوړې او کښته برخي سره لمبه سوې....

دا خبره د بل هر حقيقت په څېر روښانه ده چي که د برتانيې پوځيان په هغه وخت کي، په چټکۍ سره د خيبر درې ته داخل سوي وای نو دا به د دوی سمدستي تباهي وای. افغانانو به دا فکر کړی وای چي موږ د دښمنانو په حيث، درې ته داخل سوي يو او خيانت مو په خيال کي دی. څرنګه چي دوی ټول پر لوړو څوکو ولاړ وه او مورچلونه يې نيولي وه نو په موږ کي به دونه سړی پاته سوی نه وای چي د دې تباهۍ کيسه يې کړې وای. زه چي هر وخت هغه صحنه را په ياد کړم نو د خدای شکر ادا کړم چي سلامت خلاص سوی يم. (هغه کتاب، ص: ۱۳۹-۱۴۰)

امير او جان لارنس ډېري غونډي سره وکړې او بالاخره د (۱۸۵۷م.) کال د جنوري پر شپږويشتمه وروستۍ موافقه لاسليک سوه. د دې موافقې په اساس امير ژمنه وکړه چي د ايرانيانو سره د جګړې په وخت کي به په مياشت کي هغه يو لک روپۍ چي له انګرېزانو څخه يې تر لاسه کوي، په خپلو پوځيانو لګوي. د نورو موادو ترڅنګ، چي موافقه ورباندي وسوه، يوه ماده دا وه چي امير به د برتانيې درو افسرانو ته اجازه ورکوي چي د کورم، پيواړ او لوګر له لاري افغانستان ته ولاړ سي او دا يقيني کړي چي دغه پيسې په مناسبه طريقه د افغانستان په پوځيانو لګول کيږي.

## د موافقې بشپړ متن

۱. څرنګه چې د ایران پاچا له برتانیې سره د موافقې په خلاف، د هرات کنټرول اخیستی دی او اعلان یې کړی دی چې د امیر دوست محمد خان په اوسني قلمرو کې هم مداخله وکړي او اوس حاضر د برتانیې او ایران د حکومتونو تر منځ جنګ روان دی، له دغه امله د شرق الهند کمپنۍ له امیر دوست محمد خان سره مرسته کوي چې له خپل قلمرو څخه په بلخ، کابل او کندهار کې د ایران په مقابل کې دفاع وکړي او و یې ساتي. د شرق الهند کمپنۍ په دې وسیله موافقه کوي چې امیر ته له میاشتې یو لک روپۍ، له ایران سره د جنګ په وخت کې، په دغو شرایطو ورکړي.

۲. امیر باید د خپل اوسني پوځ سپاره او توپچي قوه وساتي او په پوځ کې به یې تر اتلس زره لږ پیاده قوه نه وي چې له هغې جملې څخه به یې دیارلس زره منظم پوځیان وي او پر دیارلسو لواوو به وېشل سوي وي.

۳. امیر باید د برتانیې له خزانې څخه د دغو پیسو د اخیستلو او په خپله خاوره کې د پیسو د تېرولو لپاره خپل ترتیب ونیسي.

۴. د برتانیې صاحب منصبان به، چې د هند له داخلي تاسیساتو او اردلیانو څخه به وي، د برتانیې د حکومت په خوښه کابل، کندهار، بلخ او یا درو واړو ولایتونو ته لېږل کیږي او یا به هغو ځایونو ته استول کیږي چې د افغانستان حکومت د ایران په مقابل کې مورچې نیولې او عملیات کوي. دا کسان به دا معلوموي چې امیر ته ورکړل سوي پیسې په مناسبه طریقه د پوځي اهدافو له پاره لګول کیږي او د ټولو حالاتو څخه به خپل حکومت ته اطلاع ورکوي. دوی به پوځیانو ته د تنخوا له ورکول کېدلو سره هیڅ غرض نه کوي او نه به د کابل حکومت ته په دې باره کې مشوره ورکوي او په هیڅ ډول به د افغانستان په داخلي اداره کې لاس نه وهي. تر هغه وخته پوري چې دغه پوځیان د امیر په خاوره کې وي امیر د هغوی د حفاظت او له هغوی سره د ښه سلوک مسؤل دی او امیر به هغوی ته د ټولو هغو پوځي او سیاسي موضوعاتو په باب معلومات ورکوي چې له جنګ سره اړه لري.

۵. د کابل امیر باید په پېښور کې یو وکیل وټاکي.

۶. امیر ته به د میاشتي یو لک روپۍ سبسیډي، له ایران سره د جنګ له ختمېدلو وروسته بندېږي او یا کېدلای سي چي مخکي تر هغه هم د ګورنر جنرال له خوښي سره سم بنده سي.

۷. هر وخت چي دا سبسیډي بنده سي نو د برتانیې صاحب منصبان به د امیر له قلمرو څخه را وځي. مګر د برتانیې په خوښه به یو وکیل، چي برتانوی افسر به نه وي، په کابل کي پاتېږي او دغه راز به د کابل د حکومت له خوا یو وکیل په پېښور کي اوسېږي.

۸. امیر به د برتانیې د صاحب منصبانو د ساتلو له پاره، د ده خاوري ته له داخلېدلو او بیرته د برتانیې قلمرو ته تر رسېدلو پوري، کافي بدرګه برابروي.

۹. سبسیډي به د (۱۸۵۷م.) کال د جنوري له لومړۍ نېټې څخه پیل کېږي او د برتانیې په خزانه کي به یوه میاشت مخکي ایښودل کېږي.

۱۰. هغه پنځه لکه روپۍ به، چي درې کابل او دوه لکه کندهار ته لېږل سوي دي، په پورته ذکر سوي سبسیډي کي شاملي نه وي. هغه د شرق الهند د کمپنۍ له خوا یوه وړیا او بېله تحفه ده. مګر هغه شپږ لکه روپۍ چي همدا اوس د کابل د ادارې په لاس کي دي، د ټاکلي سوي سبسیډۍ لومړنی قسط دی.

۱۱. دغه موافقه په هیڅ صورت د (۱۸۵۵م.) کال د مارچ د دېرشمي هغه موافقتنامه نه ردوي چي په هغې کي امیر موافقه کړې وه چي د شرق الهند د کمپنۍ د دوستانو دوست او د دښمنانو دښمن به وي او د کابل امیر به، د هغه تړون د روحیې سره سم ټول هغه پېشنهادونه چي د ایران یا د ایران د دوستانو له خوا د جنګ په وخت کي ورته کېږي، د برتانیې حکومت ته سپاري او یا تر هغه وخته چي د کابل او د برتانیې د حکومت دوستي ټینګه وي.

۱۲. د هغې دوستۍ په نظر کي نیولو سره چي د برتانیې د حکومت او امیر دوست محمد خان تر منځ موجوده ده، د برتانیې حکومت ژمنه کوي چي د افغانستان د قبایلو ټولي پخوانۍ دښمنۍ هېري کړي او په هیڅ توګه به هغوی ته د سزا ورکولو له پاره ور نه سي.

۱۳. څرنګه چي امیر هیله څرګنده کړې ده چي ده ته دي پر هغو څلورو زرو توپکو سربېره چي مخکي ورکول سوي دي، نور څلور زره توپکه ورکړل سي؛ د برتانیې حکومت موافقه کوي چي دغه څلور زره توپکه به ټل ته ور رسوي او له هغه ځایه څخه یې افغانستان ته رسول په امیر اړه لري.

د دې موافقي سره سم مېجر هېري لمسډن، لیفټیننټ پیټر لمسډن او ډاکټر بیلیو او غلام سرور

جوړي کړي دي. په دې سلسله کې ادعا کوي چې "وزیر اکبر خان د ایران پاچا محمد شاه ته د (۱۸۴۶م.) کال په پای کې، د اخوندزاده عظیم په لاس یو لیک واستاوه او له هغه څخه یې وغوښتل چې د انګرېزانو پر ضد لاس ورسره یو کړي او له ده سره د دوستۍ دفاعي تړون لاسلیک کړي. د هغه خسر یار محمد خان هم د ایران پاچا ته یو استازی واستاوه او له هغه څخه یې د مرستې غوښتنه وکړه. محمد شاه له دوی سره مرسته و نه کړه خو د هیئت یې ډېر قدر وکړ او د هغه په لاس یې وزیر اکبر خان، دوست محمد خان، د وزیر اکبر خان ورونو او اکاګانو او نورو هغو سردارانو ته چې په دغه قضیه کې د اکبر خان طرفدار ول، جواهر نشانه توري په سوغات کې ولېږلې.

دغه راز د یار محمد خان او کهندل خان تر منځ هم نښتې وسوې او اکبر خان غوښتل چې د خپل خسر د ملاتړ له پاره پر کهندل خان باندې حمله وکړي. امیر له هغه سره مخالفت وکړ او دا مخالفت دې اندازې ته ورسېدی چې اکبر خان خپل پلار ته بد رد وویل او هغه یې بې زړه او بې غیرته وباله او د بندي کولو ګواښ یې ورته وکړ. امیر دوست محمد خان له ویرې د شیرین خان قزلباش په کور کې پټ سو. اکبر خان له شیرین خان څخه وغوښتل چې که د ده پلار په لاس ور نه کړي نو حمله به ورباندې وکړي. دا چې اکبر خان به وروسته څه کړي وای، دا معلومه نه ده خو هغه سمدستي وفات سو. ویل کېږي چې یوه هندو طبیب هغه ته دوې زهري ګولۍ ورکړې وې او چې اکبر خان هغه له ستوني تېرې کړې؛ په دریو ساعتونو کې وفات سو." (فیریه، ص: ۳۹۳-۳۹۴)

دا چې د فیریه دا ټوله ادعا، چې څو مخه یې په تور کړي دي، څومره بې اساسه ده هغه خو په هر صورت. فیریه فقط دونه خبر سوی دی چې اکبر خان په ناڅاپي توګه وفات سو خو په دې نه دی خبر چې هغه په جلال آباد کې وفات سوی دی چې له کابل څخه یې لږ تر لږه دوې ورځې درې ورځې فاصله درلوده. که چا اکبر خان ته زهر ورکړي او په دریو ساعتونو کې یې له منځه وړی وي نو له کابل څخه تر جلال آباد پوري څرنګه ورسېدی؟ او دا خو هم امکان نه لري چې په کابل کې دي دونه جدي پېښه روانه وي؛ دوست محمد خان دي د شیرین خان په کور کې محاصره وي او اکبر خان دي د جلال آباد په سفر روانېږي او هلته دي زهر ورکول کېږي.

نه اکبر خان له محمد شاه قاجار سره تماس نیولی او نه یې هغه ته لیک استولی او نه یې د دونه لوی کار د کولو صلاحیت درلود. نه د محمد شاه قاجار له خوا جواهر نشانه توري کابل ته رسېدلي دي او نه یې چا احوال ورکړی دی. د اکبر خان او د خپل پلار دوست محمد خان تر منځ هیڅ وخت اختلافات موجود نه وه. دا ټول اختلاف د فیریه د ذهن او خیال محصول دی او له بده مرغه

عقيدې له مخې له ايران څخه پردي دي او څکه نو، که ښه سلوک ورسره وسي، د افغانانو حکومت ته به غاړه کښېږدي. نو که د امير تر وفات وروسته قدرت د هغه د قوي زامنو لاس ته ولوېدی، هرات به له افغانستان سره وي او که د کمزورو کسانو لاس ته قدرت ولوېږي نو هرات به له هغوی سره يو ځای د ايران لاس ته لوېږي. دا بايد په ياد ولرو چې د هرات موقف له هغه وخته څخه توپير لري چې کندهار د امير د ورونو په لاس کي وو. د کندهار له الحاق سره امير د هرات له خاوري سره مستقيمي اړيکي لري؛ چې ټول د ده خپله قبيله او خپلوان دي. دا داسي حالت دی چې د هر مشر له پاره به دا گرانه وي چې هرات له کابل څخه مستقل وساتي.

په دغو حالاتو کي ما ته دا بهتره معلومېږي چې هرات دي امير ته وسپارل سي او ده ته اجازه ورکړل سي چې هلته خپل گورنر وټاکي. بيا به نو دی په بشپړ باور د خپل وليعهد او کورنۍ د گټو ساتلو ته متوجه سي او په دې توگه به دا يقيني سي چې هغه ښار د افغانستان سره پاته سي؛ تر دې چې د ايران لاس ته لوېږي او په نتيجه کي د روسيې د راتلونکو نقشو تم ځای ورڅخه جوړېږي.

ما ته له هغو ورځپانو څخه چې ما ته را رسېدلي دي، معلومېږي چې ايران به ډېر ژر د هرات پرېښودلو ته مجبور سي او جنگ به ودرېږي. که داسي پېښه سي نو زموږ ماموريت به دلته ختم سي او يا دا چې تاسي امر وکړی چې موږ هرات ته ولاړ سو او هلته وگورو چې د تړون مواد رعايت سوي دي که نه او په هغه صورت کي د مرکزي اسيا د هيوادونو نظريات او موقفونه له نيژدې وگورو." (لمسډن، ص: ۱۵۲-۱۵۴)

کندهار ته د لمسډن د هيئت له رسېدلو څخه لږ وروسته په هند کي د انگرېزانو پر ضد يو عمومي پاڅون پيل سو او د برتانيې ډېر زيات شمېر عسکر له ښورښيانو سره يو ځای سول. کندهار ته داسي اوازې را ورسېدلې چې د هند پاڅون والو، چې د هند پاچا يې مشري کوي، د برتانيې ټول عسکر وژلي او خپل بيرغ يې پورته کړی دی. په کندهار کي ډېر مشران او په تېره بيا ملايان په دې عقيده وه چې کندهار ته ورغلی هيئت له تېغه تېر کړي. د کندهار گورنر سردار غلام حيدر خان، خپل پلار ته وليکل چې په هند کي ټول برتانويان وژل سوي دي. دا به بهتره نه وي چې زه دا څو تنه دلته قتل کړم. امير دوست محمد خان وليکل چې دا يو بې گټې کار دی. دا ښايي رښتيا وي چې په هند کي به ټول اوسېدونکي برتانويان وژل سوي وي مگر دوی به، د سمندر له ها خوا څخه په زرگونو را ورسېږي او هند به بيرته اشغال کړي. بهتره به دا وي چې له دې درو تنو سره هيڅ غرض و نه کړې. سايکس ليکي چې امير ته په هند کي د اوسېدلو په وخت کي د انگرېزانو قدرت معلوم سوی وو. (سايکس، دوهم جلد، ص: ۶۷)

# کندهار

د کندهار د خلکو وضع د سردار غلام حیدر خان د حکومت په وخت کې بهتره نه بلکې د سردار کهندل خان تر وخت نوره هم خرابه سوه. د اروپایي هیئت له یاداښتونو څخه معلومېږي چې سردار غلام حیدر خان هم ډېر ظالم او هم، په اداري او مالي لحاظ، فاسد سړی وو. ډاکټر بیلیو، چې د میجر لمسډن سره د کندهار په هیئت کې ملګری وو، د سردار غلام حیدر خان د وخت د سترګو لیدلو حالاتو په باب ځینې داسې کیسې کوي چې د منلو وړ نه دي او تقریباً هغه ته ورته کیسې دي چې آرتر کانلي، فیریه او نورو لیکوالانو او سیاحانو د سردار کهندل خان د حکومت په باره کې کړې دي.

لمسډن او د هغه ورسره هیئت په داسې وخت کې کندهار ته ورسېدی چې په ښار کې ډېره سخته قحطي وه. بیلیو لیکي چې د کندهار د خلکو کړاو تر اندازې زیات وو. داسې آوازه وه چې دا قحطي اصلاً د هغه ښار سودخورو جوړه کړې ده چې غنم یې د ګرانۍ له پاره په ګودامونو کې ذخیره کړي دي. ویل کېږي چې سردار غلام حیدر خان هم په دغه سودخورۍ کې برخه لري. د غزني او سبزوار (شینډنډ) څخه غنم، په ارزانه بیه واردوي او دلته یې د قحطی په بیه خرڅوي... سردار خپلو عسکرو ته شپاړس سېره اوړه په یوه روپۍ ورکوي او پیسې د هغوی له تنخوا څخه کموي. مګر په ښار کې یې، د سودخورو په بیه، دوه سېره په یوه روپۍ ورکوي. غریبان او ښسمتن خلک په دغه بیه اوړه نه سي اخیستلای او ځو میاشتې کېږي چې په شپیشتو، شفتلو، ریښو او د توت په پاڼو، چې معمولاً یې اومه خوري، ګوزاره کوي. (بیلیو، ص: ۲۲۹-۲۳۰)

بیلیو لیکي چې تقریباً یوه هفته یا لس ورځې مخکې د کندهار یو شتمن سوداګر، چې په قام ترین وو، ناڅاپه وفات سو. د هغه یوه نهه کلنه لور او (۱۵۰۰۰) زره نغدي روپۍ، اته قلبې مځکه، چې شپږ سوه روپۍ ارزښت یې درلود، آسونه، څاروي او په تجارت کې بندي روپۍ پاته سوې. کله چې د دې سوداګر د مرګ خبر خپور سو نو د سردار غلام حیدر خان شپږ اووه تنه عسکر د هغه کور ته ورننوتل؛ د هغه سوداګر شتمني یې واخیستله او ویل یې چې دوی هم په قام ترین دي او د سوداګر په میراث کې حق لري. ماشومه وارخطا سوه او له خپل یوه یا دوو نوکرانو سره د خپلې

مورنۍ انا کور ته، چې په یوه بله محله کې اوسېده، ولاړه. عسکر ورپسې ورغلل او ویل یې چې له نجلۍ سره پنځلس زره روپۍ دي، هغه باید دوی ته ورکړي. د نجلۍ انا او نیکه پر سردار باندې عرض وکړ او له هغه څخه یې د حفاظت او عدالت غوښتنه وکړه. د سردار عدالت دوی حیران کړل؛ ځکه چې هغه سمدستي په نجلۍ پسې سړي ولېږل او ویل یې چې له هغې سره په خپله واده کوي. نجلۍ په هماغه ورځ په یوه جوپان کې د سردار حرم سرای ته یووړل سوه؛ مېلمستیاوې جوړې سوې، میوزیکونه ږغېدل او د توپکو او د توپونو ډزې پیل سوې. سردار د نجلۍ د ټولو شتمنیو کنټرول واخیست او د هغې نیکه او انا یې کور ته رخصت کړل چې دوستان یې د دومره لوی مقام سره د دوستۍ کولو مبارکي ورته ووایي. (هغه کتاب، ص: ۲۵۹)

بل ځای لیکي چې دوې ورځې مخکې څو تنو سوداګرو د میمنې او هرات له لارې د اوپا اتیا آسونو قافله د شکارپور او سند بازارونو ته روانه کړې وه. سردار خپل میرآخور ته وویل چې د ده له پاره ښه آسونه انتخاب کړي. هغه هم شل آسونه پکښې خوښ کړل. سردار په هغو شلو کې شپږ انتخاب کړل؛ او درباریانو ته یې مخ را واړاوه او ویل یې دا ډنګر او ناروغ حیوانان چې هسې رنګونه یې د آسونو دي، په څو ورځخه واخلم. میرآخور وویل چې هر آس په پنځه دېرش روپۍ. خو څرنګه چې سردار په سخاوت کې مشهور دی نو که پنځه څلوېښت روپۍ ورکړي، بس یې دي. سردار د خپل سخاوت څخه کار واخیست او د هر آس له پاره یې پنځوس روپۍ ورته ومنلې. د آسونو سوداګرو په خدای او په قران سوګندونه یادول چې په دغه بیه خو دوی اخیستي نه دي او دوی به تباه سي. سردار د چا خبره نه اورېده. سوداګرو هغه آسونه په شکار پور کې هر یو له درې نیم سوه څخه تر څلور سوه روپیو پورې خرڅ کړي ول. خو سردار یوازې په پنځوس روپۍ اخیستي وه. (هغه کتاب، ص: ۲۶۶-۲۶۷)

بیلیو لیکي چې یو کال مخکې د شکارپور دروازې څخه دباندې په یوه کوچنې کلي کې یو شتمن سوداګر وفات سوی وو. له ده څخه دوولس دیارلس زره نغدې روپۍ او جواهرات او ښې ډېرې مځکې او شمنې پاته سوې وه. د سوداګر ورونو د هغه له ځواني کونډې څخه وغوښتل چې په دوی کې له یوه سره واده وکړي. کونډې د دوی غوښتنه و نه منله. د خپل پلار کور ته ولاړه او د یوه ځوان مُلا سره یې واده وکړ. مدعیانو مُلا په سپینه ورځ په چړو ټوکر ټوکر کړ او په خپله وتښتېدل. سردار د هغوی د کورنۍ غړي بندیان کړل. هغوی دوولس سوه روپۍ جریمه تحویل کړل او بیرته خوشي سول. څو ورځې وروسته د سوداګر کونډې سردار ته عرض وکړ او د عدالت غوښتنه

یې وکړه. سردار هغه وشکنځله او ورته و یې ویل چې د پښتني عنعناتو په خلاف یې داسي کار کړی دی چې ټولي کورنی ته یې شرم اړولی او په خپله خوښه یې مېړه انتخاب کړی دی. د هغې ټوله شتمني یې په خپله ورځخه غصب کړه او ځان یې په شتمن کړ. (هغه کتاب، ص: ۲۸۱-۲۸۲)

سردار له خپلو پوځیانو سره هم بېحده زیات ظلمونه کول. د ده د ظلمونو له لاسه هره ورځ عسکر تښتېدل. یو شمېر یې ونیول او په ډېره بېرحمانه توګه یې د ارګ مخي ته غرغره کړل. یو شمېر کسانو چې وسلې یې ورسره تښتولي وې او مقاومت یې کاوه. هغوی یې ټول په جنګ کې ووژل. سرونه یې سردار ته راوړل. سردار د ټولو سرونه په چارسو کې وځړول؛ تر څو چې وراسته سول او له پېژندلو ووتل. (هغه کتاب، ص: ۳۳۴)

په کندهار کې د برتانوي هیئت د اوسېدلو په لومړیو شپو ورځو کې یوه پېښه منځته راغله چې یادول یې بې ګټې نه دي. بیلیو وایي چې یو سړی د ضروري او عاجل رپوټ په پلمه د سردار غلام حیدر خان تر ډېرو پیره دارانو تېر سوی وو او بالاخره د هغه د خوب د خوني پیره دارانو را ګرځولی وو. په تلاښي کې معلوه سوه چې هغه له ځان سره توره درلوده. سردار هغه سړي ته ویلي وه چې که دي حال وواېه خوشي کوم دي او که دي و نه وایه نو سهار به دي غرغره کړم. سړي ورته وویل چې د سردار کهندل خان مشر زوی سردار محمد صدیق خان د هغه د وژلو وظیفه ورکړې وه.

محمد صدیق خان سهار وختي په خپل کور کې ونیول سو او په سیاه چال کې واچول سو. څه وخت وروسته د امیر دوست محمد خان له امر سره سم کابل ته ولېږل سو او امیر په بالاحصار کې نظر بند کړ. څه باندي یو کال یې هلته وساتی او بالاخره سردار محمد صدیق خان امیر ته ډېري زاری وکړې چې کندهار ته د تللو اجازه ورکړي. امیر دوست محمد خان هم د هغه غوښتنه ومنله او کندهار ته د لېږلو څخه یوه شپه مخکي یې د مخه ښې مېلمستیا ورته وکړه. سردار د ډوډی له خوړلو څخه څو ساعته وروسته وفات سو. (هغه کتاب، ص: ۲۳۰-۲۳۱)

بیلیو له کندهار څخه هندوستان ته د بیرته ستنېدلو په لاره کې څو ورځې په کلات کې تم سو او وایي چې د کلات له حاکم فتح محمد خان څخه، چې د سردار محمد اکبر خان زوی وو، خلک خوشحاله وه. هغه ډېر مؤدب او رسېدلی ځوان بولي، چې د نوو معلوماتو تر لاسه کولو ته ډېر لېواله وو. بیلیو وایي هغه به زموږ معلوماتو ته په ډېره علاقه غوږ نیولی وو او د بېلو بېلو تاریخي او علمي موضوعاتو په باره کې به یې پوښتني کولې. خو کله چې مي یوه ورځ ورته وویل چې مځکه ګردی

ده او د لمر پر شاوخوا راګرځي نو هغه زما دې خبرې هک پک کړ. هغه دونه حیران سو او زموږ پر معلوماتو او اطلاعاتو باندې دونه بې باوره سو چې وروسته یې زموږ هیڅ خبره زړه ته نه لوېده. (هغه کتاب، ص: ۳۷)

د لمسډن هیئت، هندوستان ته په لاره کې، په غزني کې هم تم سو. دوی د غزني له حاکم سردار شېر علي خان سره ځکه و نه لیدل چې هغه په دغه وخت کې کابل ته تللی وو. که څه هم چې دوی په غزني کې دونه معطل سوي نه دي چې د هغه ښار د عمومي وضع په باره کې یې مفصل معلومات ورکړي وای خو له یوې کیسې څخه یې معلومېږي چې په غزني کې ظلم او بې عدالتي انتها درجې ته رسېدلې وه. بیلیو وایي کله چې موږ غزني ته ورسېدلو نو خبر سولو چې شپږ تنه عسکر ځکه په توپ کې الوزول سوي دي چې د خپلو تنخواوو غوښتنه یې کړې وه چې اته نهه میاشتې ځنډېدلې وه. د غزني مامورینو ویل چې دې سزا لکه جادو داسې کار وکړ. تر دې وروسته هیچا بیا د تنخوا ږغ نه دی پورته کړی او عسکر خپلو وظیفو ته ستانه سول. عسکرو خپل پخواني کار چې د ښار او اطرافو د خلکو لوټول وه، پیل کړ او خپل ورځني ضروریات یې پوره کول. (بیلیو، ص: ۴۶۷-۴۶۸)

لمسډن هم د سردار غلام حیدر خان د حکومت د ظلمونو او بې عدالتیو بیان کوي. داسې ښکاري چې د سردار له ظلم څخه هیڅ طبقه فارغه نه وه. لمسډن لیکي چې پوځیانو ته ډېرې سختې سزاوې ورکول کېدلې. د هغوی تنخواوې به څو میاشتې وځنډېدلې او بالاخره به یې ورڅخه وخوړې. له عسکرو څخه به یې جامې وایستلې، پړمخې به یې پرې ایستل او پر ملا باندې به یې تر هغه وخته په لرګیو وهل چې یا به بې سده او یا به تر وهلو لاندې مړه سول. که به عسکر وتښتېدی نو د هغه د کورنۍ غړي بندیانېدل او د غلامانو په توګه خرڅول کېدل او که به تښتېدلی عسکر ونیول سو نو یا به په ځنځیرونو کې پروت وو او یا به یې وواژه. که چا د حکومت ټوپک خرڅ کړی وای هغه به غرغره کېدی. خلکو له ویرې ښورښ نه کاوه؛ ځکه چې په لږ ګومان به خلک سمدستي اعدامېدل او د محاکمه کېدلو او عدالت هیڅ درک نه وو. (لمسډن، ص: ۱۶۳)

سردار د پیسو د ترلاسه کولو او ذخیرو د ډکولو په لاره کې، چې تنده یې په هیڅ توګه د ماتېدلو نه وه، هیڅ ډول سرحد نه پېژاند. لمسډن وایي چې د (۱۸۵۸م.) کال د جنوري پر څلرویشتمه سردار، په لسو میاشتو کې د پنځم ځل له پاره، د کندهار د روپیو ارزښت نیمایي ته را ټیټ کړ. له ښاریانو څخه یې ټولې سکې په نیمه واخیستلې او په څو ورځو کې یې بیرته هغه سکې پر خلکو په پخواني

شاوخوا کې، چې د امیر دوست محمد خان تر مستقیمې ادارې لاندې سیمې وې، عدالت او امنیت ټینګ وو؛ نور نو د هیواد په هره برخه کې والیانو او حاکمانو، چې زیاتره د امیر زامن او یا د کورنۍ غړي وه، له خلکو سره هغه څه کول چې زړه یې غوښتل.

سردار غلام حیدر خان هم کابل ته د رسېدلو څخه وروسته ډېر وخت ژوندی پاته نه سو. د لسمډن هیئت ایله له غزني څخه یو منزل لیرې سوی وو او د سواره په نوم علاقه کې یې کمپ جوړ کړی وو چې د جون پر لومړۍ نېټه له کابل څخه یو ایلچي ورغی او د سردار غلام حیدر خان له خوا یې ښه ډېر قیمتي سوغاتونه ورته راوړي وه. ایلچي ډاکټر بیلیو ته وویل چې سردار سلامونه ویل او دا چې ستاسې سره د خدای په امانۍ په وخت کې په کندهار کې نه وو، خواشیني یې څرګندوله. ایلچي وویل چې سردار ډېر سخت ناروغ وو او د کابل د طبیبانو او حکیمانو په لاس کې وو. هغه له سختي تبې څخه شکایت کاوه او ویل کېدله چې د میوو په خوړلو او شرابو په څښلو کې د سخت افراط له امله ناروغ سوی دی. (بیلیو، ص: ۴۶۳)

سردار له دې څخه زیات و کم یوه میاشت وروسته په کابل کې د نهه دېرشو کالو په عمر وفات سو. که په کندهار کې د سردار غلام حیدر خان څه باندې یو نیم کال حکومت ته یو نظر واچوو نو ویلای سو چې دې سردار پرته د پیسو له ټولولو بل هیڅ کار نه درلود او پیسې یې په هره ناروا طریقه جمع کولې. هغه د اته دېرشو یا نهه دېرشو کالو په عمر چې ډېر سخت ناروغ وو او شپږ میاشتې نور یې ژوند و نه کړ، یوه نهه کلنه نجلۍ، د هغې د جایدادونو او پیسو د غصبولو په منظور په نکاح کړه. لمسډن په خپلو خاطراتو کې لیکي: "په کندهار کې د ولیعهد د روغتیا مسئله د اندېښنې وړ وه او له هر چا سره یې تشویش پیدا کړی وو. ډاکټر بیلیو ویل چې د هغه روغتیایي حالت ډېر خطرناک دی او هره ورځ تر بلې خرابېږي او سوړ موسم ډېر بد ورباندې لګېږي. سردار فیصله کړې وه چې کابل ته ولاړ سي، نه یوازې د هوا د تبدیلۍ په خاطر بلکې غواړي چې له امیر څخه د غلجیو د سیمو د یوې ټاکلې برخې د مالیاتو ټولولو قرارداد تر لاسه کړي. مګر هغه نه سوای کولای چې تر پسرلي پورې کابل ته سفر وکړي. نو سردار د کال په سر کې د کندهار له خلکو څخه په جبر د پیسو اخیستلو پلان جوړ کړ. د (۱۸۵۸م.) کال د جنورۍ پر څلرویشتمه یې د تېرکال د سپټمبر راهیسې، د پنځم څل له پاره، له خلکو څخه مِسي سکې بیا هم په نیم قیمت واخیستلې او په څو هفتو کې یې بیرته هغه سکې په بشپړ قیمت ورباندې وپلورلې. طبیعي خبره ده چې هم په ښار او هم له ښار څخه دباندې خلک ناراض ول." (لمسډن، ص: ۲۳۲)

سردار غلام حیدر خان دومره جدي ناروغ وو او د نقرص له دردونو څخه کړی ورځ او شپه کړېدی او حتماً به یې نوري ناروغۍ هم درلودلې، ځکه چي وايي له چاغۍ څخه پر لاري نه سو تللای او نفس تنګي یې هم درلوده، له دې وروستي ظالمانه عمل څخه وروسته یې ایله شپږ میاشتي نور ژوند وکړ.

له دې څخه ښکاري چي که امیر دوست محمد خان عدالت او امنیت قایم کړی وو نو هغه یوازي په هغو سیمو کي وو چي د ده تر مستقیم کنټرول لاندي وې. حتی په کندهار کي یې، چي د ده د قدرت مرکز وو، عدالت نه سوای ټینګولای او که چیري سردار غلام حیدر خان وفات سوی نه وای او د پلار له وفات څخه وروسته یې د ټول افغانستان کنټرول اخیستی وای نو لا خدای خبر دی چي پر وطن به یې څه حالات راوستلي وای.

## د امیر دوست محمد خان د یو موټي هیواد د جوړولو پروګرام

امیر دوست محمد خان په دوهم ځل پاچهي کي، چي نسبتاً اوږده دوره هم وه، چنداني اصلاحاتو ته، چي که یې په نظر کي درلودل، فارغ نه سو. هغه باید تر هر څه مخکي خپل یاغي اولسونه او سیمي د مرکز تابع کړي او خپل هغه قلمرو یې، چي افغانستان بلل کېدی سره یو ځای کړی او تر یوه بیرغ لاندي کړی وای. امیر دوست محمد خان د پایتخت په شاوخوا کي، د غلجي قبایلو له مخالفت او مقاومت سره مخامخ وو او هغه یې تر یوه ځایه د خپل مشر زوی او ولیعهد وزیر محمد اکبر خان په توره کرار کړل. وروسته د شمال خوا ته متوجه سو او د هر ولایت د لاندي کولو او ایلولو له پاره یې جلا جلا لښکرکښۍ وکړې. امیر د یو موټي افغانستان د جوړولو له پاره، چي د ده اصلي مرام وو، هم ډېري لږي پیسې درلودلې او هم یې د عملي کولو له پاره کافي پوځي طاقت نه درلود. امیر د خپل احتیاج د لیري کولو له پاره، د شتمنو تاجرانو څخه پیسې اخیستلې، د خپلو سیاسي مخالفینو مځکي او جایدادونه یې لاندي کول او پر هندوانو باندي یې جزیې او جریمې حواله کولې؛ خو سره له هغه یې هم د خپل پوځ خرڅ او خوراک نه سوای برابرولای. د کندهار خوا ته یې ځکه توجه نه سوای کولای چي هغه یې د ورونو په لاس کي وو. تر څو چي په (۱۸۵۶م.) کال کي، یعني د خپلي پاچهۍ په دیارلسم کال یې، د مهردل خان او کهندل خان له وفات څخه

وروسته، د کندهار خوا ته توجه وکړه او د هرات شتمن او مهم ښار یې ایله د خپل ژوند په وروستي کال له باقي پاته افغانستان سره یو ځای کړ.

امیر دوست محمد خان، سره له هغه چي له بې شمېره ستونزو سره مخامخ وو، ملي وحدت تامین کړ، په خپل قلمرو کي یې د لارو مصؤنیت تضمین کړ، تجارت یې تشویق کړ، یو منظم پوځ یې جوړ کړ او لږ تر لږه د کابل په شاوخوا کي یې عدالت ټینګ کړ. امیر د خپلو ټولو مالي ستونزو او لویو قومي ښورښونو تر څنګ لا د مُلایانو له مخالفت سره هم مخامخ سو.

د (۱۸۵۰م.) په لسیزه کي، د افغانستان مذهبي علماء او مؤسسات، چي له سیکانو، انګرېزانو او شاه شجاع په مقابل کي یې د امیر دوست محمد خان ملاتړ کاوه، د هغه پر ضد ودرېدل. هغه یې له انګرېزانو سره د نیژدې کېدلو او تړونونو د لاسلیکولو له امله د انګرېزانو ملګری وباله. په (۱۸۵۷م.) کال کي، چي په هند کي د انګرېزانو پر ضد پاڅون پیل سو، مذهبي عالمانو له هغه څخه وغوښتل چي له انګرېزانو سره معاهدې او تړونونه شا ته وغورځوي، د انګرېزانو پر ضد جهاد اعلان کړي او مسلمانان ورته را وپاځوي، خو امیر تر پایه پوري د هغوی په خوله و نه کړه او له انګرېزانو سره خپلو وعدو ته وفادار پاته سو.

کله چي امیر په (۱۸۵۶م.) کال کي کندهار ونیوی نو سرداران ټول له ښاره وتښتېدل او په مختلفو ځایونو کي یې د هغه پر ضد ښورښونه او مقاومتونه پیل کړل. لمسډن وایي چي هغه په دغه وخت کي په خپلو خلکو کي هم چنداني محبوبیت نه درلود. مُلایانو د کندهار خلک پاروليي ول او هغوی ویل چي د امیر پر ضد جګړه جهاد دی. امیر له انګرېزانو سره لاس یو کړی او له هغوی سره یې ژمنه کړې ده چي د هغوی د دوستانو دوست او د دښمنانو دښمن به وي. نو څرنګه چي عیسی مسیح د انګرېزانو دوست او محمد صلعم یې دښمن دی نو امیر باید د خپل دین د ترک وهلو له امله مسؤل وګڼل سي او ټول مسلمانان د هغه پر ضد را پورته سي. (لمسډن، ص: ۱۳۴)

په کابل کي هم وضع تر دې ښه نه وه. میر حاجي په جوماتونو کي د جهاد تبلیغ پیل کړ او خلکو ته یې ویل چي د هند مسلمانان د کفارو په مقابل کي را پورته سوي دي او دغه وخت دی چي امیر دوست محمد خان هم جهاد اعلان کړي. د امیر دوه ورونه پیر محمد خان او سلطان محمد خان، چي دا وخت په کابل کي وه، په دې تبلیغ او د خلکو په لسمولو کي ډېر فعال وه. لمسډن وایي د ډهلي سرنوشت څرګند نه وو او داسي ښکارېدله چي سپین ږیری امیر ښایي هر آن خپل دریځ بدل کړي. خو د امیر دوهم زوی سردار محمد اعظم خان خپل پلار ته قناعت ورکړ چي انګرېزان اوس

هم دونه زور لري چي د هند د خلکو له پاره د هغوی مائول او له خاوري ايستل ممکن نه دي. هغه خپل پلار ته وويل چي اکاګان يې فقط د شخصي ګټو غم اخيستني دي او له دغه امله يې د برتانيې پر ضد د جهاد تبليغ ته ملا تړلې ده. (ګريګوريان، ص: ۸۴)

د ډهلي پاڅون، لکه سردار محمد اعظم خان چي ويل، کرار سو او انګرېزان بيرته پر اوضاع مسلط سول؛ طبيعي خبره ده چي امير به هم د آرامی ساه ايستلې وي.

امير که څه هم چي له انګرېزانو سره د دوهم ځل جنګ له پيل کولو څخه ځان وژغوری مګر پر هغوی باندي يې خپل ډيپلوماتيک فشار ته دوام ورکړ او له هغوی څخه يې غوښتل چي د پښتنو قبايلو سيمه دي، د ده په قلمرو کي وشمېري او د ده له مشورې پرته دي له هغوی سره اړيکي نه ساتي. (هغه کتاب، هغه مخ)

انګرېزانو نه يوازي د پښتني قبايلو سيمي له افغانستان څخه د تل له پاره بيلي کړي وې بلکي له هرات څخه، د ايرانيانو د وتلو وروسته يې په هغه ولايت کي د امير دوست محمد خان مداخلې ته هم اجازه نه ورکوله. په دې توګه نو امير نه د پېښور او نه د هرات پر لور، چي د ده د قلمرو د يو موټي کولو د پروګرام برخه وه، حرکت کولای سوای. په پېښور کي د انګرېزانو کمېشنر هربرټ ايډوردز، له هرات څخه د ايران د قواوو له وتلو وروسته وليکل چي امير بايد په دې پوه سي چي پر هرات باندي به يې هر ډول حمله نامناسبه کار وي. ځکه چي له هرات سره هر ډول لانجه او جګړه به، د برتانيې او ايران د تړون په اساس، د برتانيې منځګړتوب ته سپارل کيږي او څرنګه چي د کابل حکومت زموږ د دوستانو دوست دی نو بايد چي هغه موافقتنامه رعايت کړي. ايډوردز وليکل دا چي موږ له هرات څخه ايرانيان ايستلي دي نو امير بايد زموږ د احسان منندوی وي. (لمسډن، ص: ۲۲۱)

امير دوست محمد خان دا وخت د هندوکش په شمال کي تقريباً ټولي سيمي او ښارونه لاندي کړي او له کابل سره وصل کړي وه. هغه مجبور وو چي د انګرېزانو سره د تړون د رعايت په خاطر، د هرات په مسئله کي فرصت ته منتظر سي. دا فرصت پنځه کاله وروسته، هغه وخت په لاس ورغی چي سلطان احمد خان پر فراه باندي حمله وکړه او د فراه ښار يې ونيوی. د سلطان احمد خان دغه تېري، دوست محمد خان ته پر هرات باندي د حملې کولو او د کابل له حکومت سره د يو ځای کولو پلمه، چي له خدايه يې غوښته، برابره کړه.

## د امیر دوست محمد خان د ژوند وروستی جنګ

امیر دوست محمد خان په جلال آباد کي وو چي پر فراه باندي د سلطان احمد خان د حملې کولو رپوټ ور ورسېدی. امیر دوست محمد خان دا وخت هم ډېر سپین ږیری سوی او هم یې د روغتیایي حالت چنداني مزه نه وه او د نفس تنګی تکلیف یې درلود خو د فراه مهم یې نه سوای پرېښودلای او د هرات د نیولو فرصت یې، چي شل کاله وروسته یې ترلاسه کړی وو، ځنډولای نه سو. هغه سمدستي خپل زامنو ته، چي ډېری یې په جلال آباد کي حاضر ول، د سمدستي حرکت کولو امر وکړ. سردار محمد امین خان ته یې، چي په کندهار کي والي وو، د تیاري کولو فرمان صادر کړ او په خپله یې هم د کابل پر لور حرکت پیل کړ. امیر ته په ګندمک کي خبر ورسېدی چي د فراه حاکم له ښاره تښتېدلی او سلطان احمد خان د ښار کنټرول اخیستی دی.

امیر دوست محمد خان خپلو زامنو ته، چي د افغانستان په مختلفو سیمو کي والیان او حاکمان ول، د هرات پر لور د لښکرکښۍ او یا د حرکت کولو له پاره د تیارسی امر وکړ. سردار محمد امین خان، چي د کندهار والي وو، له سردار شېر علي خان سره تقریباً په یوه وخت کي فراه ته ورسېدل او ښار یې محاصره کړ. سردار سلطان احمد خان، چي له کابل څخه د امیر له حرکت او ډېر پراخ پوځي تیاري او حرکت څخه خبر سوی وو، د فراه ښار یې د پردل خان زوی سردار میر افضل خان ته، چي د فراه په نیولو کي د سردار سلطان احمد خان محرک وو، پرېښود او په خپله د هرات پر لور وخوځېدی.

سردار میر افضل خان د سردار محمد امین خان پوځ ته له تسلیمېدلو څخه انکار وکړ او کله چي سردار شېر علي خان هم له هغه سره یو ځای سو نو د سردار شېر علي خان په اعتماد، چي د ده زوم وو، تسلیمېدلو ته غاړه کښېښوده. امیر هغه دونه ونازاوه چي تر خپلي خېمې پوري یې د هغه د راوستلو له پاره خپل شخصي جوپان ور واستاوه او کله چي هغه د امیر خېمې ته ورسېدی نو امیر ورته ولاړ سو او هغه یې په غېږ کي ونیوی او خپل څنګ ته یې کښېناوه.

امیر د هرات پر لور حرکت وکړ او ښار یې، چي سرنوشت یې د محاصرو کړاونه په برخه لیکلي وه، محاصره کړ. څرنګه چي په خانانو او د کورنۍ په غړو، په تېره بیا هغو کسانو چي د پاچهۍ خیال په سر کي لري، هیڅ وخت اعتبار نه سي کېدلای نو سردار میر افضل خان هم له دغه امله، د هرات

شاوخوا ته د امیر له رسېدلو سره بیرته هرات ته ولاړ او له سلطان احمد خان سره یو ځای سو.

د هرات محاصره اوږده سوه. په دې وخت کي امیر دوست محمد خان، چي نور یې د ځوانی طاقت او قوت ورته پاته نه وو، سخت ناروغ سو. د امیر دوست محمد خان لور، چي د سردار سلطان احمد خان مېرمن وه، وفات سوه او امیر له ښار څخه د هغې د جنازې وتلو ته اجازه ورکړه. د امیر زامنو هغه په عزت خاورو ته وسپارله او لږ وخت وروسته سردار سلطان احمد خان، چي د ایران له مرستو څخه مایوس سوی وو، ناروغ او د (۱۸۶۳م.) کال د اپرېل پر شپږمه وفات سو. خاورو ته د هغه له سپارل کېدلو څخه وروسته، د سردار زوی شهنواز خان مقاومت ته دوام ورکړ. امیر څه باندي یوه میاشت وروسته، پر هرات باندي د یوه عمومي یرغل حکم وکړ او ښار یې په زور ونیوی. څرنګه چي امیر دوست محمد خان له مخکي څخه هم ناروغ وو نو په هرات کي یې ډېر ژوند و نه کړ او د ښار له فتح کولو څخه دیارلس ورځي وروسته، د (۱۸۶۳م.) کال د جون پر نهمه وفات او د خواجه عبدالله انصاري په زیارت کي خاورو ته وسپارل سو. د هرات فتح کول او له کابل سره یو ځای کول د هغه د ژوند تر ټولو لوی ارمان وو او دا ارمان یې هم، د ژوند په وروستیو شپو ورځو کي پوره سو.

## د امیر دوست محمد خان شخصیت

د امیر دوست محمد خان په باره کي په بشپړ جرأت ویلای سو چي هم د توري، هم د عقل او هم د قدرت په وخت کي د عدالت څښتن وو. هغه که د یوه انسان او یوه افغان په صفت هر څومره بدی درلودلې، په خپل عصر، په خپلو سیالانو او په خپلو وروڼو کي، چي تقریباً ټول یې د قدرت څښتان ول، تر ټولو بهتر وو. هغه نه له شاه شجاع سره، چي د افغانستان په تاریخ کي د پردیو د غلامۍ د سمبول حیثیت لري او نه د هغه له نورو وروڼو، د پېښور او کندهار له سردارانو سره مقایسه کولای سو. ټول خارجي څېړونکي او مؤرخین، د نظر په اتفاق هغه په افغانستان کي د خپل عصر تر ټولو غوره او هوښیار شخصیت بولي. یوازي زموږ ځینو داخلي مؤرخینو او لیکوالانو د هغه په باره کي منفي نظر څرګند کړی دی، خو له بده مرغه چي یو یې هم مستند دلایل نه لري.

انګرېزی نقاش او لرغون پېژندونکی ویګني، چي د افغان او انګلیس د لومړي جنګ څخه څه کم یو کال مخکي کابل ته تللی او له امیر دوست محمد خان سره یې ډېر زیات لیدلي دي لیکي

چي یوه ورځ د کابل په یوه تنګه کوڅه کي پر آس سپور وم او له مقابل لوري مي یو سړی راغی چي پر یابو یې وابنه بار کړي وه. موږ دواړه په دې کوڅه کي نه سوای تېرېدلای نو ما هغه په اشاره پوه کړ چي شا ته وګرځي. د یابو څښتن شا ته وګرځېدی خو په ډېر لوړ آواز یې وویل " دوست محمد مړ دی؟ چي عدالت نسته" ویګني وایي ما دا خبره وروسته څو څو ځله واورېدله او زه پوه سوم چي دا په کابل کي یو ډول متل ګرځېدلی دی. (ویګني، ص: ۱۶۰)

ویګني لیکي چي امیر دوست محمد خان په کابل کي ډېر مخالفین درلودل او غوښتل به یې چي دی له قدرته لیري کړي مګر پر دې خبري نه سره جوړېدل چي څوک به قدرت ته رسوي. "سړي چي په ربښتیا هم نورو مشرانو ته ګوري نو د ده تر لیاقت او اهلیت پوري هسي احمقان معلومېږي او زه به په غلطه نه یم که ووایم چي دی به له ټولو داخلي مخالفتونو سره خپل قدرت وساتي. زه حیران سوم چي څوک به ولي د ده نسکورېدل غواړي. د شاه شجاع په وخت کي څوک له کابل څخه لس پنځلس میله لیري نه سوای تللای او ښايي یا غلو شکولی او یا وژل سوی وای. د امیر دوست محمد خان د حکومت په وخت کي تر ښه ډېر واټن پوري سړی تللای سي. ده د یاغي قبایلو زیات شمېر مشران، چي په نجراو، تګاو او د کابل په کوهستان کي اوسېدل، ونیول او اعدام یې کړل. ده د مهمندو له مشر سعادت خان سره ښه اړیکي درلودل او د غزني څخه ها خوا ته په غرونو کي اوسېدونکي قبایل یې نوم په احترام یادوي. د کشمیر، پېښور او د اباسین پر لوېدیځه غاړه د ولایتونو له لاسه ورکولو سره د ده کلني عایدات تر (۲۳) لکه روپیو یا (۱۶۰) زره پونډو نه زیاتېدل. د ده د خزانې تش والي د ده د هر ابتکار مخه نیولې وه. (هغه کتاب، ص: ۳۷۲-۳۷۴)

دوست محمد خان په ژوند کي تقریباً هیڅ ملګری نه درلود. هغه د خپلي توري او عقل په زور قدرت ته رسېدلی وو او د همدغو دوو ملګرو په مرسته یې د ژوند تر پایه پوري مزل وکړ. د هغه ورونه او وراره د ده تر ټولو سخت دښمنان ول. د پېښور ورونه یې، په تېره بیا سلطان محمد خان، چي تر (۱۸۶۱م.) کال پوري ژوندی وو، تر مرګه پوري د هغه په مقابل کي له دسیسو څخه لاس وا نه خیست او د دوست محمد خان په مقابل کي یې د سیکانو نوکري غوره کړې وه. د کندهار ورونو یې څو ځله د ده د ړندولو او وژلو دسیسې وکړې او هر یو تر مرګه پوري د ده د سر دښمن پاته سول. هغوی د دوست محمد خان په مقابل کي له ایران سره، چي د افغانستان تر ټولو خطرناک دښمن وو، لاس یو کړی او په هره تنګسه کي یې د ایران د واکمنانو لمنو ته ځانونه اچول. د هغه مشر ورور نواب عبدالجبار خان، چي امیر یې تر مرګه درناوی کاوه او لالا به یې باله، له ده سره

دومره کینه او حسادت درلود چي ان په لومړي ځواني کي یې، چي دوست محمد خان د تګاو او نجراو د خلکو د ښورښ د کړارولو له پاره روان سو، تګاویانو ته لیک واستاوه او هغوی ته یې وویل چي دوست محمد خان باید قتل کړي او نواب به له دې خوا ځخه له هغه سره هر ډول مرسته بنده کړي. دا لیک د دوست محمد خان لاس ته ولوېدی خو ورور ته یې هیڅ و نه ویل. دوست محمد خان د جبار خان د آرزو په خلاف، تګاویان کرار کړل. نواب جبار خان دا خیانت فقط د دې له پاره وکړ چي که دوست محمد خان د تګاویانو په ځپلو کي بریالی سي، هسي نه چي په ده پوري وخاندي. (هغه کتاب، ص: ۱۴۹)

کله چي شاه شجاع په (۱۸۳۴م.) کال کي د کابل د تخت د بیرته نیولو له پاره، د انګرېزانو په مرسته لښکر راغونډ کړ او پر کندهار باندي یې حمله کوله نو نواب جبار خان د ټولو هغو سردارانو په سر کي وو چي له شاه شجاع سره یې تماسونه ټینګ کړل او هغه ته د بیعت کولو او هر راز مرستو ژمنه یې ورسره وکړه. سلطان محمد خان یقین درلود چي امیر دوست محمد خان به د شاه شجاع په مقابل کي ماته خوري نو سمدستي یې جلال آباد ونیوی او پېښور یې سیکانو ته خوشي کړ، چي د تل له پاره له افغانستان څخه بېل سو. امیر دوست محمد خان د کندهار له سردارانو سره د مرستي له پاره د جنګ میدان ته ورغی. شاه شجاع یې مات کړ؛ خو سردارانو هغه ته کندهار ته د داخلېدلو اجازه نه ورکوله. امیر دوست محمد خان د خپل ورونو دا ټولي دښمنی هېرولې او تر پایه پوري یې له هغوی سره مرستي نه سپمولې. په داسي حال کي چي، که د هغوی دایمي دښمنی او د ده د احسانونو په مقابل کي د هغوی خیانتونو ته وکتل سي نو هغوی د امیر د هیڅ ډول مرستو لیاقت نه درلود. د یار محمد خان په باره کي مو کافي لیکنه کړې ده او استبداد یې په هیڅ توګه د دوست محمد خان له اداري سره مقایسه کېدلای نه سي او سردار سلطان احمد خان خو یوازي د هرات د واکمنی د ساتلو له پاره، سکه او خطبه د ایران د شاه په نوم جاري کړې وه او تر مرګه پوري ایران ته وفادار پاته سو. د شاه شجاع په باره کي به ځکه څه نه لیکو چي هغه د افغانستان په تاریخ کي د پردیو د غلامی سمبول دی او په ژوند کي یې داسي کار نه دی کړی چي یا دي چا ستایلی او یا دي په ستایلو و ارزي. په دې توګه نو موږ په پوره جرأت ویلای سو چي امیر دوست محمد خان، لږ تر لږه په خپل وخت کي، له پېښوره تر هراته پوري، تر ټولو واکمنانو او شخصیتونو بهتر وو او که یې نور هیڅ خدمت نه وي کړی نو د مرګ تر ورځي پوري د افغانستان د یو موټی کولو ارمان ته وفادار پاته سو او د افغانستان په تاریخ کي یې باید دا کارنامه هیڅ وخت هېره نه سي.

امیر دوست محمد خان یو ځل دوولس او بل ځل شل کاله پاچهي وکړه؛ مګر دواړه ځله یې د یوه پاچا په حیث نه بلکي د یوه قومي او ملي مشر په څېر ژوند وکړ. هیڅ وخت یې تخت جوړ نه کړ او له مشرانو سره به پر قالینه کښېناستی. تر ټولو مشرانو یې ساده او تل پاکي جامې اغوستلې. نه یې په ټول ژوند کې تاج پر سر کړ او نه یې چا په بګړۍ او جامو کې ټومبلي جواهرات ولیدل. د ټولو خارجي مېلمنو او داخلي مشرانو په احترام ولاړېدی؛ له چا سره یې د غېږې او له چا سره یې د لاس روغبړ کاوه.

مؤرخ سر جان کې لیکي امیر دوست محمد خان پرته له هیڅ ډول ریاکارۍ څخه په عامه پر خپلو تېرو خطاوو باندې اعتراف وکړ او ژمنه یې وکړه چې خپل ځان به اصلاح کړي. دی پر خپل قول باندې ودرېدی.

کې وایي په دې کې هیڅ شک نسته چې امیر په دې وخت کې د تحسین وړ کارونه وکړل او حتی عیسویانو یې هم احترام کاوه. بریالیتوبونو د هغه د مغز انډول خراب نه کړ او نه یې د قدرت زیاتېدلو زړه سخت کړ. ورځنی ژوند یې ډېر ساده وو. ډېر نرم طبیعت یې وو او د خپلو رعیتو تر ټولو غریب سړي لاس یې ګرېوان ته رسېدی. هر ګړی د هغوی د شکایتونو اورېدلو ته حاضر وو او د هغوی په داد رسېدی. داسې ورځ نه وه چې دی به پراس سپور وو او څوک یې مخې ته درېدلی نه وای او عرض یې نه وای ورته کړی او خپل ټول بیان یې په ده اورېدلی نه وای. دی هیڅ وخت له عارض څخه نه تېرېدی. د آس جلو به یې را ټینګ کړ. په ډېره حوصله به یې د ښار د تر ټولو غریبو کسانو شکایتونو ته غوږ ونیوی او خپلو مامورینو ته به یې د اجرآتو امر وکړ. د ده عدالت دونه مشهور سوی وو چې هر ځای به له چا سره ظلم وسو نو سمدستي به یې ویل دوست محمد مړ دی چې عدالت نسته؟ ټول هغه کسان چې دی یې له نیژدې پېژندی، وایي چې امیر دوست محمد خان یو زړه سواندی او مهربان واکمن وو... (کې، لومړی جلد، ص: ۱۱۷-۱۱۸)

ویګني وایي یو وخت خزانه تشه وه او عسکرو ته څو میاشتي تنخواوي نه وې رسېدلې. یوه عسکر شکایت وکړ او وئې ویل چې نور عسکري خدمت نه سي کولای. امیر وویل چې هیڅوک باید دا خبره و نه سي کړای چې دوست محمد خان د یوه عسکر پر حقه غوښتنه، غوږونه کاڼه واچول. سمدستي یې د هغه عسکر باقي پاته تنخوا ورکړه؛ مګر له عسکري خدمت څخه یې رخصت کړ. (ویګني، ص: ۳۷۴-۳۷۵)

موهن لال، چې چنداني د امیر دوست محمد خان صفت نه کوي، لیکي چې امیر دوست محمد

خان خان د خپل قدرت په وخت کې قرآن شریف زده کړ او نایب امیر محمد اخندزاده یې ښوونکی وو. امیر دغه راز د پخواني او معاصر تاریخ په باره کې د متلونو او د مشهورو کسانو د ژوند د حالاتو او د لیرې او نیژدې هیوادونو د اداري سیستمونو په باره کې ډېر ښه معلومات لرل او په خپل فوق العاده لیاقت سره یې د علومو په باره کې کافي معلومات حاصل کړي او ذخیره کړي دي. امیر په فارسي، پښتو، ترکي، پنجابي او کشمیري ژبو خبرې کوي. (موهن لال، لومړی جلد، ص: ۲۰۶)

امیر دوست محمد خان په ډېرو بدو او سختو شرایطو کې قدرت ته ورسېدی. پر هغو شرایطو مو مخکې بحث کړی دی. له امیر سره خپلو ورونو دومره پټې او ښکاره دښمنۍ او حتی خیانتونه وکړل چې هغه پر ټولو دوستانو باندې اعتماد له لاسه ورکړ. د امیر د خپل لمسي امیر عبدالرحمن خان په شمول، ډېر کسان هغه په دې ملامتوي چې د افغانستان ټول ولایتونه یې د خپلو زامنو تر منځ ووېشل او چې کله دی وفات سو نو هر یوه پر خپل سر بیرغ پورته کړ او هر یوه ځان د پاچهۍ لایق باله او هیواد د داخلي جنګ اور ته ولوېدی. خو د دې کار لوی علت یې هم هغه پر له پسې او بې دلیله دښمنۍ وه چې د ژوند، جنګونو او قدرت په زمانه کې یې له خپلو تر ټولو نیژدې دوستانو څخه لیدلې وه او پر هر چا یې بې اعتماده کړی وو. هغه یوازې په خپلو زامنو باور درلود.

له امیر دوست محمد خان سره د افغاني منورینو او مؤرخینو د مخالفت اصلي علت له انګرېزانو سره د هغه دوستي ده. په دې کې شک نسته چې انګرېزانو د یوه لوی قدرت په حیث، پر افغانستان باندې بېحده زیات تېرې او ظلمونه وکړل او د دې ښېستمن هیواد کلي او ښارونه یې وسوځول، ښه کښتونه یې ورته تباه کړل او په زرګونو انسانان یې د خپلې پراختیا غوښتنې قرباني کړل؛ مګر امیر له هغوی سره دښمني کولای نه سوای. امیر هم په داخل کې له دښمنانو سره په ستونزو او جګړو لګیا وو. هم د ښورښونو سره مخامخ وو. هم یې خزانه تشه وه او د پوځ تنخوا او لګښت یې برابرولای نه سوای. هم په لوېدیځ کې د اېران په څېر یوه قوي دښمن ګاونډي سره، چې هر وخت د روسیې تحریک او مرسته ورسره وه، مخامخ وو. امیر دوست محمد خان د همدغه ضرورتونو په اساس، د قدرت له لومړۍ ورځې بیا تر مرګه پورې، د انګرېزانو دوست پاته سو. ځان یې نه یوازې د یوه قوي دښمن له دښمنۍ څخه بېغمه کړی وو بلکې هغوی له کاله دوولس لکه روپۍ، په زرهاوو توپکونه او مرمۍ ورکولې او ده دې ټولو شیانو ته د ښبلو د اوبو په څېر ضرورت درلود. امیر له انګرېزانو څخه نفرت درلود او یوه ورځ یې لمسلون ته، چې څو هفتې وروسته کندهار ته روان وو، په پېښور کې مخامخ وویل چې که یې وس لرلای نو ټول کافران به یې د مځکې له مخه محو کړي وای. مګر

ده ځکه هغوی ته د دوستۍ لاس اوږد کړی دی چې له لعنتي ایرانیانو څخه یې ساتي. خو له بده مرغه چې زموږ مؤرخین او له هغې جملې مرحوم غبار، د امیر دوست محمد خان په مقابل کې د سردار سلطان احمد خان ستاینه کوي؛ چې څه کم اووه کاله یې د ایران د شاه په نوم خطبه وویله او د هغه په نوم یې سکه جاري کړې وه. که امیر دوست محمد خان هرات فتح کړی نه وای ښایي د سلطان احمد خان زامنو هغه ولایت بالاخره ایرانیانو ته تسلیم کړی وای.

د پېښور سردارانو خپل ټول ژوند د سیکانو په نوکرۍ کې تېر کړ او هم یې د سید احمد بریلوي او هم یې د خپل ورور امیر دوست محمد خان په مقابل کې له سیکانو سره لاس یو کړی وو. د کندهار سردارانو تر پایه او د امکان تر حده، د افغانستان د تر ټولو خطرناک دښمن، ایران له دوستۍ او حتی نوکرۍ څخه لاس وا نه خیست. د افغانستان په داخل کې چې د غلجیو او درانیو څه قومي مشران ول ټولو د خپل قدرت او خپلو ګټو د ساتلو له پاره ښورښونه کول او د مرکز امر ته یې ځکه غاړه نه ایښوده چې له دوی څخه یې د منظمو مالیاتو او عسکري خدمت غوښتنه کوله.

امیر دوست محمد خان نه یوازي په ډېرو لږو مالي امکاناتو، د امنیت او عدالت د ټینګولو او ملي وحدت د تامینولو له امله د ستاینې وړ دی؛ بلکې هم یې د خپلو ګاونډیو واکمنانو او هم یې په داخل کې د خپلو نورو سیالو مشرانو په تناسب ډېر لږ استبداد کړی دی. د دومره دښمنانو او دومره یاغي خانانو او قبایلو په وجود کې استبداد نه کول او له بې ځایه ظلم څخه ځان ژغورل، په خپله یو مثبت او د ستاینې وړ ټکی دی.

## اقتصادي او اجتماعي حالات

افغانستان د نونسمې پېړۍ په هغو کلونو کې چې زموږ د بحث موضوع ده، حتی په ډېرو کرارو حالاتو کې د خپلو نېژدې لویدیځ او ختیځ ګاونډیو هیوادونو په تناسب، ډېر نېستمن او بې ثباته اقتصاد درلود. صنعت تقریباً وجود نه درلود. د کرنې ځمکې ډېرې لږ وې او ایله د خپلو شاوخوا اوسېدونکو له پاره یې کفایت کاوه. له یوه یا دوو کلونو بارانونو له ځنډېدلو سره معمولاً قحطي راتلله. صادرات یې معمولاً اومه مواد، وچه مېوه او لاسي تولیدات وه چې یو لوی مرکز یې هرات وو او نور نو زیاتره هغه مواد وه چې د مالدارو په کېږدیو کې تولیدېدل. د غرنیو سیمو اوسېدونکو او د عمومي لارو پر سر پرتو قبایلو، چې زیاتره یې غلجي اقوام وه، د تجارتي کاروانونو څخه د محصول

په اخيستلو، چې کله کله به ډېر ظالمانه وه، ګوزاره کوله. د لويو لارو د امنيت، په عمومي صورت مزه نه وه خو په جنګي حالاتو کې، چې له بده مرغه زياتره وختونه به خلک ورسره مخامخ وه، شرايط نور هم خراب سول. دغه علت وو چې کله کله به کاروانونو په کال کې فقط يو ځل حرکت کاوه او زياتره وختونه به يې د ساتونکو شمېر پنځو سوو وسله والو ته ورسېدی؛ چې د هغوی تنخوا د کاروان د مالونو پر قېمت باندي اغېزه کوله.

ويګني، چې په (۱۸۳۷-۱۸۳۸م.) کلونو کې يې کابل او غزني ته سفر کړی دی وايي چې له هند څخه افغانستان او نورو ليري پرتو سيمو ته په کال کې درې قافلې حرکت کوي. که سړی غواړې چې له لومړی قافلې سره ملګری سي نو بايد چې د اپرېل له لسمي څخه مخکې ځان دره بند ته ورسوي. دوهمه قافله د اپرېل له شلمي او پنځه ويشتمي څخه مخکې حرکت کوي او درېيمه قافله، چې تر نورو لويه ده او د حرکت وخت يې چنداني معلوم هم نه وي، معمولاً د مې د مياشتي پر لسمه يا دوولسمه حرکت کوي.

ويګني وايي چې په لومړی قافله کې ارزانه ټوکران او د پنجاب مالګه بار وي او تر غزني، کابل او کندهار پوري يې وړي. په دوهمه قافله کې نيل بار وي، چې په ملتان او شکارپور کې اخيستل کيږي او دغه راز د هندوستان چيټ بار وي او د قافلې يوه برخه تر بخارا پوري ځي. په درېيمه قافله کې، چې تر دواړو لويه وي، زياتره په لوهاني سوداګرو پوري اړه لري چې له حيدرآباد، کلکتې، بنارس، ډهلي، جېپور او د هند له نورو لويو ښارونو څخه حرکت کوي. په دې قافله کې کيمخاب، طلايي بنارسی، انګرېزي چيټ، رنګين ټوکران، د توپکونو ماشې او دغه ته ورته مالونه بار وي. د دې مالونو ډېره برخه تر هندوکش اوړي او مالونه يې هغو ملکونو ته وړل کيږي. ويګني وايي د اکټوبر په مياشت کې له غزني څخه د لوهانيانو تر ټولو لويي قافلې حرکت وکړ چې انار، بادام، کشمش، د کابل رواش، قېمتي ټوکران، اومه ورېښم او نور دغه راز مواد بار وه. او بخارايي آسونه ورسره وه. (ويګني، ص: ۶۸-۶۹)

ويګني د غزني په شاوخوا سيمه کې، د سليمان خېلو څخه شکايت کوي چې هيڅ قافله پر کراره نه پرېږدي. دی وايي هغوی دونه قوت لري چې د حکومتونو د پوځي قوت په مقابل کې له ځپلو کلاوو څخه دفاع کولای سي. دی وايي څوارلس کاله مخکې سردار محمد عظيم خان د هغوی د مقاومت د ماتولو له پاره، د جمدر خان تر قوماندې لاندي، څلور زره قوه او دوه توپونه ور واستول.

د سلیمان خېلو مشر تاج خان حمله وربانديي وکړه. ټول پوځ یې مات کړ او جمدر خان یې وواژه. ویګني وايي ما ته چا وویل چې هغوی یو میلیون پسونه لري او دوست محمد خان ته پر څلوېښتو سرېو باندي یو اوښ په مالیه کي ورکوي. ویګني وايي چې سلیمان خېل له کندهار څخه تر غزني پوري، د کاروان په مزله اووه اته منزله له جنوب څخه تر شمال پوري او له لوېدیځ څخه تر ختیځ پوري دوه تر درې منزله پراته دي. (ویګني، ص: ۱۰۶-۱۰۷)

چارلس مېسن چې د (۱۸۲۶م.) څخه تر (۱۸۳۶م.) کال پوري یې زیاتره وخت په افغانستان او نیژدې شاوخوا کي تېر کړي دي، د کندهار څخه تر کابل پوري له یوې قافلې سره ملګری سوی وو؛ په لاره کي له قافلې څخه د قبایلو د مالیاتو ټولولو بیان کوي او له دې څخه ښکاري چې په دغه صورت کي باید تجارت وده نه وای کړې.

چارلس مېسن وایي چې له کلات څخه دوه درې میله پورته د فتح خان هوتک سړیو له قافلې څخه پر اوښ باندي درې روپۍ، پر آس دوې روپۍ او پر خره باندي یوه روپۍ مالیه واخیستله او وروسته نو د قافلې خلکو شل روپۍ مهماني ورکړه. مېسن وایي چې فتح خان له پخواني شاه شجاع سره خپلوي لري. د ده خور د هغه مېرمن او د ده د مشر زوی تېمور مور ده. کومي قافلې چې له کندهاره روانېږي، په کلات کي فتح خان مالیه ورڅخه اخلي او کومي قافلې چې له کابله راځي، په لاره کي شهاب الدین خان مالیه ورڅخه اخلي. مېسن وایي د کندهار سرداران فتح خان ته ځکه د دښمن په سترګه ګوري چې هغه له شاه شجاع سره خپلوي لري او دغه مالیه هم د هغوی په خوښه نه ټولېږي. د قافلې وګړي د مالیې ورکولو ته مجبور دي ځکه چې که یې ورنه کړي نو بیا هر څه په زور ورڅخه اخیستل کیږي. (مېسن، دوهم جلد، ص: ۱۹۸-۱۹۹)

مېسن وایي هغه شپه مو دلته تېره کړه او سبا ورځ د شهاب الدین خان توخي جواب ته منتظر سولو. د ماښام په خوا کي مو حرکت وکړ او سهار شهاب الدین خان را ورسېدی. د هغه سړیو له قافلې څخه د تنباکو او نورو شیانو غوښتنه وکړه. د هغوی له لهجې څخه ښکارېدله چې که دا مواد ورته برابر نه سي نو بیا خبره تشدد ته رسېږي.

د شهاب الدین خان خلکو له قافلې څخه د اوښ پر سر څلور روپۍ، د آس پر سر درې روپۍ او د خره پر سر یوه روپي واخیستله. د قافلې خلکو پر مالیې سربېره څلوېښت روپۍ مهماني هم ورکړه. (هغه کتاب، ص: ۲۰۲-۲۰۳)

مېسن وایي شهاب الدین خان توخي نن سبا د غلجیو تر ټولو زورور مشر دی. هغه نامدار بلل

کیږي. د دې علت دا دی چې یو خو د یوې یاغي او قوي قبیلې مشر دی او بل دا چې ډېر ظالم دی او له قافلو او مسافرو سره ډېر سخت سلوک کوي.

شهاب الدین خان نه د کندهار سردارانو او نه د کابل حکومت ته تابع دی او له یوه سره هم په ارتباط کي نه دی. د کابل او کندهار سرداران هم ځکه له هغه سره غرض نه کوي چي غواړي دغه مستقل قوت د هغوی تر منځ، چي پر یوه بل اعتماد نه لري، پروت وي. (میسن، هغه کتاب، ص: ۲۰۹-۲۱۰)

میسن وایي شهاب الدین خان دوه درې سوه سپاره لري. مګر که د جنګ خبره سي نو له هغه سره نور غلجي مشران هم ملګري کیږي چي بیا یې نو د جنګي میړونو شمېر له پنځه دېرش زرو څخه تر پنځوس زرو پوري رسېږي. خو له نېکه مرغه چي د دوی خانان د دونه لوی لښکر د ساتلو له پاره مالي توان نه لري او دا لوی لښکر ډېر ژر سره تیت او پرک سي. میسن وایي هر غلجی یو توپک لري او هر یو عسکر دی او یا د جنګ په وخت کي عسکر ورڅخه جوړېږي. هر غلجی یو توپک، یوه توره او یو سپر لري. (هغه کتاب، ص: ۲۱۰-۲۱۱)

میسن وایي کله چي قافلې خپل مالیات شهاب الدین خان ته تحویل کړل نو سهار مو باید د هغه له سیمي څخه حرکت کړی وای. په دغه وخت کي د شهاب الدین خان له کلا سره نیژدې کورونو څخه توره په لاس کسان راووتل او پر قافله باندي یې چور جوړ کړ. بوجۍ او غوټې یې په چړو څیرلې او تنباکو، کشمش، تور مرچ او نور شیان یې اخیستل او ځغلول یې، ګواکي دا د دوی برخه وه. د قافلې سړیو ژر ژر خپل اوښان بارول او چي اوښ به بار سو بیا نو چا غرض نه سو ورسره کولای او له دې وروسته مو ایله حرکت وکړ. (هغه کتاب، ص: ۲۱۳)

میسن تر غزني پوري په لاره کي د غلو د داړې د کوښښ خبره هم کوي خو وایي چي پر قافله باندي یې حمله و نه سوه کولای او ساتونکو پسي واخیستل. قافلې له دې وروسته په غزني کي هم خپل مالیات تحویل کړل.

هر څومره چي امنیت خرابېدی او خپل سری ډېرېدلې، په هغه اندازه تجارت له رونق څخه لوېدی او کلیو او ښارونو ته ضروري مواد رسېدلای نه سوای. په قافله کي چا د مال استولو ته زړه نه سو ښه کولای او په نتیجه کي د مرکزي او سیمه ایزو حکومتونو عایدات له سخت کمبود سره مخامخ کېدل. میسن وایي چي د غزني کلني عایدات (۴۰۴۰۰۰) روپۍ کېدل او له دې جملې څخه

يې (۶۵۰۰۰) روپۍ له قافلو څخه د مالياتو اخيستلو له درکه تر لاسه کولې. (ص: ۲۲۲)

په دې حساب د غزني څه باندې پنځلس فيصده عايدات له قافلو څخه ترلاسه کېدل. که د لارو امنيت تامين واى؛ تجارت مطمين واى نو ښايي لويو او کوچنيو ولايتونو له قافلو څخه د مالياتو د اخيستلو له لارې خپل ډېرش څلوېښت فيصده عايدات تر لاسه کړي واى.

## ماليات

منظم ماليات چې د هر دولت د ملا تير دى، په افغانستان کې هيڅ وخت پر لار نه وه. که به دولت قوي وو نو لږ تر لږه د پايتخت شاوخوا سيمو به ماليات ورکول او که به دولت يو لږ څه کمزورى سو نو د مالياتو به هم مزه نه وه. حتٰى د تېمور شاه په زمانه کې چې د حکومت کمزوري چنداني نه ښکارېدله، هم د کشمير والي آزاد خان ياغي سو او تېمور شاه مجبور سو چې د هغه د ځپلو له پاره په خپله لښکرکښي وکړي. نه يوازې تېمور شاه لښکرکښۍ ته مجبور سو بلکې په کشمير کې چې به هر والي وټاکل سو، هغه به ياغي کېدى. آزاد خان، عبدالله خان، عطا محمد خان او محمد عظيم خان هر يوه په خپل نوبت بغاوتونه وکړل؛ د مالياتو له ورکولو څخه به يې انکار کاوه او د لښکرو په زور به يا کرار او يا به له منځه يووړل سول. په (۱۷۸۸م.) کال کې چې تېمور شاه لا ښه په زور کې وو، مجبور سو چې د بهاولپور د نواب او د سند له ميرانو څخه ماليات په زور واخلي. (ورما، ص: ۵۰)

البته دا نه لومړى او نه وروستى ځل وو چې د کشمير، سند، ملتان او بهاولپور واکمنانو د مالياتو له ورکولو څخه سرغړونه کوله. تېمور شاه ايله د سند د مالياتو مسئله حل کړې وه او له ميرانو څخه يې ايله شپږ ميليونه روپۍ ماليات اخيستي وه چې د شمال له لورې شاه مراد بيگ پر افغانستان باندې حمله وکړه او تېمور شاه د هغه د خطر د رفع کولو له پاره هغې سيمې ته وخوځېد.

تېمور شاه په شمال کې شاه مراد ته ماته ورکړه خو کله چې کابل ته ستون سو نو محمد خان قاجار يې ختيځ قلمرو تهديد کړ. دا تهديدې دومره جدي وه چې تېمور شاه مجبور سو چې په هند کې له خپلو متحدينو او خواخوږو نوابانو او مشرانو څخه مرسته وغواړي. (هغه کتاب، ص: ۵۲-۵۳)

تېمور شاه پر خپلو رقيبانو باندې غالب وو خو څه پيسې چې يې د مالياتو له درکه لاس ته ورتللې، هغه يې په لښکرکښيو لگولې. له تېمور شاه سره په دغه وروستي لښکرکښي کې (۱۲۰) زره پوځيان ورسره وه. که له کابل څخه تر بهاولپور، سند او ملتان پورې، له سند څخه د هندوکش تر

شماله او له هغه ځایه بیرته تر کابل پوري د دومره لوی پوځ مالي لګښتونه په نظر کي ونيسو نو تېمورشاه ته به د سند او بهاولپور له مالیاتو څخه چي ایله اووه میلیونه روپۍ کېدلې، نیمایي هم نه وي پاته سوي.

شاه زمان او شاه شجاع خو خپل تقریباً ټول وخت په داخلي جنګونو تېر کړ. دا مهمه نه ده چي هغوی په جنګونو کي غالب او که مغلوب ول خو هر جنګ هم د حکومت مالي بنسټ ته یوه زوروره ضربه ورکوله او هم یې د حکومت اعتبار او قدرت ته تاوان رساوه. مرکزي اداره کمزورې کېدله؛ په نتیجه کي امنیت خرابېدی او د امنیت د خرابېدلو په نتیجه کي تجارت ته، تر بل هر مالي فعالیت زیاته صدمه رسېدله. په داسي حالاتو کي تجارت ته، چي د قافلو په وسیله کېدی، چنداني چا زړه نه سو ښه کولای او دغه علت دی چي موږ په هغه وخت کي د افغانستان د پاچاهانو د اجتماعي پروګرامونو په باب، که یې چیري په نظر کي درلودل، چنداني څه نه وینو.

ګریګوریان د امیر دوست محمد خان د مالي وضع په باب لیکي: "له کابل او د هغه له شمالي مربوطاتو څخه د امیر کلني عایدات له یو نیم میلیون کابلي روپیو څخه تر دوه نیم میلیونه پوري رسېدل چي د پونډ په حساب (۱۶۰) زره څخه تر (۲۲۰) زره سټرلینګ پونډو پوري کېدله. دا عایدات د یوه عصري پوځ د جوړولو له پاره چنداني کافي نه وه. دغه عایدات له مځکو، تجارتي مالیاتو او ښاري مرکزونو څخه تر لاسه کېدل. له ښاري مرکزونو څخه (۵۰) فیصده، له ګمرکي مالیاتو څخه (۱۳) فیصده، له شاهي مځکو څخه څه باندي (۶) فیصده او د قبایلو له مځکو څخه (۲۰) فیصده. امیر دوست محمد خان د خپلو عایداتو د زیاتولو له پاره، د دې پر ځای چي د خپلي پاچهۍ پر فیوډالي بنسټ باندي یې حمله کړې وای او د خانانو قدرت یې کمزوری کړی وای؛ پر تاجرانو، په تېره بیا هندوانو باندي فشار واچاوه. د دې علت دا وو چي له لویو مځکه والو او قبیلوي خانانو سره یې زور نه رسېدی. امیر له هندوانو څخه وغوښتل چي د ده د جنګي لګښتونو له پاره (۳۰۰) زره روپۍ ورکړي او پر هندوانو او نورو غیر مسلمانانو باندي یې د دوو کالو جزیه یا سرانه مالیات حواله کړل. امیر د خپلو سیاسي رقیبانو، چي زیاتره شتمن سوداګر وه، شتمنی غصب کړې. د کابل له هر دوکاندار څخه یې له پنځو څخه تر لسو روپیو پوري واخیستلې او تاجران یې مجبور کړل چي ده ته په عاجله توګه ډېري پیسې په پور ورکړي." (ګریګوریان، ص: ۸۰)

الیکزانډر برنس چي په (۱۸۳۲م.) کال کي بخارا ته په لاره کي، په کابل کي پاته سوی وو، لیکي

چي امیر دوست محمد خان به د بخارا په څېر کمه مالیه نه اخلي چي خلک پر څلوېښتو روپیو باندي یوازي یوه روپي مالیه تحویلوي؛ مګر تاجران اوس هم د ایران، هرات، کندهار او پنجاب په مقایسه د کابل ستاینه کوي. برنس وایي یوه یهود په بهاولپور کي ده ته وویل چي په کابل کي له یهودو سره داسي ښه سلوک کېږي لکه د اسراییلو پاچاهانو چي له خپلو رعیتو سره کاوه. ده وویل چي افغانان له تعصبه خلاص خلک دي او زموږ سره ډېر ښه سلوک کوي. برنس وایي یهودي ده ته وویل چي هغه اضافه مالیات چي په دې وروستیو شپو ورځو کي امیر پر دوی باندي حواله کړي دي، که بل هر څوک د ده پر ځای د کابل واکمن وای او د ده په څېر ستونزي یې لرلای نو دغه کار یې کاوه. برنس وایي یو اروپایي به دې ته حیران سي چي په یوه هیواد کي چي مالیات هر وخت تغیر کوي، څرنګه لا تاجران له هغه ملک سره تجارت ته زړه ښه کوي؛ مګر دی وایي چي امیر پوهېږي چي تر کومو کرښو باید پښه وا نه ړوي. دغه علت دی چي کابل اوس په کال کي دوه لکه دوه ویشت زره روپۍ د مالیاتو له درکه جوړوي. په داسي حال کي چي مخکي یې دو اتیا زره روپۍ جوړولې. په اوس حال کي انګرېزي مالونه چي د هند له لاري کابل ته وړل کېږي هلته په سلو کي پنځوس ګټه کوي او که دغه مالونه بخارا ته ورسېږي نو هلته یې ګټه په سلو کي سل ده. برنس وایي ایراني شالونه چي ایران او ترکیې ته لېږل کېږي، د کابل له لاري بخارا او بیا مشهد ته ځي. سوداګر ځکه دا دونه فاصله او اوږده لاره وهي چي د کندهار او هرات پر لار ډېري پیسې ورڅخه اخیستل کېږي. (برنس، کابل، ص: ۳۰۰)

امیر نه غوښتل او نه یې دونه زور درلودی چي د غیر بارکزي دراني قبایلو مشران او خانان اېل کړي او مالیه ورڅخه واخلي. خو ده او د ده زامنو له غلجي قبایلو سره ډېر زیات جنګونه وکړل. د ده زوی شیر علي چي د اکبر خان او غلام حیدر خان له وفات څخه وروسته ولیعهد وو، د غزني د ولایت په وخت کي شپږ ځله له غلجیو سره وجنګېدی او ایله غلجي قبایل یې مجبور کړل چي د امیر خزانې ته مالیات ورکړي. (ګریګوریان، ص: ۸۳)

بیلیو لیکي: "د کندهار د حکومت په ولکه کي د ښار تر څنګ تقریباً دوه سوه کلي شامل دي. دا ټول له کاله تقریباً دوه ویشت لکه روپۍ مالیه د امیر خزانې ته تحویلوي. له دې جملې څخه تقریباً نهه لکه د ښار عایدات او مالیات دي. دا پیسې تقریباً ټولي د ښار د حکومت له خوا په ملکي او پوځي خدماتو لګول کېږي. ګواکي ټولي پیسې د امیر خزانې ته نه ځي. مالیات ټول په نغدي ډول نه اخیستل کېږي بلکي یوه ډېره زیاته برخه یې په جنس اخیستل کېږي لکه جوار، غاروي،

پسونه او دغه راز نور شیان. حکومت چنداني جنسي مالیه نه ټولوي بلکي پر زمیندارو او دهقانانو باندي حوالې ورکوي. حکومت دا حوالې خپلو پوځي او ملکي مامورینو ته د تنخواوو پر ځای ورکوي. مامورین له دغو حوالو څخه په استفاده، له خلکو څخه خپلي تنخواوي اخلي او چي هر څونه کولای سي او په خلکو کي هرڅونه اندازه توان موجود وي، په هغه اندازه اضافه پیسې او جنس ورڅخه اخلي. دا نو یو له تر ټولو خرابو سیستمونو څخه دی. د خلکو تر اندازې زیات کړاو سبب کیږي او د ښار سمسورتیا او آرامي په خطر کي اچوي. (بیلیو، ص: ۱۵۰-۱۵۱)

د مالیاتو سیستم د نونسمي پیړۍ تر پایه او حتی د شلمي پیړۍ تر لومړیو کلونو پوري اصلاح نه سو. د مالیاتو د اخیستلو سیستم ښایي ډېر ظالمانه وو چي خلکو د شلمي پیړۍ تر دوهمي نیمایی پوري "غم" باله. که څه هم چي د امیر دوست محمد خان او امیر شېر علي خان په وختونو کي هم د مالیاتو په اخیستلو کي له خلکو سره ظلم او تېری کېدی؛ خو د امیر عبدالرحمن خان د پاچهۍ په کلونو کي یې بېخي ظالمانه او استبدادي شکل غوره کړ او خلکو حق درلود چي غم یې وبولي. د انګرېزانو خبر لیکونکی د (۱۸۸۴م.) کال د جون په میاشت کي، له کندهار څخه رپوټ ورکوي چي ګورنر ته له امیر څخه امر رسېدلی دی چي د هوتکو له قبیلې څخه، چي کلات ته نیژدې اوسېږي، مالیه واخلي. خبر لیکونکی لیکي چي دې خلکو له تېرو دوو سوو کالو راهیسي مالیه نه ده ورکړې او یوازي کله کله خپلو ملکانو ته قبیلوي ونډې ورکوي. ګورنر د هوتکو د قبیلې مشران او ملکان راوغوښتل او دوی ته یې د امیر له امر څخه اطلاع ورکړه. خبر لیکونکی وایي ګورنر هیله لري چي دوی به خپله مالیه تحویل کړي او که نه نو امیر امر ورته کړی دی چي یوه ټولی پیاده او یوه ټولی سپاره عسکر ور واستوي او مالیه په زور ورڅخه واخلي. (کندهار، دوهم جلد، ص: ۵۷)

انګرېز خبر لیکونکی د (۱۸۸۴م.) کال د اکتوبر په میاشت کي لیکي چي امیر، ناظر اسمعیل او میرزا علي اکبر ته د کندهار د مالیاتو د پلټلو وظیفه ورکړې ده او هغوی رپوټ ورکړی دی چي کندهار څلرویشت لکه روپۍ باقیات لري او باید چي خلک یې د حکومت خزانې ته تحویل کړي. دا باقیات د سردار شمس الدین خان، سردار عبدالرسول خان او سردار نور محمد خان له وختونو څخه، چي پرله پسې د دغه ښار والیان ول، پاته دي. خبر لیکونکی وایي، خدای پوهېږي چي دا پیسې به له خلکو څخه په څه ډول اخیستل کیږي. لړ تر لړه لس زره خلک به تباه سي. د حکومت اداري چاري په ټپه ولاړې دي او خلک په ځانونو پوري حیران دي. (هغه کتاب، ص: ۱۰۰)

د مالیاتو په ټولولو کې یو سیستم چې ډېر ظالمانه وو او پر خلکو باندې د هر ډول ظلم او تېرې سبب کېدلای سوای، هغه د مالیاتو د اجارې سیستم وو. د ولي محمد په نوم یوه سړي د ترکو د قبیلې د څارویو او نغدو پیسو د مالیاتو ټولول په اجاره واخیستل. له څان سره یې پنځلس شل آسونه او سړي بوتلل. شپږ اووه میاشتې وروسته یې خپل قرارداد فسخ کړ. د قوماندان لطیف خان زوی هغه قرارداد په لس زره اضافه پیسو واخیستی. (ص: ۱۱۶)

که څه هم چې د عادي باقیاتو په وخت کې هم د مالیاتو مامورینو او عسکرو له خلکو څخه هم پیسې اخیستلې او هم یې شپې وربانديې کولې خو د اجاره دار عسکرو، چې طبعاً یې هیڅ ډول اصول نه پېژندل، له حده زیات تېری کاوه.

که څه هم چې د مالیاتو او په تېره بیا باقیاتو په اخیستلو کې له ټولو خلکو سره ظلم کېدی خو له هندوانو سره، له ډېرې پخوا زمانې څخه بې اندازې زیاته بې انصافي کېدله. د انګرېزانو خبر لیکونکی د (۱۸۸۵م.) کال د مې د میاشتې په یوه رپوټ کې لیکي چې د مالیاتو له محصلانو څخه څکه خلک په عذاب وه چې هم به یې له خلکو څخه پیسې، جامې او نور شیان اخیستل او هم به یې د هغوی پسونه حلالول او پخلی به یې هم په کلیوالو اړه درلوده خو کله چې دا وظیفه عسکرو ته وسپارل سوه، هغوی نو ظلم او تېری تر اندازې واړاوه. د کلیو د عامل او ضابط پر کور به یې پیره ودروله. د ټول کلي باقیات به یې ورڅخه غوښتل او ورته ویل به یې چې تاسي خپلې پیسې له کلیوالو څخه واخلئ.

خبر لیکونکی وایي چې یو هندو یوازې شپږ سوه روپۍ د حکومت پوروړی وو او ګورنر هغه غرغره کړ. په داسي حال کې چې هندو پر پیسو پښېمانه نه وو بلکې ویل یې چې اجازه ورکړي چې خپل مال خرڅ کړي؛ پیسې به تادیه کړي. (هغه کتاب، ص: ۱۷۷)

له هندوانو سره څکه ظلم کېدی چې هم یې پیسې درلودلې او هم یې د دفاع له پاره غښتلی قوم او ملاتړ نه درلود او د ښار خلکو هم چنداني خواخوږي نه ورسره ښودله.

## بې ادارګي او اداري فساد

د حاکمانو له ظلم او اداري فساد څخه، له ډېرې پخوا زمانې څخه بیا د شلمې پېړۍ تر لومړیو لسیزو پورې خلک په عذاب ول. که څه هم چې د امیر دوست محمد خان په زمانه کې په کابل او شاوخوا

کې نسبي عدالت ټينګ وو خو په کندهار او غزني کې د هغه خپلو زامنو له خلکو څخه لار او ګودر ورک کړي وه. دې سيستم يا بې نظمۍ د امير له وفات څخه وروسته نور هم زور واخيست. ځکه چې د هغه زامنو، چې د افغانستان په ډېرو سيمو کې حاکمان ول، هر يوه خپل ځان مستقل وباله او له خپل قانون څخه يې کار اخيست. ډاکټر بيليو چې يو ځل په (۱۸۵۷-۱۸۵۸م.) کلونو کې د تقريباً يوه کال له پاره، د لمسډن له هيئت سره کندهار ته تللی وو؛ د (۱۸۷۱م.) کال په پای کې چې په کابل کې اميرشېر علي خان پاچا وو، له تورن جنرال پالک سره، چې سيستان ته د يوه سياسي سفر کولو وظيفه ورکړل سوې وه، ملګری سو. بيليو د کندهار د ښار په باره کې ليکي:

"څه چې موږ په سترګو وليدل او څه چې موږ د دې لنډ وخت تم کېدلو په ترڅ کې په کندهار کې واورېدل نو په دې کې هيڅ شک نسته چې د کندهار د ښار حالت هم د نفوس او هم د هغوی د ژوند له اړخه، تر هغه وخت چې ما څوارلس کاله پخوا ليدلی وو، ډېر زيات خراب سوی وو. د يو په بل پسې ګورنرانو ظلمونو، پرله پسې پوځي عملياتو او په ښار کې د ډېرو زياتو پوځي قواوو حضور، په دې تېرو لسو دوولسو کالو کې دا ښار په بشپړه توګه تباه کړی دی او د دې ښار خلک يې د نېستمنۍ داسي حالت ته رسولي دي چې نور نو له ژونده ناهيلي سوي دي....

په دې وروستيو لسو کالو کې، په سلګونو کورنۍ کډه سوي دي او ځانونه يې د عدالت په تمه نورو سيمو ته رسولي دي. ويل کيږي چې په دې ښار کې پنځه زره کورونه دي؛ مګر دريمه برخه يې يا خالي دي او يا تباه سوي دي. نفوس يې هم چې ډېر سي نو ايله پنځلسو زرو تنو ته ورسېږي. سړی نه پوهېږي چې دې ښار لا په دغه راز حکومتونو او د بې تنخوا عسکرو د ظلمونو سره سره څرنګه ژوند او دوام کړی دی....

د کندهار ښار اوس د دريو واکمنو ډلو له خوا اداره کيږي. هره ډله له يوې بلې مستقله ده مګر ټولي امير ته مسؤليت لري. جنرال صفدر علي پوځي ګورنر دی. د ده پوځيانو د شپږو مياشتو راهيسي تنخوا نه ده اخيستې او خپل باقيات د خلکو د لوټلو له لاري پوره کوي. د ده خوريی سلطان محمد ملکي ګورنر دی. د ده وظيفه د ښار د خلکو کرارول او له هغوی څخه د مالياتو په زور اخيستل دي. وروسته نو د کندهار د مخکني ګورنر سردار شېر علي خان چې په خپله اوس په کابل کې دئ، زوی نور علي دی. دی يو فېشني ځوان دی چې د ښايستو بخملونو چپني اغوندي او په جامو يې طلاوي ځېږي. دی د خپل پلار له خوا تر ښار دباندي، د مالياتو د ټولولو مسؤل دی. د

دې مثلث حکومت په نتیجه کې خلک پایمال دي او له هر یوه څخه لاره ورکه ده. دوی نه پوهېږي چې دا حکومت د چا په لاس کې دی. د یوه د ظلم له لاسه بل ته شکایت کوي او هر یو یې په خپل نوبت جلا جلا شکوي. ما ته په ښار کې باوري سړي وویل چې دلته هیڅ خوښي پاتې نه ده. هغه بازار چې نن تا ولیدی؛ دا د هرې ورځې بازار نه دی. په ښار کې تجارت او کاروبار نسته. څرنګه به خلک کاروبار وکړي؟ له خلکو سره پیسې نسته. ټولې پیسې ورڅخه اخیستل سوې دي او خلک نه پوهېږي چې دا پیسې چیرې ځي. خلکو خپل ځانونه پر خدای سپارلي دي؛ تر څو هغه یې ناره واوري او نوي واکمنان ورته پیدا کړي. (بیلیو، ص: ۱۴۸-۱۵۰)

له امیر شېر علي خان څخه وروسته د امیر عبدالرحمن خان، په نسبتاً اوږده دوره کې د کندهار او شاوخوا سیمو وضع نه یوازې بهتره نه سوه بلکې لا هم بدتره سوه. امیر عبدالرحمن خان د خلکو او خپلو فاسدو او ظالمو مامورینو تر منځ معمولاً د خپلو مامورینو او والیانو طرفداري کوله او هغوی هم هر ډول ناروا ته ملا تړلې وه. امیر هم غوښتل چې خپله خزانه، له هرې لارې چې کیږي، ډکه کړي او هم له شتمنو خلکو او لویو زمیندارو څخه دونه پیسې واخلي چې سبا د ده په مقابل کې د سر پورته کولو توان ورته پاتې نه سي.

د امیر عبدالرحمن خان په زمانه کې کله کله داسې کارونه او اجرآت کېدل چې د منلو نه وه. د مثال په توګه د صالو اڅګزي په نوم یوه غله شپېته تنه نور ملګري پیدا کړي او د کندهار په شاوخوا کې ګرځېدی، غلاوې او قتلونه یې کول. ګورنر د هغه د نیولو له پاره یوه ټولۍ سپاره واستول. عسکرو چې له صالو سره یې مقابله نه سوای کولای، د کلي له خلکو څخه د پیسو په اخیستلو بناء وکړه. چا چې پیسې نه ورکولې هغه یې د صالو د ملګري په تور نیوی او ګورنر ته یې رپوټ ورکاوه. په دې سلسله کې ډېر زیات بې ګناه خلک ونیول سول او د جریمو تحویلولو ته مجبور سول. (کندهار، دریېیم جلد، ص: ۵۴)

د انګرېزانو خبر لیکونکی د (۱۸۸۷م.) کال د مارچ په میاشت کې رپوټ ورکوي چې د کندهار ګورنر ته تازه خبر رسېدلی دی چې د نظر محمد په نوم یو مشهور غل، چې د ده خواجه اوسېدونکی او په دزد پخته مشهور دی، له کابل څخه د کندهار د کوتوال په حیث مقرر سوی دی. دا سړی د رحمدل رقاص او مسخره (ناټکي) زوی دی چې په کندهار کې ډېر بد نوم لري. خلکو چې دغه خبر اورېدلی دی، ډېر سخت وارخطا دي او حیران دي چې دا مشهور غل به څرنګه کوتوال وي؟ (هغه کتاب، ص: ۱۲۴-۱۲۵)

په کندهار کي آوازه سوه چي د هرات عسکرو شورش کړی او سپه سالار فرامرز خان یې وژلی دی. گورنر حکم وکړ چي هر څوک د حکومت په باره کي خبري وکړي، باید ژبه یې پرې سي او زر روپۍ جریمه سي. عسکرو ته خدای ورکړه؛ چي هر څوک خبري کوي د حکومت په باب د خبرو کولو په تور یې نیسي. وروسته یو څو پیسې ورڅخه اخلي او خوشي کوي یې. خلک داسي بېرېدلي دي چي اوس بېخي خبري نه سره کوي. (هغه کتاب، ص: ۱۳۵)

د کوتوالی مامورینو د مړو کسانو شتمني د حکومت مال باله او هر څه یې ضبطول. خلکو گورنر ته شکایت وکړ چي دا کار د اسلام او جاري قوانینو په خلاف دی ځکه چي د متوفي وارثان ژوندي وي، کوتوالي څرنگه د هغه شتمني ضبطولای سي. گورنر ورته وویل چي کوتوال په کابل کي د نایب میر سلطان سړی دی او له هغه سره زما زور نه رسېږي. (کندهار، څلورم جلد، ص: ۵۶)

په یوه رپوټ کي راغلي دي د کندهار سرمامور میرزا سلطان محمد د کندهار شتمن خلک له حکومت سره په مخالفت تورنوي او له لسو څخه تر شلو زرو روپیو پوري ورڅخه اخلي. گورنر د خلکو د شکایت په مقابل کي وویل چي په دې برخه کي اقدام کول د هغه تر توان وتلی دی. گورنر په خپله فکر کوي چي سرمامور د امیر په هدایت کار کوي. بالاخره گورنر وویل چي یا به زه له کاره گوښه کېږم او یا به دا کارونه بندېږي. (هغه کتاب، ص: ۸۸)

که څه هم چي عمومي عقیده خو پر دې ده چي د امیر عبدالرحمن خان په زمانه کي مرکزي اداره ډېره قوي وه او هر څه د امیر له خوا رهبري کېدل؛ مگر له ډېرو زیاتو رپوټونو څخه ښکاري چي امیر یوازي د مخالفینو له منځه وړلو، د شتمنو خلکو څخه د پیسو اخیستلو او له هري لاري د خپلي خزانې د ډکولو پرته بل شي ته چنداني متوجه نه وو. د انگرېزانو خبر لیکونکی د (۱۸۹۳م.) کال د جولای په میاشت کي رپوټ ورکوي چي امیر حکم کړی وو چي د کندهار ټولو مالي او اداري چارو صلاحیت له گورنر سره دی. هغه امر کړی وو چي میرزا خواجه محمد یو تحصیلدار دی. هغه د گورنر تر لاس لاندي دی او باید چي د گورنر له امر څخه پرته هیڅ کار و نه کړي. گورنر هم په عام دربار کي خواجه محمد تحصیلدار را وباله او هغه ته یې د امیر حکم ولوست. خبر لیکونکی وایي زه په دغه وخت کي دربار ته ورسېدم. میرزا خواجه محمد د امیر د حکم له اورېدلو څخه وروسته له خپل جیب څخه د امیر حکم را وایستی. امیر هغه ته حکم کړی وو چي د مالیاتو او نورو چارو په برخه کي خپل کار کوه او په گورنر کي هیڅ ری مه وهه. (کندهار، شپږم جلد، ص: ۳۵)

د کندهار نیوز لیټرز په نوم لس جلده کتاب کي، د کندهار او شاوخوا علاقو په باب د دونه ظالمانه اجرآتو، خپل سریو، بې امنیتیو او بې نظمیو په باره کي رپوټونه ورکول سوي دي چي که ټول نه وي نو ډېر زیات یې په لوستلو ارزي او زه یقین لرم چي باید د یوه بېل کتاب په شکل خپاره سي. له دې رپوټونو څخه سړی د افغانستان په ټولو سیمو کي د اجرآتو په باره کي اټکل کولای سي. زه یقین لرم چي په نورو ټولو ولایاتو کي به د عدالت او ادارې وضع تر دې بهتره نه وه.

## خواري او غریبي

افغانان له ډېري پخوا زمانې څخه له هندوستان سره بلد ول خو د غزنوي سلطان محمود له زمانې او په هند کي د هغه دوامدارو او پرله پسې فتوحاتو له هند سره ښه بلد کړل. هند هم په ژمي کي، په دښتونو او غرونو کي له سختي یخنۍ څخه خلک ورکشول او هم د خوارۍ غریبۍ او یو څه پیسو ترلاسه کولو له پاره معمولاً د ژمي په موسم کي د هند خوا ته تلل.

د جنوب لوېدیځو سیمو څخه چي څوک د خوارۍ غریبۍ له پاره هند ته تلل، هغوی به یې په هندي ژبه چړه لوگ او په پښتو جره گان یا څړه بلل. د دې خلکو د ژوند په باب په افغانستان کي چنداني څه نه دي لیکل سوي او یوازې نور محمدتره‌کي د شلمي پېړۍ د پنځوس په لسیزه کي، د څړه په نوم یوه ناول کي د هغوی له کړاوه ډک ژوند ته اشاره کړې ده. په دې ناول کي ښودل سوي دي چي اکثر څړه گان هم له دې خوا د غلو له خطر سره مخامخ دي او هم د هندوستان له خوا کور ته په لاره کي د غلو او د حکومت د مالیې له رشوت خورو مامورینو او عسکرو سره مخامخ کیږي او چي څه یې گټلي او یا یې په هندوستان کي اخیستي وي، هغه ورڅخه اخلي.

د څړه گانو له قافلې سره سفر کول له هر راز کړاونو، ستړتیاوو او خطرونو څخه ډک وو او سړی ویلای سي چي یوازې بېکاري او لوږه وه چي دا ځوانان یې د دونه زیاتو کړاونو او خطرونو منلو ته مجبورول. د نېستمنی د ژوند د نورو ټولو ضرورتونو تر څنگ یو بل لوی مجبوریت د ولور پوره کول وه چي د غریبو او نېستمنو ځوانانو له پاره یې، په خپل وطن کي چي تقریباً هیڅ ډول کار روزگار نه وو، پوره کول تقریباً په بل هیڅ ډول امکان نه درلود او باید چي یوې خوا ته تللي وای.

د مومن خان او شیرینو، ښادي او بیبو، ظریف خان او مابی، دلي او شهو په نکلونو کي هندوستان د نعمتونو او گټي وټي ملک معرفي سوی دی او دا چي د هندوستان نوم د پښتو ژبي په

فکلور کي تر بل هر ملک زيات ياديږي؛ د دې معنا دا ده چي د سيمي خلک له ډېري پخوا زمانې ورسره بلد دي.

| | |
|---|---|
| د هندوستان و لور ته ځمه | د شيرينو ولور په خپل موټه ګتمه |
| ما به پر کور کول فالونه | چي مومن جان له هندوستان راوړي شالونه |

همدغه د پراخو نعمتونو او خزانو کيسې وې چي ځوانان يې د وطن پرېښودلو او د مجبوريتونو د ليري کولو او مکلفيتونو د پوره کولو له پاره د هندوستان له کړاوه ډک سفر منلو ته تشويقول.

کپتان روبينسن وايي د (۱۶۵۰۰) پوونده کورنيو څخه لږ تر لږه شپږ زره جره ګان په ژمي کي هندوستان ته راځي او دغه شپږ زره کورنۍ معمولاً په هغو پيسو ګوزاره کوي چي دغه جره ګان يې د ژمي په موسم کي، په هندوستان کي ګټي. (روبينسن، ص: ۳۰)

جره ګانو که په هند کي پيسې په لاس راوړلې، نو يوازي هغه هيواد ته د تګ راتګ په لاره کي خطرونه، په غرونو او اغزنو دښتونو کي مزلونه او په هندوستان کي سخت کارونه نه وه چي د دوی د ژوند پر سختيو دلالت کوي بلکي د تګ او راتګ په وخت کي د غلو له غديو، د مالونو او پيسو له لاسه ورکولو او حتی وژل کېدلو خطرونه هم ورسره تړلي وه. په عمومي صورت ويلای سو چي جره ګانو يا څړه ګانو ډېر سخت ژوند درلود. روبينسن وايي چي دوی په ژمي کي په کليو کي، په کارونو او په هماغو کليو کي د شپې د تېرولو له پاره په ځايونو پسي ګرځي. جره ګان د ډېوالونو په جوړولو، د کرني له پاره د کانالونو او ويالو په کيندلو او نورو سختو کارونو کي استخدامېږي. روبينسن وايي دوی په ورځ کي اته روپۍ تر لاسه کوي او د يوم په کار کي دونه تکړه دي چي په ختيځ کي به تر دوی تکړه خلک چنداني پيدا نه سي. دوی د يو څه پيسو د سپمولو له پاره، په هغو کليو کي چي کار پکښې کوي، کله کله په ګدايي ګوزاره کوي. ځيني يې له افغانستان څخه خره ورسره راولي او په هندوستان کي، د ژمي په موسم کي، خاوري او ډبري ورباندي چلوي او يو څو پيسې ځان ته برابروي. روبينسن وايي جره ګان زياتره اعتباري ځوانان وي. دوی ځکه له غلا او جنايت کولو څخه ځانونه ژغوري چي له بنديخانې څخه ډېر سخت ويرېږي. ځکه چي که بنديان سي نو هم د بنديخانې له کړاوه ډکي شپې ورځي ورته ګوري او هم يې کار او د يو څو پيسو ګټل له لاسه وځي. (روبينسن، ص: ۲۹-۳۰)

ځيني څړه ګان مجبور ول چي د يو څه زياتو پيسو د ټولولو له پاره، د يو څه زيات وخت له پاره

په هندوستان کې پاته سي. دغو ځوانانو خپلو کليو ته له ستنېدلو سره يوازي پيسې نه بلکي يو نوی کلتور هم راوړ او د کليوالي ټولني پر ژوند باندي يې له هره اړخه اغېزه کوله. د کورونو د جوړولو په طرز کي يې تغير راووست، د بهرنيو ملکونو له ليدلو سره يې د خلکو مينه زياتوله او د شتمن کېدلو نوي لاري يې ورسره راوړلې.

## کوچيان او پوونده

کوچيان او څړه ګان ډېر زيات توپير لري. دا خلک بې کوره او دربدره نه ول بلکي کېږدۍ د هغوی کورونه وه او د خوراک او پوښاک له پلوه يې تر دهقانانو او د لږو مځکو تر څښتنانو ژوند ډېر بهتر وو. دوی د افغانستان او هند او په وروسته کي د هند، افغانستان، ايران او مرکزي اسيا تر منځ د تجارت ډېره ښه وسيله وه. هغه کوچيان چي د سختو يخنيو څخه د ځانونو د ژغورلو او د څړ د مځکو د پيدا کولو له پاره په طبيعي توګه د هندوستان تودو سيمو ته تلل؛ کرار کرار په هند کي د خپلو مالونو د پلورلو او له هغه ځايه څخه خپلو کېږديو او په وروسته کي کليوالو سيمو او ښارونو ته د ضروري شيانو له وړلو، خرڅولو او پرېمانه ګټو له ترلاسه کولو سره بلد سول.

هند د ټولو نعمتونو ملک وو خو د افغانستان وچو مېوو ته يې اړتيا درلوده او دغه راز يې ښه آسونه، چي په جنګونو کي بېخي ډېر کار ورڅخه اخيستل کېدی او اوسپني او فلزاتو ته زياته اړتيا درلوده. په افغانستان کي وچه مېوه پرېمانه وه خو آسونه او اوسپنه يې بايد له مرکزي اسيا څخه وارد کړي واي. په دې توګه دوی له هند څخه د سمرقند، بخارا او د مرکزي اسيا نورو لويو ښارونو ته، د آسونو، اوسپني، فلزاتو او نورو قېمتي شيانو د اخيستلو له پاره، لاره وکړه او هند يې له مرکزي اسيا، ايران او هرات او کندهار له لاري وصل کړ. په هندوستان کي حتی له ميلاد څخه ډېر مخکي د آسونو کمبود موجود وو او هغو کسانو ته يې چي معمولاً د هندوستان له شمال لوېديځو سيمو څخه ورته راتلل او ډېر غښتلي آسونه يې درلودل، آسواکا يا د آسونو خلک ويل او دا کلمه د هند په مشهوره حماسه مهابهارت کي څو ځايه راغلې ده. (ګومنز، ص: ۱۶)

د افغانستان کوچي سوداګرو به په مرکزي اسيا کي ډنګر او بېکاره آسونه په ډېره ارزانه بيه واخيستل. د افغانستان په پراخو او شنو اورشوګانو کي به يې ښه ماړه او چاغ کړل او بيا به يې په هند کي په بې اندازې زياته ګټه وپلورل. دا سوداګر به کله کله دونه شتمن سول چي په سلګونو نور

کسان به یې استخدام کړل او په هند کې به یې اوسېدل غوره کړل. د هند د نیمې وچې واکمنانو هغوی ته ځکه ضروت درلود چې هغوی هم ډېر تکړه سپاره او هم د آسونو په جنس او ذات ښه بلد ول. همدغه د آسونو تاجران به زیاتره وختونه د هند د سیاست میدان ته داخل سول. (هغه کتاب، ص: ۱۶-۱۷)

د نونسمې پېړۍ د لومړۍ نیمایي په شاوخوا کې هندوستان ته د پوونده له لارې تجارت ښه په زور کې وو. محمد حیات خان لیکي چې له افغانستان څخه کراچۍ ته په کال کې د یولک او شل زره روپیو په ارزښت اینجه، د یو لک اتیا زره روپیو په ارزښت ورېښم، د یودېرش لکو او پنځوس زره روپیو په بیه د پسه وړۍ، د نهه لکه او شل زره روپیو په ارزښت آسونه، د یو لک او پنځوس زره روپیو په ارزښت مېوه صادرېږي. (محمد حیات، ص: ۴۲)

تجارتي قافلې په اوږدو لارو کې چې کله کله به یې له یوه ځایه تر بل ځایه پورې تر میاشتې هم زیات وخت نیوی او کله کله خو به یې ایله په کال یو ځل سفر کاوه، د لارو پر لوړو ژورو او یخنیو، ناروغیو، د ځارویو پر ناروغه کېدلو او مړه کېدلو او نورو ستونزو سربېره د غلو او ډاکوګانو له درکه سخت مشکلات موجود وه چې کله کله به د مالونو تر ځنګ د سوداګرو د تلف کېدلو سبب کېدل. محمد حیات خان لیکي چې د دیره اسماعیل خان څخه تر دره بند او ګومل تر درې پورې بیا تر غزني پورې (۳۲۰) میله واټن دی او د غزني څخه بیا د کلات غلزایي له لارې تر کندهار پورې (۲۲۰) میله فاصله ده. د دغې درې د قافلو قوي دښمنان مسعود، وزیر او د احمدزیو قوم د زلې خېلو ښاخ دی. پر دغه لاره باندې پوونده سوداګر تګ را تګ کوي. په دره بند کې د شېرانیو له خوا هم خطر موجود دی. د کرمې د درې له لارې سوداګران لږ تګ راتګ کوي. دغه لاره د کاروانونو له پاره له خطرونو ډکه ده. د اتمانزیو، وزیرو، د کابل خېلو او حسن خېلو ښاخونه او د توریو قوم تل د مسافرو او قافلو د تګ راتګ لارې نیسي او که یوه غښتلې او اعتباري بدرګه ورسره ملګرې نه وي نو پر دې لاره باندې سفر کول له ځان سره دښمني ده. (هغه کتاب، ص: ۴۳)

محمد حیات خان وایي چې د هندوستان او پنجاب له لارې افغانستان ته، په کال کې د دوولسو لکو شپږ زرو روپیو په ارزښت مالونه وړل کېږي چې په هغو کې اروپایي نخې، وړین او ورېښمین ټوکران، قند، نیل، کېمخا، ګلابتون، لونګۍ، د ډېرګونو مساله جات او دغه راز نور شیان شامل دي.

په مقابل کې د افغانستان له لارې د پنځلسو لکو اویا زره روپیو په ارزښت مالونه هندوستان ته

وړل کیږي چې په هغو کې د بخارا ورېښم او ورېښمین ټوکران، آسونه او یابوګان، بادام، کشمش، اینجه، پوستینونه، چپني، د ودانیو جوړولو له پاره لرګي او دغه راز نور شیان شامل دي. (هغه کتاب، ص: ۴۴)

په دغو سوداګرو کې چې تقریباً ټول پوونده یا کوچي قبایل وه، د درانیو قومونو نوم نه یادېږي او علت یې دا دی چې دراني قومونو د اتلسمي پېړی له نیمایي څخه، چې پر افغانستان باندي د دوی د سلطنت وخت دی، د کندهار، هلمند، اروزګان په ولایتونو او نورو حاصلخېزو سیمو کې ډېري زیاتي مځکي تر لاسه کړي وې او خپله توجه یې زیاتره زمینداری او سرکاري کارونو ته اړولې وه. محمد حیات خان د هرات او کابل فارسیوانان، د پښین سیدان او د غرغښت د قبیلې د بابیو ښاخ په سر کې یادوي. دی وایي چې فارسیوانان د سوداګری په چارو کې ډېر زیات زیار ګالي؛ خو شیان ډېر ګران پلوري. دی وایي د افغانستان سوداګر، پر هندوستان سربېره، په روسیه، ایران، ترکستان، حتی په چین، تبت او روم کې هم لیدل کیږي. دغه سوداګر خپل مالونه پر اوښانو، یابوګانو او غوایانو باندي وړي.

دی لوهړی د ناصر د قبیلې د پوونده نوم یادوي چې وایي هغه ښاخ یې چې ډېر شتمن خلک دي، د پنځو زرو کسانو په شاوخوا کې سوداګر لري او له شپاړسو زرو اوښانو سره هندوستان ته تجارتي سفرونه کوي.

خروټي اتلس سوه تنه له شپږو زرو اوښانو سره ځي. وروسته لوهاني، دوتاني، نیازي او میاخېل یادوي. دی وایي په دوی ټولو کې میاخېل پخواني سوداګر دي او تر ټولو پوونده وو مخکې یې سوداګري پیل کړې او شتمن سوي دي. (هغه کتاب، ص: ۴۴-۴۵)

میجر هنري راورټي هم د پښتنو پوونده وو په لړ کې د نوهارني یا لوهاني نوم یادوي. د ده له لیکني څخه معلومېږي چې لوهاني قبیله، حتی په هغو وختونو کې چې په سیمه کې هیڅ ډول امنیت موجود نه وو، په تجارت لګیا وه او د مالونو ډېري لویي قافلې به یې رواني کړي وې. راورټي د مغول بابر په زمانه کې چې له هغه پر سیمه باندي مسلط سوی نه وو او لا په شاوخوا کې بشپړه بې امنیتي وه، د لوهاني قبیلې د یوه لوی تجارتي کاروان یادونه کوي. د بابر عسکرو پر دغه کاروان باندي حمله وکړه. ډېر زیات شمېر پسونه او غوایي یې اولجه کړل. د ده عسکرو د لوهاني قبیلې د یوه لوی مشر خواجه خضر سر ورته راوړ او قافله یې چور کړه. (راورټي، ص: ۴۸۸)

راورټي زیاتوي چې د مغول جلال الدین اکبر (۱۵۵۵-۱۶۰۵م.) د پاچهی په وروستیو کلونو

(۱۶۰۰م.) یا (۱۵۹۹م.) کې د غزني په شاوخوا کې هزاره ګانو د لوهانیانو پر یوه قافله باندې حمله وکړه. هغوی یوه هفته مقاومت وکړ خو د هزاره ګانو د لښکر طاقات یې را نه وړ او پر شا کېدلو ته مجبور سول. مالونه یې د هزاره ګانو لاس ته ورغلل او دوی له جلال الدین روښاني څخه مرسته وغوښتله. جلال الدین روښاني غزني ونیوی؛ هغه ښار یې چور کړ؛ خو شادمان هزاره حمله ورباندې وکړه او جلال الدین په جنګ کې ووژل سو. (هغه کتاب، هغه مخ)

راورټي لیکي چې لوهاني قبیلې د مغول اورنګزیب (۱۶۵۷-۱۷۰۷م.) سره د هغه د ورور داراشکوه په جنګونو کې، داراشکوه ته څلور زره د اوښ بارونه غله په داسې وخت کې ورسول چې هغه سخته اړتیا ورته درلوده او د همدغو لوهانیانو مشر سرورخان په (۱۸۳۹م.) کال کې د انګرېزانو پوځ ته له ملتان څخه تر کندهاره پورې په غله بار یو کاروان را ورساوه. راورټي وایي د سرور خان له کاروان څخه نه یو اوښ او نه یو بار ضایع سو. خو د انګرېزانو پر خپل پوځ باندې په حملو کې د هغوی له قافلې څخه هره ورځ په لسګونو او کله کله خو په سوونو اوښان او بارونه ضایع کېدل. په داسې حال کې چې موږ هم د مالونو د ساتلو له پاره عسکر درلودل او هم مو د قافلې تر شا عسکر او ساتونکي راپسې روان ول. (هغه کتاب، ص: ۴۸۹)

راورټي لیکي چې د ناصر قبیله ټول کوچي او مالدار دي. دوی خپل ټول ضروریات د پسونو له رمو او څارویو له تولیداتو څخه پوره کوي. دی وایي ناصر له نهو زرو څخه تر لسو زرو کورونو پورې رسېږي او په پوونده کې تر ټولو شتمنه قبیله ده. (هغه کتاب، ص: ۴۹۱)

راورټي وروسته د نیازیو، بابړو، دوتانیو او نورو پوونده قبیلو نومونه اخلي او وروسته د هغوی د تجارتي کاروانونو په مخ کې پرتو خنډونو او مشکلاتو باندې نسبتاً په تفصیل رڼغېږي او دی هم وایي چې په نړۍ کې به دغسې سخت سري خلک ډېر کم پیدا سي چې د دونه ستونزو سره سره بیا هم له تجارت څخه لاس نه اخلي او لا یې دوام ورکړی دی.

په وروستیو کلونو کې چې بې قانوني زیاتي سوي دي او پوونده د هغو قبیلو په منځ کې تیرېږي چې د هیڅ واکمن امر نه مني نو د پوونده مشکلات هم زیات سوي دي. راورټي په دې سلسله کې د وزیر، مروتو او شېرانیو نوم یادوي او وایي چې په دوی ټولو کې وزیر ډېر خطرناک دي او تل د پوونده کاروانونو لارې څاري او هر وخت حملې ورباندې کوي. راورټي وایي په مقابل کې پوونده هم مجبور دي چې څو قبیلې سره یو ځای سي او په ټولو یوه لویه قافله جوړه کړي. د دې قافلو

شمېر له پنځو زرو څخه تر لسو زرو او کله هم زیاتو کسانو پورې رسېږي. په ټولو یو خان ټاکي او ټول د هغه امر ته غاړه اېږدي. له دې قافلو سره خپل پوځي قوت ورسره وي چې د قافلې تر مخ، تر شا او پر څنګونو باندې حرکت کوي. راورټي وايي دوی باید ډېر په احتیاط حرکت وکړي ځکه چې د وزیرو قبیله هر وخت ورته بیداره وي او هر وخت حملې ورباندې کوي او څوک چې له قافلې څخه بېل سي معمولاً وژل کیږي. هره ورځ نښتې کیږي او کله کله خو دواړه خواوې یوه بل ته مورچې ونیسي او لوی جنګ ونښلي. (هغه کتاب، ص: ۴۹۶-۴۹۷)

کله چې سړی سوداګرو ته په لویو لارو کې دغه راز خطرونه او د هرات او کندهار په څېر لویو تجارتي مرکزونو کې له سوداګرو او شتمنو کسانو سره د واکمنانو بد سلوکي او حتی بېرحمي ویني نو رښتیا هم حیران پاتېږي چې په دې ملک کې سوداګرو څومره حوصله او زغم درلود او شتمن خلک لا څرنګه پاته کېدل.

آرترکانلي چې په (۱۸۲۹م.) او (۱۸۳۰م.) کلونو کې یې له ایران څخه د هرات او کندهار له لارې بلوچستان او هند ته سفر کړی دی، په هرات کې له سوداګرو او شتمنو کسانو سره د هغه وخت د واکمن شهزاده کامران د ظلمونو او تېریو په باب عجبې کیسې کوي. دی وایي شاه کامران د اکتوبر پر څوارلسمه اعلان وکړ چې ده پر کندهار باندې د حملې کولو فیصله کړې ده. د ښار تر ټولو شتمنو هندوانو چې د کامران دا اعلان واورېدی سمدستي له ښاره وتښتېدل. مګر د کامران دفتریانو سمدستي په باقي پاته شتمنو کسانو پسې حساب را واخیست. پر شاوخوا کلیو باندې غنم او پیسې حواله سوې... د ښار ډېر خلک په دې پوهېدل چې دا د پیسو د ټولولو له پاره، د کامران چل دی.

کامران څو ځله پر کندهار او کابل باندې د حملې کولو آوازه واچوله او هر ځل به یې د خلکو، په تېره بیا شتمنو کسانو، څخه د جنګ له پاره پیسې ټولې کړې او نور به نه جنګ وو نه د لښکر درک. (کانلي، ص: ۳۰)

کانلي وایي په هرات کې د ملا اسماعیل په نوم یو یهود وو چې د ښار تر ټولو یهودانو شتمن وو او ده ویل چې هیڅ دولت نه لري. دی دلال وو او سوداګرو ځکه د هغه ساتنه او ملاتړ کاوه چې څو کاله مخکې حکومت ډېرې شکنجې ورکړې مګر تر پایه پورې یې د سوداګرو هغه پیسې و نه ښودلې چې ده ته یې د ساتلو له پاره ساتلې وې. (هغه کتاب، ص: ۲۵)

کامران او په وروسته کې د هغه وزیر یار محمد خان له سوداګرو او شتمنو کسانو څخه د پیسو د

اخیستلو له پاره هیڅ ډول پلمې ته ضرورت نه درلود او چې په ښار کې څه پیدا کېدل، هغه ټول دوی خپل مال او حق باله.

ځیني سوداګر د هندوستان ډېرو لیري پرتو سیمو ته ولاړل او له هغو ځایونو او ښارونو څخه هر کال بیرته سرو سیمو ته تلل او بیرته په خطرناکو درو او لارو کې تېرېدل یو څه ستونزمن کار وو او له بلې خوا د اورګاډو او لارو منځته راتللو، د اوښانو د کاروانونو او قافلو ځای ونیوی او هغه پښتانه چې د هندوستان لیري پرتو سیمو ته لکه کلکته، بمبیی، مدراس او نورو ځایونو ته تللي ول، په هماغو ښارونو کې پاته سول او د تجارت تر څنګ یې سودخوریو ته مخه کړه. ځیني کسان به په دې ښارونو کې څو کاله او سلیمان خېل خو به کله کله شل کلونه په هندوستان کې پاته سول. پوونده به په دوکانونو او کورونو ګرځېدل او له خلکو څخه به یې خپل میاشتنی سود، چې زیاتره به دوې روپۍ کېدلې، اخیست. د شلمي پېړۍ په لومړیو دریو لسیزو کې خو پوونده وو له سود څخه دونه پرېمانه ګټې وکړې چې بېخي د منلو نه وې. یو کال یې له لسو لکو روپیو څخه پنځلس لکه روپۍ سود اخیستی وو. د دوی د سود د دونه لوړې ظالمانه اندازې او د هغوی د سود د ټولولو پر طرز باندي، چې د تهدید شکل یې درلود، د هند خلکو عکس العملونه ښکاره کړل. (روبینسن، ص: ۲۹)

د سودخورو پوونده وو دا ګټلي پیسې بالاخره افغانستان ته تللې او د اقتصاد پر هره برخه یې مثبته اغېزه کوله.

# لومړی ضمیمه

## غلامي او د غلامانو بازار

غلامي د سیستم په حیث یا د اروپایي هیوادونو، مصر، بین النهرین او چین په توګه، د تولید د طرز په حیث افغانستان ته نه ده راغلې. د غلامانو د رانیولو، استخدامولو او خرڅولو کلتور له لویه سره، د ماوراءالنهر یا شمال له لوري راغلی دی او په هغه وخت کې هم، چې لږ دوام یې کړی دی، غلامان د تولید په ساحه کې چنداني نه بلکې د عسکرو، خدمه، ساقیانو او نورو کارونو له پاره استخدام سوي دي. د غزنویانو پاچاهان د سامانیانو غلامان ول چې په خپله ترکان او له شمال څخه راغلي ول او د غزنویانو ټول تاریخ د غلامانو د لښکرو او فتوحاتو داستان دی. همدغه کلتور غوري پاچاهانو چې په خپله آزاد خلک ول، هند ته ورسره یووړ. سلطان قطب الدین ایبک د شهاب الدین غوري یا معزالدین غوري غلام وو. سلطان شمس الدین التمش په خپل نوبت د سلطان قطب الدین ایبک غلام وو. سلطان غیاث الدین بلبن د سلطان شمس الدین غلام وو او هر یوه په زرګونو غلامان درلودل. دوی په خپله ټول ترکان ول او د غلامانو پوځونه یې هم زیاتره له ترکانو څخه جوړ سوي ول. موږ پر دې موضوع باندي ډېر بحث نه کوو بلکې دونه وایو چې په نونسمه پېړۍ کې هم د غلامانو اصلي بازارونه او د استخدام سیمه د افغانستان په شمال کې پرته وه.

غلامي په مرکزي اسیا، منځني ختیځ، افغانستان او جنوبي اسیا کې ډېره اوږده سابقه لري. دلته د دې ظالمانه سیستم پر اوږده تاریخ باندي بحث کول زموږ د لیکنې موضوع نه ده او یوازې په نونسمه پېړۍ کې، چې زموږ د بحث موضوع ده ورباندي رڼا اچوو. په هرات، کندهار، کابل او نورو لویو ښارونو کې د غلامانو د بازارونو په باره کې چنداني څه نه دي ویل سوي او دا مسئله د اجتماعي ستونزي په حیث چنداني مطرح هم نه وه. یوازې د انګرېزي پوځ هندی منصبدار سیتارام چې پر انګرېزي پوځ باندي د کابل - جلال آباد په لاره کې، د حملو په ترڅ کې زخمي سوی او نیول سوی وو، په کابل کې د غلامانو د یوه نسبتاً لوی او عام بازار په باب معلومات راکوي. دی د هغو کسانو تقریبي شمېر نه ښیي چې په بازار کې خرڅلاو ته وړاندي سوي ول خو دونه وایي چې

هم هندي عسکر او هم انګرېزي منصبداران خرڅېدلو ته وړاندي سوي ول. (سیتارام، ص: ۱۱۵)

سیتارام د نورو غلامانو سره د سلوک په باب څه نه دي لیکلي او علت یې هم دا دی چي ده له نورو غلامانو سره سلوک نه دی لیدلی او په خپله له ده سره، چي د یوه مُلا تر لاس لاندي ژوند کوي، چنداني بد سلوک نه کېږي.

غلامان په افغانستان کي یا چنداني موجود نه وه او یا عمده اجتماعي ستونزه نه وه، بلکي له افغانستان څخه نورو سیمو ته وړل کېدل. هرات، هزاره جات او شمالي صفحات د غلامانو د ښکارولو مهمي سیمي وې. دا غلامان زیاتره ترکمنانو نیول او د بخارا او خېوا په بازارونو کي یې خرڅول. له ځینو متونو څخه ښکاري چي د هرات واکمن شهزاده کامران او وزیر یار محمد خان په خپله پر ترکمنانو باندي غلامان خرڅول.

په ایران کي د برتانیې سفیر جان مکنایل خارجه وزیر ویسکونټ پالمرسټن ته د (۱۸۳۷م.) کال د اپرېل پر اته ویشتمه، پر هرات باندي د ایران د حملې په باره کي لیکي : "... د عباس میرزا له وفات راهیسي چي د ایران اوسنی پاچا پر هرات باندي له خپل ناکام یرغل څخه وروسته بیرته هیواد ته ستون سوی دی... له هغه وخته تر دغه ګړي پوري ایران پر افغانستان باندي کومه حمله نه ده کړې؛ مګر د ایران د فقید شاه د وفات په وخت کي، د هرات حکومت د ترکمنو او هزاره ګانو سره یو ځای، د ایران پر خاوره باندي پرله پسې حملې کړي دي او د ایران اتباع یې د غلامانو په توګه د خرڅولو په منظور نیولي دي. د هرات افغانانو له هغه وخت راهیسي دغه راز حملو ته دوام ورکړی دی او ایران په مقابل کي هیڅ ډول خصمانه عمل نه دی کړی. یا به ایران په عامه اعلان کوي چي د هرات د دغه اعمالو په جواب کي حمله کوي.

په دې صورت کي نو زه فکر کوم چي د ایران شاه له کامران سره د جنګ په اعلانولو کي بالکل پر حق دی. که څه هم چي د ایران له خوا به د هرات اشغال ډېر لوی تاوان پېښ کړي مګر دا به د تعجب خبره نه وي چي د ایران شاه به زموږ په اعتراضونو کي ری نه وهي او خپلې حملې ته به دوام ورکړي. ځکه چي کامران هغه ډېر لمسولی دی او د ایران شاه مجبور دی چي د خپلو رعیتو پر نارو او شکایتونو باندي غوږ ونیسي... " (کوریس پانډینس، ص: ۳۳-۳۴)

د ایران له خوا د هرات، د (۱۷۳۷-۱۷۳۸م.) کلونو د محاصرې په جریان کي او د محاصرې له

ختمېدلو څخه وروسته د هرات په ښار کي ډېره سخته قحطي راغله. یار محمد خان له نیژدې کلیو او دغه راز له نورو سیمو څخه د مرستي غوښتنه وکړه. ضمناً یې اعلان وکړ چي پر غنمو او غلې باندي هر ډول محصول معاف دی. کندهار، ترکمنستان او هزاره جات سمدستي غنم او جوار هرات ته بار کړل. خلک له یوې خوا وږي وه او له بلي خوا دونه نېستمن سوي وه چي د غنمو او خوراکي موادو د رانیولو وس یې نه درلود. ځیني خلکو په خپله ځانونه خرڅ کړل او ځینو خپل اولادونه وپلورل او حتیٰ اولادونه یې په خرڅېدلو څکه خوښ وه چي لږ تر لږه بادارانو به یې په نس ماړه کړي وای. په خپله یار محمد خان پر ترکمنانو باندي د هرات خلک د اوښانو، یابوگانو او هر څه په بدل کي وپلورل. بالاخره شل ځوانان په یوه ترکمني آس تبادله سول. (فیریه، ص: ۲۵۹)

فیریه وایي که ما ته د یار محمد خان یوه تر ټولو نیژدې دوست کیسه نه وای کړې، ما به هیڅ وخت دا نه وای منلي چي یار محمد خان به دونه لوی جنایت کوي. هغه راته وویل چي یار محمد خان د شاه کامرن درې څلور لوڼي او د هغه مشراني مېرمني پر ترکمنانو باندي خرڅي کړې او هغوی د بخارا او خېوا بازارونه ته یووړې. (هغه کتاب، ص: ۴۷۵)

د حاجي فیروزالدین زوی ملک قاسم له لسو ملگرو سره له مشهد څخه هرات ته روان وو چي په لاره کي ترکمنان وربandي پېښ سول. د ده ملگرو مقاومت وکړ او څو تنه یې ووژل سول. د ده خپل زوی په جنگ کي ووژل سو. ترکمنانو ملک قاسم په خېوا کي د غلامانو په بازار کي خرڅ کړ. د خېوا خان، الله قلي خان په خبر سو؛ سمدستي یې له هغه سړي څخه په پیسو واخیست او ده ته یې د یوه کلي عایدات ور مقرر کړل. خو له خېوا څخه د وتلو اجازه یې نه ورکوله. ملک قاسم په (۱۸۴۰م.) کال کي په خېوا کي وفات سو. (هغه کتاب، ص: ۴۸۰)

امریکایي جوسیا هارلان، چي وایي په (۱۸۳۸-۱۸۳۹م.) کلونو کي زیات و کم لس میاشتي د افغانستان په شمال کي گرځېدلی دی، لیکي چي په ازبکستان کي غلامي په ډېر وحشیانه شکل روانه ده او له غلامانو سره ډېر غیر انساني سلوک کیږي. هارلان وایي دغه غلامان کله کله په قاچاقي توگه له ازبکستان څخه ایستل کیږي خو د ژغورلو اصلي لاره یې د پیسو تادیه کول دي. هر غلام او یا د هغه دوست باید دهغه آزادي په بیه واخلي. د کندوز واکمن مراد بېگ یو له هغو ډېرو مهمو کسانو څخه دی چي په ډېره لویه پیمانه غلامان د بلخ او ماوراءالنهر بازارونو ته تقدیموي.

هارلان وایي سربېره پر دې چي مراد بېگ له سیغان، کهمرد او هزاره جات څخه خلک تښتوي او په ماوراءالنهر کي یې خرڅوي؛ هزاره مشران په خپله هم د خپلو مخالفو قبیلو خلک یا تښتوي او یا

يې په جنګونو کې نیسي او پر مراد بېګ يې خرڅوي. هزاره مشران د دې کسانو د خرڅولو په بدل کې یا له هندوستان څخه راغلي مالونه او یا آسونه اخلي. هزاره ګان ځکه په لوړه بیه پلورل کیږي چې ډېر غښتلي دي. هارلان وايي له جنوبي سیمو څخه د دغو غلامانو شمېر په کال کې څو زرو ته رسېږي.

هارلان وايي چترال، چې د کندوز په جنوب ختیځ کې پروت دی، د غلامانو د تاجرانو له پاره یوه ګټوره سیمه وه. دی وايي د دغې سیمې مشر شاه کیتور نومېږي او له خپلو خلکو ډېرې ښځې کوچنۍ يې پلورلي دي. هارلان وايي ویل کیږي چې د چترال ښځې تر هغو مسیحیانو ښکلې دي چې د لوېدیځ په غرنیو سیمو کې اوسېږي. دوی د خپلې ښکلا له کبله تر نورو غلامانو په ډېره ګرانه بیه خرڅیږي. اتیا طلاوي چې پنځه سوه شپېته روپۍ کیږي، د یوې ښایستې نجلۍ له پاره لوړه بیه نه ده. (راس، ص: ۸۲-۸۳)

هارلان وايي کافرستان د غلامانو یوه بله ښه منبع ده او غلامان يې د چترالیانو په بیه خرڅېږي. دی وايي د غلامانو تاجران چې غواړي چترالي غلامان واخلي نو په چترال کې خپل دوکان پرانیزي او د نجونو او هلکانو یا ځوانانو له میندو او پلرونو او خپلوانو څخه هغوی په بیه اخلي او د چترال واکمن ته ډېره لوړه مالیه ورکوي. ځیني میندې او پلرونه خپل نااهله او سرکښ اولادونه په خپله خوښه پلوري. کله چې دا کسان د ازبکو منطقې ته ورسېږي نو هغه ځای د دوی د پر لار کولو له پاره یوه بندیخانه هم سي.

هارلان وايي هرات د غلامانو یوه منبع ده مګر هلته دا تجارت په پټه کیږي او د نورو سیمو په څېر زیات غلامان نه ورڅخه تر لاسه کیږي. په دې سیمه کې د غلامانو ښکاریان معمولاً خلک غلا کوي او په پټه يې تر بازارونو پورې رسوي. هارلان وايي بیا هم هر کال په زرهاوو غلامان له هرات څخه د ازبکو سیمو ته وړل کیږي. هارلان وايي شیعه ګان زیاتره د دغه ښکار قربانیان دي او له دغه ځایه څخه د ماوراالنهر بازارونو ته قزلباش غلامان، چې ډېر يې د ایران په سرحد کې نیول کیږي، وړل کیږي. له دغو قزلباشو څخه د منشیانو کار اخیستل کیږي. هارلان وايي د ځینو خانانو او یا د هرات د واکمنانو د کورنیو ښځې د دغو منشیانو کورنیو ته مېلمستیاوې جوړوي، په مېلمستیا کې يې په دام کې اچوي او په ډله يې د غلامانو تاجرانو ته سپاري او هغوی يې د ازبکو بازارونو ته وړي. (هغه کتاب، ص: ۸۳-۸۴)

د نونسمې پېړۍ د دېرش په لسیزه کې یوازې په خیوا کې درې زره روسي غلامان، چې اکثریت يې عسکر ول او دېرش زره ایراني او کُردي غلامان اوسېدل. (هوپکیرک، ص: ۸۷)

په هرات کي د برتانوي هند د حکومت استازي مېجر ډي، آر سي ټاډ، کپټن جېمز ابېټ ته وظيفه ورکړه چي خيوا ته ولاړ سي او د خيوا خان د روسي غلامانو په خوشي کولو قانع کړي. دا وخت روسانو د مرکزي اسيا، په تېره بيا خيوا د نيولو او د هغه ځای خان ته د روسي غلامانو د ساتلو له پاره، د سزا ورکولو په پلمه، سل زره عسکر په سيمه کي اچولي وه. انګرېزانو غوښتل چي د روسيې غلامان خوشي کړي او روسيې ته پر خيوا باندي د حملې کولو له پاره ظاهري او ځرګنده پلمه پاته نه سي. ابېټ شاوخوا يوه مياشت په غرونو او دښتونو کي سفر وکړ او د (۱۸۴۰م.) کال د جنوري د مياشتي په پای کي خيوا ته ورسېدی. د خېوا خان ته يې خپله پېژندپانه او د مېجر ټاډ د دوستی مکتوب تقديم کړ او د غلامانو د خوشي کولو په باره کي يې خبري ورسره پيل کړې. د خيوا خان پوهېدی چي روسی جنرال پيروفسکي د سلو زرو عسکرو سره د هغه پر قلمرو باندي، ظاهراً د همدغو غلامانو پر موضوع باندي د اعتراض په پلمه، حملې ته تياری کوي نو ځکه يې تر ډېرو چنو وهلو وروسته له مېجر ټاډ سره موافقه وکړه چي يوه ډله روسي غلامان به خوشي کړي او له ده سره به يې د اورينبرګ ښار ته ولېږي.

ځرنګه چي د کپټان ابېټ درک معلوم نه سو او هر چا دا فکر کاوه چي هغه به يا په خېوا کي او يا خيوا ته په لاره کي وژل سوی وي نو ميجر ټاډ، ليفټينيټ ريچمنډ شکسپير ته وظيفه ورکړه چي خيوا ته ولاړ سي او د روسي غلامانو د خوشي کولو کوښښ وکړي. ريچمنډ شکسپير په اته ويشت ورځو کي خيوا ته ورسېدی او د خيوا خان يې قانع کړ چي ټول روسي بنديان خوشي کړي. د خيوا خان (۴۱۶) روسي بنديان، چي څه باندي درې سوه يې نارينه، اتلس ښځي او اته نيوي يې ماشومان وه، خوشي کړل. روسي جنرال په عوض کي شپږ سوه د خيوا بنديان خوشي کړل او شکسپير يې د روسيې امپراطور ته واستاوه. د روسيې امپراطور يې بې اندازې زيات قدر وکړ که څه هم چي دا په دربار کي له هيچا څخه پټه نه وه چي تزار په زړه کي خواشيني دی. ځکه چي ده له انګرېزانو څخه د دې مرستي غوښتنه نه وه کړې او پر ده باندي يې پر خيوا باندي د حملې کولو پلمه ډېره بېځايه درولې وه. د روسيې او برتانيې دواړو هيوادو ستراتيژيستان په دې پوهېدل چي که روسيه خيوا ونيسي نو دا پر هند باندي د حملې کولو له پاره يو پُل دی. (هغه کتاب، ص: ۲۲۴-۲۲۷)

په معاصر افغانستان کي، لکه ځرنګه چي و مو لوستل، د غلامانو بازار چنداني د توجه وړ تاريخ نه لري او دا ستونزه ښخي موجوده نه وه. يوازي د امير عبدالرحمن خان په زمانه کي، چي اداري سيستم يې د افغانستان تر ټولو مشرانو سخت او ظالمانه وو، ځينو قومونو په تېره بيا ياغي هزاره ګانو ته د سزا ورکولو او د کافرستان د اوسېدونکو د مسلمانولو په منظور، هغوی د غلامانو په توګه وپلورل. خو امير حبيب الله خان د خپلي پاچهی په دوولسم کال د غلامی پر ضد قوانين جاري کړل، بنديانو ته شکنجه ورکول يې منع کړل او سياچاه يې له منځه يووړ. (ګريګوريان، ص: ۱۹۸)

# دوهمه ضمیمه

## جوسیا هارلان، افسانه او واقعیت

د امیر دوست محمد خان او د هغه د زمانې له پېښو سره د دغه امریکایي نوم تړلی او په بېلو بېلو تاریخي متونو کي یاد سوی دی. د هارلان په باره کي ځکه یوې روښانوونکي لیکني ته ضرورت دی چي د هغه د خاطراتو په باب د بین مکنټایر یو کتاب چي په (۲۰۰۵م.) کال کي یې لیکلی دی، داسي پېښو ته اشاره کوي چي د جوسیا هارلان په اصلي خاطراتو کي نسته او څرنګه چي دا خاطرات د افغانستان د نونسمي پېړۍ له هغو پېښو سره، چي زموږ د کتاب موضوع ده، اړه لري نو ځکه یې راوړل لازم دي.

جوسیا هارلان لومړنی امریکایي دی چي افغانستان ته تللی او د دې هیواد په باره کي یې خپل خاطرات لیکلي دي. دی د (۱۸۳۹م.) کال د اکتوبر په میاشت کي له افغانستان څخه تللی او په (۱۸۴۲م.) کال کي یې، په امریکا کي خپل خاطرات چاپ کړي دي. وروسته د ده د خاطراتو په اساس، د فرانک روس په نوم یوه انګرېز لیکوال، په (۱۹۳۹م.) کال کي یو کتاب لیکلی او چاپ کړی دی. وروستنی کتاب، بیا هم د ده د خپلو خاطراتو په اساس، یوه امریکایي لیکوال بین مکنټایر وربانډي ولیکی چي په (۲۰۰۴م.) کال کي یې په امریکا کي چاپ کړ. دا چي ولي موږ د دې دریو واړو کتابونه نومونه اخلو، خبره او ستونزه په دې کي ده چي دا درې واړه کتابونه یو له بله سر نه سره خوري او هغه معلومات چي کابل ته د انګرېزي پوځ د ننوتلو یعني د (۱۸۳۹م.) کال د اګسټ په میاشت کي یې له انګرېزانو سره ملګری خبر لیکونکی را کوي، د ده له خاطراتو سره توپیر لري.

د هارلان په باره کي به، په لنډ ډول ووایو چي هغه په (۱۷۹۹م.) کال کي زېږېدلی او په (۱۸۲۲-۱۸۲۳م.) کي یې د هند خوا ته سفر پیل کړی دی. سره له هغه چي د طب په برخه کي یې هیڅ ډول تحصیل نه وو کړی او ویل کیږي چي د خپل مشر ډاکټر ورور ځیني کتابونه به یې په شخصي ډول لوستي وي خو په کلکته کي د انګرېزانو د شرق الهند په کمپنۍ کي د جراح د مرستیال په حیث شامل سو او ځکه نو په ډاکټر هارلان مشهور سو. (راس، ص: ۹)

د انګرېزانو له پوځ سره یې درې کاله خدمت وکړ. د برما او انګرېزانو په جنګ کې یې برخه واخیستل او د دغه جنګ له پای ته رسېدلو سره یې په (۱۸۲۶م.) کال کې له پوځي خدمت څخه استعفا وکړه.

جوسیا هرلان افغانستان ته راغی. په دې هیواد کې یې له یو کال تېرولو څخه وروسته د سیکانو له پاچا رنجیت سینګ سره خدمت غوره کړ. د هغه سره له کار کولو څخه هم راضي نه وو او بیرته په (۱۸۳۶م.) کال کې کابل ته ولاړ او د امیر دوست محمد خان سره یې د یوه جنرال په حیث وظیفه غوره کړه.

په هغه کتاب کې چې هارلان په خپله لیکلی دی؛ په لومړیو فصلونو کې د افغانستان پر تاریخ باندې لنډ بیان، د برتانوي هند او روسیې د رقابت او راتلونکې په باره کې تفصیلات او په کابل کې له امیر دوست محمد خان سره د ده د اوسېدلو په باره کې خبرې راغلي دي.

د (۱۲۴) او (۱۲۵) مخونو په حاشیه کې لیکي چې د سیکانو او افغانانو د (۱۸۳۴م.) کال د جمرود په جنګ کې، ده ته رنجیت سینګ وظیفه ورکړه چې د دوست محمد خان او د هغه د ورونو تر منځ بې اتفاقي واچوي او دوست محمد خان کمزوری کړي. ده هم دا کار وکړ. سلطان محمد خان یې له لسو زرو عسکرو سره، له دوست محمد خان څخه بېل کړ او امیر دوست محمد خان په نتیجه کې ماته وکړه.

نور نو هارلان له رنجیت سینګ سره د خپل خدمت په باره کې څه نه وایي.دا هم نه وایي چې له هغه سره یې کله خدمت پیل او کله او ولې یې ختم کړ. هارلان له شاه شجاع سره د پېژندګلوی او د هغه له پاره د خدمت په باره کې هم څه نه وایي. د افغانستان شمال ته د خپل اوږده او له خطرونو ډک سفر په باره کې یې هم څه نه دي لیکلي. دا د هارلان د ژوند داسې پېښې دي چې ده هېرولای نه سوای او که یې زیات تفصیل نه ورکاوه نو لږ څه خو یې باید ویلي وای.

د هارلان د خپلو خاطراتو له خپرېدلو څخه څه باندې نیوي کاله وروسته، انګرېز لیکوال فرنک اې راس، د هارلان د خاطراتو په اساس یو کتاب ولیکی. په دې کتاب کې یوازې د هارلان د هغه له خطره ډکو سفرونو په باب بیان راغلی دی چې هغه د هندوکش شمال ته کړي دي. د دې کتاب په (۱۴۳) مخ کې، یوه داسې د نه منلو کیسه راغلې ده چې ښایي په خپله هارلان ته به هم د منلو نه وه او هغه دا چې دی وایي د هزاره واکمنانو له ده څخه وغوښتل چې په غرونو کې د هغوی په

کورونوکي ورسره وګوري. دی وايي چي د هزاره ګانو لوی مشر محمد رفیع له ده سره یو پټ تړون کړی وو. دا تړون یې د قرآن شریف پر یوه پاڼه لیکلی او لاسلیک کړی وو او د ده پیر یې ضمانت کړی وو. په دې تړون کي راغلي وه چي د ده تر واک لاندي سیمي عایدات به په ما اړه لري او دی او د ده قبیله به زما تابع وي او دی او د ده وارثان به زما د وزارت مقام لري. د ده د سیمي مطلق حکومت ما او زما وارثانو ته را سپارل سوی وو. البته دا ټول ترتیبات پر افغانستان باندي د انګرېزانو د یرغل سره ګډ وډ سول. (راس، ص: ۱۴۳-۱۴۴)

هارلان وايي کله چي زه په لاهور کي وم نو شجاع الملک ما ته خلعت او د انیس الدوله و حضور لقب راکړ او دغه راز یې د کابل په جنوب کي د کُرم د پراخي او شتمني وادي عایدات را سره ومنل او په دې توګه ګواکي زه د کُرم نواب سوم او په شمال کي د غوري واکمن سوی وم.

وروسته وايي چي ما په کابل کي د انګلیسیانو استازي ته یو غیر مستقیم پېشنهاد وکړ مګر د هغه له بې پرنسیپه مرستیال سره مې، چي زما له نفوذ څخه بېرېدی، جوړه نه سوه او د انګرېزانو سره مي کار کول خوبښ نه سول.

هارلان وروسته لیکي چي د نواب زمان خان له خوا یې مکناټن ته درخواست ورکړ او اعلیحضرت هم د مکناټن په غوښتنه یو فرمان لاسلیک کړ او نواب ته یې په کابل کي د اوسېدلو اجازه ورکړه او نواب زما په غوښتنه د غلجیو لویه قبیله له جنګ جګړو څخه منع کړه او حتیٰ هغوی ته یې وویل چي د شاه شجاع حکومت به نه تهدیدوي خو انګرېزان پر خپله وعده و نه درېدل او نواب یې په کور کي نظر بند کړ. (راس، ص: ۱۴۴)

هارلان دا نه وايي چي ده څه کمال درلود چي شاه شجاع د انیس الدوله لقب، خلعت او د کُرم پراخي او شتمني وادي عایدات وربخښل.

دا خو لا په هر صورت؛ خو کله چي د (۱۸۳۹م.) کال د اګست په میاشت کي کابل ته د انګرېزي پوځ د داخلېدلو په وخت کي د انګرېزانو د خبر لیکونکي رپوټ لولو نو د جوسیا هارلان ټولي ادعاوي پوچي ثابتوي. خبر لیکونکی د اګست پر اوومه لیکي:

"... موږ چي کابل ته ورسېدلو نو په هغه ښار کي یوازي یو اروپایي وو؛ د هغه نوم هارلان دی او اصلاً امریکایي دی. دی د دوست محمد په پوځ کي د یوه کنډک قوماندان وو. دوست محمد خان په خبر سو چي هارلان د خپل کنډک د عسکرو په تنخوا کي اختلاس کړی دی. دی یې بندي کړ

او شکنجې یې ورکړې. یوې معتبرې افغاني مېرمنې د ده چیغې اورېدلې وې او له خپل مېړه څخه یې غوښتي وه چې امیر ته د دغه سړي شفاعت وکړي. ویل کیږي چې دغه سړی زمان خان وو چې هارلان یې له امیر څخه خلاص کړ. (مهرا، لومړی جلد، ص: ۲۰۴-۲۰۵)

دغه رپوټ د هارلان ټولې لویې ادعاوې چې وایي امیر دوست محمد خان به همېشه دی پر خپل ښي اړخ باندې کښېناوه او ده د هغه په پوځ کې د جنرال وظیفه درلوده او یا یې د نواب زمان خان شفاعت کاوه، بې اساسه ثابتوي.

د افغانستان په باره کې د هارلان لومړني خاطرات چې ده په خپله په (۱۸۴۲م.) کال کې چاپ ته سپارلي دي، له هغو خاطراتو سره چې راس په (۱۹۳۹م.) کال کې چاپ کړي دي او دا دوهم ځل خاطرات په خپل نوبت له هغو خاطراتو سره چې مکنټایر په امریکا کې په (۲۰۰۵م.) کال کې چاپ کړي دي، ډېر ژور توپیر لري. داسې ښکاري چې هارلان په خپله په امریکا کې، په مختلفو وختونو کې چورتونه وهلي او خپل خیال پلوونه یې، وخت په وخت ورباندې زیات کړي وي. ځکه چې په لومړي او دوهم کتاب کې د شاه شجاع سره د ملاقات کولو او د هغه د تشویقولو او قانع کولو په باب او کابل ته د سفر کولو او په هغه ښار کې د دوست محمد خان پر ضد د یو کال پټو فعالیتونو په باره کې هیڅ ذکر نسته.

هارلان په (۱۸۲۶م.) کال کې د انګرېزانو له پوځ سره عسکري خدمت پرېښود او په همدغه کال یې په لودیانه کې د برتانوي هند د حکومت د استازي کلاډ وید او وروسته له شاه شجاع سره وکتل. هارلان باید په دغه وخت کې اووه ویشت یا اته ویشت کلن ځوان وي. دی شاه شجاع ته وایي چې غواړي په کابل کې د ده طرفداران د دوست محمد خان پر ضد تحریک کړي. وروسته په خپله لودیانې ته راسي او زر تنه عسکر برابر کړي او بیا د شاه شجاع له نور پوځ سره پر افغانستان باندې حمله وکړي. په دغه وخت کې به په کابل کې د شاه شجاع طرفدارانو، د ده په ګټه پاځون پیل کړی وي او دوست محمد خان به هم له پاڅون او هم د هارلان له پوځي حملې سره مخامخ سي او ماته به وخوري. شاه شجاع هارلان ته وایي چې که ته په دغه اقدام کې بریالی سوې نو ما ته یوازې د ژمي او اوړي پایتخت را پرېږده نور دې ټول قدرت ستا وي. (مکنټایر، ص: ۳۱-۳۲)

شاه شجاع چې له شپږ کلنی څخه په عملي سیاست کې لوی سوی او څلوېښت کاله یې د ژوند هر ډول لوړې او ژورې لیدلې دي. ضمناً یو باسواده شاعر او عالم سړی دی. د دغه اووه ویشت کلن ځوان په خبرو، چې نه یې په ژوند کې لیدلی او نه یې د هغه کومه اعتمادنامه لیدلې ده، باور

کوي. او هغه ته دونه امتیاز ورکوي چي په حقیقت کي خپله پاچهي وربخښي او په خپله هارلان هم دا نه وايي چي له ده سره څه کمال موجود دی چي د ده په خوله د شاه شاجاع ټول طرفداران د امیر دوست محمد خان په مقابل کي را پاڅېږي او په خپله چي ورسره مخالف دي، د پاڅېدلو له پاره هیڅ شعور نه لري.

د مکنتایر کتاب په دغه ناممکن مجلس پیل کیږي او نور نو ټول کتاب چي یقیناً د هارلان پر خوبونو او خیال پلوونو ولاړ دی، له یوه ناممکن څخه بل ناممکن ته حرکت کوي.

هارلان د شاه شجاع له طلاوو او روپیو سره له لودیانې څخه بهاولپور ته ځي او له هغه ځایه تر پېښور پوري د صاحبزاده په نوم، چي امیرالله یې د مرید په توګه ورسره روان کړی دی، په کلیو او بانډو کي حرکت کوي. البته خلک دونه بې عقل دي چي فقط د صاحبزاده نوم اوري، پرته له دې چي دی دي وپېژني، خیراتونه او نذرونه ورته راوړي او دعاوي ورڅخه غواړي. دا په داسي حال کي ده چي هارلان په یوه شرقي ژبه هم نه پوهېږي او له اسلام څخه خو طبعاً بې خبره دی.

هارلان په پېښور کي له یوه پیر سره ویني او وروسته له یار محمد خان او سلطان محمد خان سره ملاقات کوي. په پېښور کي له یو څه وخت تېرولو څخه وروسته، د لوګرله لاري کابل ته ځي. سیده د کابل بالاحصار ته ځي او هلته په یوه ښکلې خونه کي ځای ورکول کیږي. شپږمه ورځ له امیر دوست محمد خان سره ګوري. دوست محمد خان پرته له دې چي د هارلان اعتمادنامه یا کوم معرفي خط دي وګوري، له هغه سره سیاسي بحثونه کوي. هوښیار دوست محمد خان د دې اته ویشت کلن ځوان د خبرو تر اغېزې لاندي راځي او چي هر څه هارلان وايي، امیر یې مني.

دا خو لا په هر صورت، کله چي امیر دوست محمد خان ځو ورځي وروسته هارلان ته پیغام واستاوه چي غواړي د ده د پوځي مشاور په حیث کار ورسره وکړي. هارلان په جواب کي ورته ولیکل چي دی حاضر دی له هغه سره په قدرت کي شریک سي مګر نه غواړي چي خپل شهرت د غلامۍ په منلو سره خراب کړي. دوست محمد خان ډېر سخت په غوسه سو او ویل یې دا څه سرکښي ده چي دی یې کوي. که د هند لارډ افغانستان ته راسي هم به زما امر مني خو امیر ځکه د هغه د دې مغرور جواب سزا ور نه کړه چي نواب جبار خان د هارلان ملګری وو. (هغه کتاب، ص: ۱۳۹-۱۴۰)

هارلان تقریباً یو کال په کابل کي د امیر دوست محمد خان پر ضد فعالیت کوي او امیر له خپلو

ټولو استخباراتو سره، د هغه په مجلسونو او تبلیغاتو نه خبرېږي. هارلان څه باندي یو کال په کابل کي تېروي او بالاخره ورته معلومېږي چي شاه شجاع د کار سړی نه دی ځکه چي هغه په دې یوه کال کي له لودیانې څخه حرکت نه دی کړی؛ پر افغانستان باندي لښکرکښي خو لا پرېږده. جبار خان ورته وایي چي که په دې پوه سي چي شاه شجاع د انګرېزانو د طلاوو په زور راځي نو دی به یې سمدستي ملګری سي او که د انګرېزانو ملاتړ ورسره نه وي نو دی د خپلي کورنۍ تر ګټو نه سي تېرېدلای. (هغه کتاب، ص: ۱۴۰)

هارلان د (۱۸۲۸م.) کال په ژمي کي، له نواب جبار خان سره جلال آباد ته ځي. هلته څلور میاشتي پاتېږي؛ هلته هم د امیر دوست محمد خان پر ضد له تبلیغ څخه لاس نه اخلي او بیا هم امیر نه په خبرېږي. هارلان له جلال آباد څخه د سیکانو قلمرو ته ځي او هلته له رنجیت سینګ سره نوکري پیل کوي. په (۱۸۳۶م.) کال کي له رنجیت سینګ سره خوابدی کېږي او بیرته کابل ته راځي.

د دوی د خوابدی یو علت دا بلل کېږي چي مهاراجا رنجیت سینګ په (۱۸۳۵م.) کال کي سکته وکړه او مرګ ته نیژدې سو. نو ډاکټر هارلان یې لاهور ته وباله او له هغه څخه یې مرسته وغوښته. هارلان ورته وویل چي مهاراجا ته برقي جټکه لازمه ده او دی د هغه د علاج کولو په بدل کي یو لک روپۍ غواړي. (هغه کتاب، ص:۱۸۴)

رنجیت سینګ د هارلان مشوره ومنله. برقي جټکه یې واخیستله او جوړ سو خو دا چي هارلان د هغه د علاج په بدل کي د دونه زیاتو پیسو غوښتنه کړې وه او ضمناً یې لا دا هم ویلي وه چي د مهاراجا په قول اعتبار نه لري او پیسې دي پېشکي ورکړي نو رنجیت سینګ یې سخت په غوسه کړی وو. سړی نه پوهېږي چي هارلان به دا یاداښتونه، چي مکنټایر د کتاب لیکلو له پاره استفاده ورڅخه کړې ده، ولي لیکلي وي. هارلان څوک دی چي رنجیت سینګ یې د علاج له پاره لاهور ته غواړي؟ هغه په ژوند کي د طب د پوهنځي یوه صنف ته نه وو تللی. په دې خبري رنجیت سینګ هم پوهېدی او تر دې چي را تېر سو؛ رنجیت سینګ په خپله یو هوښیار سړی وو او اروپایي باصلاحیته ډاکټران یې درلودل. هغه څرنګه د دونه خطرناکي ناروغۍ له پاره داسي سړي ته مراجعه کوي چي هغه په طب خبر نه وي؟

او په زړه پوري خبره دا ده چي له رنجیت سینګ سره د هارلان د اړیکو له خرابېدلو څخه وروسته هغه امیر دوست محمد خان ته مراجعه کوي او امیر بیا هم سمدستي اعتماد ورباندي کوي

او د خپل پوځ د یوه لوی قوماندان په حیث یې مقرروي. هارلان ادعا کوي چې دوست محمد خان یې له سیکانو سره جنګ ته تشویق کړ او هغه هم د ده مشوره ومنله او د سیکانو سره یې د جمرود په جنګ کې د هغوی سپه سالار هري سینګ وواژه. هارلان د دې ټولې فتحې افتخار ځانته اخلي او وايي چې رنجیت سینګ چیغې کړې چې دا ټوله د هارلان کار دی او هغه خپل کسات واخیست. (هغه کتاب، ص: ۱۹۲-۱۹۴)

دا ټول هغه چورتونه دي چې هارلان ته د خپل لومړي کتاب د خپرولو څخه وروسته ور پیدا سوي دي او په دوهم کتاب کې، چې راس ورباندي لیکلی دی، هم دا افسانې نسته. ښایي هارلان ډېر وروسته دا یاداښتونه لیکلي او یا یې ښایي په کومو مجلو او اخبارونو کې چاپ ته سپارلي وي.

ډېره په زړه پوري خو هغه کیسه ده چې د هزاره جات په باره کې یې خپل پخواني نکل ته انکشاف ورکړی دی. په هغه کتاب کې چې راس د هارلان په باره کې لیکلی دی؛ هارلان وايي د هزاره ګانو مشر ده ته د خپلې سیمې مطلق مشرتوب ور وسپاره. ښایي دا یې وروسته په زړه کې ور ګرځېدلي وي چې باید په هغه سیمه کې یې واده هم کړی وای. پر ځان مین او خود خواه هارلان، دلته ځان له مقدوني سکندر سره مقایسه کوي؛ ځکه چې هغه هم د سغدیانې د واکمن لور رخسانه واده کړې وه. هارلان ته هم د هزاره ګانو مشر محمد رفیع د خپلې لور سره د هغه د واده کولو پیشنهاد کوي او هارلان هم له هغې سره واده کوي. په هغه سیمه کې د هارلان او د محمد رفیع د لور د واده په مناسبت جشنونه کیږي او هارلان رسماً د هزاره ګانو زوم کیږي. (هغه کتاب، ص: ۲۲۶)

زه ګومان نه کوم چې تر نن ورځې پوري، چې د یوویشتمي پېړۍ درېیمه لسیزه پر پیل کېدلو ده، هزاره ګانو کوم یهودي ته خپله لور واده کړې وي. خبره خو لا داده چې هارلان دا نه وايي چې بالاخره هغه ښکلې د خان لور څه سوه؟ ده ځرنګه هغه پرېښودله او په خپله کابل ته روان سو؟ آیا دا امکان لري چې د هزاره ګانو خان او د هزاره قوم دې یوه یهود ته خپله لور ورکړي او بیا دې نو هغه ته اجازه ورکړې وي چې ناوې پرېږده ستا یې په مخه ښه؟ خو ځرنګه چې دا ټولې کیسې په خیال او چورت کې جوړې سوي دي نو په زیات منطق هم نه ارزي.

د هارلان په خپلو خاطراتو او د راس په کتاب کې له انګرېزانو سره د هارلان د مخامخ کېدلو په باب چنداني څه نه ویل سوي او دا نه دي ویل سوي چې هارلان څونه موده په کابل کې پاته سو خو د مکنټایر له کتابه څخه ښکاري چې هارلان ښه ډېر وخت په کابل کې پاته سوی دی او له دونه

لوی تحول سره سره چي په افغانستان کي راغلی وو. هارلان لا په بالاحصار کي په هغه کور کي اوسېدی چي دوست محمد خان ورکړی وو. ده لا انتظار درلود چي د ده د بالاحصار له کوره سره، چي ده ته امير دوست محمد خان ورکړی او دی دوه کاله پکښي اوسېدلی وو، څوک غرض و نه کړي. خو کله چي يوه ورځ ماپښين هارلان له بهر څخه راستنېږي نو ګوري چي هغه کور انګرېزي منصبدارانو اشغال کړی دی او ډاکټر اټکينسن د ده پر نازولي آس باندي سپور دی. هارلان هغه صاحب منصب له آس څخه لاندي راغورځوي او د پوليسو سرمامور جي ايچ ميګريګور ته عريضه کوي. خو ورته ليکي چي دا هيواد انګرېزانو اشغال کړی دی او هر څه يې په هغوی اړه لري. (هغه کتاب، ص: ۲۵۲) هارلان د (۱۸۳۹م.) کال د اکټوبر پر نونسمه له کابل څخه روانېږي.

دا ټول د هغو ډېرو زياتو اضافاتو يو لنډيز دی چي د ده په خپلو خاطراتو او د راس په کتاب کي نه دي راغلي. راس او مکنتاير د خپلو کتابونو معلومات له ځانه نه دي جوړ کړي او بايد چي د هارلان د يادابنتونو په اساس يې ليکلي وي. مګر سوال دا دی چي دا کار ولي په خپله هارلان نه دی کړی. هارلان د خپلو خاطراتو له خپرولو څخه وروسته تقريباً دېرش کاله نور هم ژوندی وو او کولای يې سوای چي دا ټولي نوري خبري له خپلو خاطراتو سره اضافه کړي.

کله چي سړی د هارلان د خاطراتو او د هغو کتابونو تر منځ چي هغه هم د ده د خاطراتو په اساس ليکل سوي دي دومره زيات توپيرويني نو د ده پر خپلو خاطراتو باندي هم شکمن کيږي.

پای

## مأخذونه

۱: فرهنگ، محمدصدیق. افغانستان در پنج قرن اخیر جلد اول قسمت اول. چاپ سوم ,۱۳۷۳

۲: رښتیا، سید قاسم. افغانستان در قرن نوزده. چاپ کابل مطبعه دولتي ,۱۳۴۶

۳: غبار، میرغلام محمد. افغانستان در مسیر تاریخ. دولتي مطبعه کابل افغانستان ,۱۳۴۶

۴: محمود، محمود. تاریخ روابط سیاسي ایران و انگلیس در قرن ۱۹. تهران ,۱۳۵۳

۵: عطامحمد، میرزا. نوای معارک. انجمن تاریخ ,۱۳۳۱

۶: کاتب، فیض محمد. سراج التواریخ. کابل مطبعه حروفي دارلسلطنته ۱۳۳۱ هجري قمري.

۷: هروي، محمدیوسف ریاضي. عین الوقایع. تاریخ افغانستان در سالهای ۱۲۰۷_۱۳۲۴ قمري.

۸: خانیکوف، نیکولای ولادیمیر. سفرنامه خانیکوف. ترجمه ډاکتر اقدس یغمایي و ابوالقاسم بیګناه. ایران ۱۳۷۵ شمسي.

۱۰: تره کي، نور محمد. څپه د کابل چاپ ۱۳۵۷ شمسي.

۱۱: محمد حیات. حیات افغاني. پښتو ترجمه د فرهاد ظریفي او عبدالطیف یاد طالبي. کابل ۲۰۰۷

12: Ferrier, J.P. History of the Afghans. London 1858.

13: Bellew, Henry. H. Journal of a Political Mission to Afghanistan. Reprinted in Pakistan 1978.

14: Bellew, Henry. H. From the Indus to the Tigris. Reprint Pakistan 1977.

15: Cotton, Sydney. Nine Years on the North West Frontiers of India from 1854 to 1863.

16: Vigne, G. T. A personal Narrative of a Visit to Ghuzni, Kabul, and Afghanistan. Reprint in Pakistan 1982.

17: Watson, Robert Grant. A History of Persia from the Beginning of the Nineteenth Century to the Year 1858. Reprint in India 2018.

18: Burnes, Alexander. Travels into Bokhara. Vol 2. London .

19: Masson, Charles. Narrative of Various Journeys in Balochistan, Afghanistan

and the Panjab 1826 to 1838 Vol 3. London 1842.
20: Kaye, John William. History of the War in Afghanistan Vol 1. First Indian Reprint 1999.
21: Varma, Birendra. English East India Company and the Afghans. 1747-1800, Calcutta India. 1978.
22: Bilgrami, Asghar H. Afghanistan and British India 1793- 1907 India 1972.
23: Sykes, Percy. A History of the Afghanistan Vol 2. First Indian Edition 1981.
24: Gregorian, Vartan. The Emergence of Modern Afghanistan. U.S.A 1969.
25: Elphinstone, Mountstuart. An Account of the Kingdom of Caubul Vol1. Reprint Pakistan 1974.
26: Lumsden, Sir Peter. A Sketch of the Life of Lieut. Gen Sir Harry Burnett Lumsden London 1900
27: Kandahar Newsletters. Directorate of Archives Department Government of Balochistan Quetta Pakistan.
28: Forrest, George W. Life of Field Marshal Sir Neville Chamberlain. London 1909.
29: Aitchison, C.U. A Collection of Treaties, Engagements and Sanads. Relating to India and Neighboring Countries. Vol 13 Calcutta India 1933.
30: Burnes, Sir Alexander. Cabool A Personal Narrative of a Journey to and Residence in the Years 1836-7.
31: Robinson, Captain J.A. Notes on Nomad Tribes of Eastern Afghanistan.
32: Ferrier, J.P. History of the Afghans. London 1858.
33: Correspondence Related to Persian and Afghanistan. London 1839.
34: Sitaram, Edited by James Lunt. From Sepoy to Subedar. London 1873.
35: Hopkirk, Peter. The Great Game, The Struggle for Empire in Central Asia. U.S.A 1992.
36: Harlan, J. A memoir of India and Avghanistaun. U.S.A 1842.
37: Ross, Frank E. Central Asia. Personal Narrative of General Josiah Harlan. London 1939.
38: Mehra, Parshotam. North- Western Frontier and British India 1839-1842. India 1978.

## د ښاغلي جهاني چاپ آثار

۱. ورکه مېنه، شعري مجموعه.
۲. پایکوب، شعري مجموعه.
۳. د سباوون په تمه، شعري مجموعه.
٤. شپېلۍ، شعري مجموعه.
۵. کوه طور، شعري مجموعه.
٦. راز و نیاز، شعري مجموعه.
۷. کوثر، شعري مجموعه.
۸. معراج، شعري مجموعه.
۹. فردوس، شعري مجموعه.
۱۰. ارغوان، شعري مجموعه.
۱۱. محشر، شعري مجموعه.
۱۲. پند او عبرت، منظوم داستانونه.
۱۳. د مشکو کاروان، څېړنه او کره کتنه.
١٤. د پښتو په سُر او تال کې د غربي سندرو شرنګ، له انګریزي څخه منظومه ترجمه.
۱۵. غربي ګلونه شرقي لمنې، د انګریزي اشعارو منظومه ژباړه.
١٦. بهګت کبیر د پښتو په بڼ کې، د هندي متصوف شاعر بهګت کبیر د اشعارو منظومې ژباړې.
۱۷. د خیام رباعیات، د عمر خیام د رباعیاتو منظومې ژباړې.
۱۸. قوماندان،ناول.
۱۹. هرات، پښتانه او ستره لوبه، تاریخي څېړنیز اثر.
۲۰. د پښتو د فوکلوري نکلونو لنډ تحلیل، څېړنیز اثر.
۲۱. ادبي پلټنې، څېړنیز اثر.
۲۲. تاریخي څېړنې (لومړی ټوک)، تاریخي څېړنیز اثر.
۲۳. تاریخي څېړنې (دوهم ټوک)، تاریخي څېړنیز اثر.
۲٤. تاریخي ترجمې، له خارجي منابعو څخه بېلابېلې ترجمې
۲۵. د پښتو شعر هینداره، ادبي، څېړنیز اثر.
۲٦. زما ژوند، لیکوالي او شاعري.
۲۷. شاه شجاع، امیر دوست محمدخان او بریټانوی استعمار. تاریخي څېړنیز اثر.

19) طالبان دې سوله وکړي معبد به په عوض کې خره ورکړو.

20) زه د ملت مصطفوي پلار یم

21) د کندز اوضاع تر مدیریت لاندې ده

22) ته دا چاره ما ته راکړه، چاره او د قلم ته ضرورت دی، اوله [illegible] غوره ما. " دنیا [illegible] کار کوو نګو

23) افغانستان شفوي بازار نلري، نه دولت ته اړتیا، په اول قدم کې کوښښ کوو چې شفوي ته بازار پیدا کړو

24) ګاز د ګوډو اساس جوړوي؟ د قاضي پیر موړه غوښته ده "

25) مامون رشید عباسي خلیفه دی، حال دا چې د عباسیانو او عثمانیانو تر منځ طولاني وټن وجود نلري.

26) د اسلام [illegible] په ځبابه زه کې رجوع ته قلل

27) د جنرال محي الدین غوري رجباتري د دعا پر اصلاح تکبیر ویل.

## مننه او کور ودانی!

28) لوبدیو دین هیئت اصلاح

ثبات څېړنيز بنسټ له جنسينګ انرژي شرکت څخه د زړه له کومي مننه کوي، چي د دې کتاب د چاپ په اړخ کې يې خپله مالي پېرزوينه بيله عوضه شريکه کړه.

29) ملګرو ملتونو نه پرېږدي، له هغوی باد راوزي، له تاسي بهونه راوزي. انتخاباتي صحوا کلاه ته په خطاب کې.

30) حسن روحاني د افغانستان اسلامي جمهوریت جمهور رئیس.

31) ما شهید سقم بدون ضبط به شهید نزدیک نشنوید.

